# پښتو سیندګی

## نویزونه

# Neologisms

**لیکوالی**

پوهاند ډاکټر مجاور احمد زیار

خپرونکی

د ساپي د پښتو څېړنو او پراختیا مرکز

پېښور

2000 ❁ ۱۳۷۸

# پښتو سیندګی



## نویزونه



پوهاند ډاکټر م. ا. زیار

ډالۍ

دپښتونخوا هغو جنګیالانو

او فرهنګیالانو ته چې پښتو پالنه

دخپلې ژوند جګړې بنسټ ګڼي.

# کتاب پیژندنه

د کتاب نوم: پښتو سیندګی (نویزونه Neologisms)

لیکوال: پوهاند ډاکټر مجاور احمد زیار

تیاروونکي: د پښتو څانګې ملګري:

ش. ساپی، ا. درانی، ف. فرحت.

ګ . ګوهر، خ. حکیمزی.

ش. وګړپال، ف. بزګر

مرستندوی: د ساپي د پښتو څېړنو علمي جرګه

سلاکار: انور درانی او شکیل ساپی

خپروونکی: د ساپي د پښتو څېړنو او پراختیا مرکز

کمپوزر: ن. هنریار، ر. صدیقي

د کمپوز پشپړوونکی: د ساپي د پښتو څېړنو او پراختیا مرکز

د چاپ کال: ۱۳۷۸ جنوري ۲۰۰۰

د چاپ شمیر:    ۱۰۰۰ ټوکه

د چاپ حقوق:  دا حقوق د ساپي د پښتو څېړنو
او پراختیا مرکز سره خوندي دي.

بیه:    په افغانستان کې (۰    ) افغـانـی
په بـــــهرنیو هیوادونـــــو کـــــې
(    )امریکایي ډالر یا د هغو معادل

پته:    د ساپي د پښتو څېړنو او پراختیا
مرکـز فلیـټ نمـبر ۳۱۴ – دریم پـوړ
ګل حاجي پلازه – یونیورســـتي روډ
پیښور.

تیلیفون او فکس:    ۴۴۵۰۶ – ۰۹۱

*Address*: Sapi's Center for Pushto Research and Development
Flat # 314, 3rd Floor, Gul Haji Plaza, University Road,
Peshawar, Pakistan
Phone & Fax: 091 – 44506
E-mail: - scprd@psh.paknet.com.pk

د ساپې د پښتو څېړنو او پراختیا مرکز او د هغې د علمي شورا او د دې مرکز د درانده مشر او. موسس امام الدین ساپي څخه د زړه له کومې مننه کوو چې ددغه ډیکشنري چاپ یې پخپل بشپړ ځانګړي لګښت کېدونی کړ.

د پښتو ژبې ملګري

## د دغو پښتو مينو د مرستو مننه کوو

واحد علي او شير علي او نور وکيلان ملګري. شوکت علي شرار، شير شاه (مينګوره). محمد ابراهيم (بټ خيله). فضل خدا ساپی، راحت الله (LTC)، وزير خټک، پير ګوهر (امن شاعر) او ملګري (مردان)، نيک محمد غازي زوی (پېښور). مسعود مرزا (جرمني).

همدا شان د ځوان ليکوال عالمزيب خليل دا ميړانه هم د هيرولو نده چې زموږ دغه سيندګی يې له ورکې را وژغورو.

د پښتو پانګي ملګري

# پښتو سیندګی زمونږ بریا

زمونږ دلرغوني اوهم دمعاصراو نوي تاریخ په تقدیرکې په طبیعي ډول یوه پخه قانونمندي داده چې دپیړیو پیړیو په اوږدو کې زمونږ دخلکو د مبارزو تاریخ او ټول طبیعي، اقتصادي، علمي، فرهنګي، مدني، ژبني، معنوي او مادي ارزښتونه ددې خاورې داصلي اوسیدونکو یعنې زمونږ دتیروپلرونو اونیکونو دملي مبارزو دتاریخ دوام دی او دایوه نه شلیدونکې کړۍ اودملي زیار نه تمکیدونکی بهیردی چې خپلواکي، ملي واکمني، ښتونواله اودخاورې بشپړه ساتنه یې بنسټ تشکیلوي دهمدې قانونمندۍ دعمل په بهیرکې ویاړم چې دپښتو ژبې نویزونو په لړکې دساپې

دپښتو څېړنو دمرکز دلارې دپښتو سيندګی دکتاب په چاپولو او خپرولو بريا موم.

ديولرغوني هيواد دټولو معنوي.- اجتماعي پديدو دپيژندنې لپاره په څېړنو او موندنې کې دفرهنګي او ژبني څېړنو او موندنو بهيرڅه اسان کار نه دی چې هرليکوال. شاعر يا دادب مينه وا وکولای شي ديوې بشري ملي ټولنې دملي ژبې پ ډېرو پټو پوهنيزو پانګو، ډول ډول ادبي رازونو. ښيګڼو، ژبښود ښتمنيو (ګرامري شتمنيو). نويزونو او دژبې دګړښودنې (قاموس) دکلياتو په علمي اوفرهنګي زيرمو اويا دنويزونو په لارو وپوهيږي. داڅکه چې تجربو راښولې ده چې دهرې ژبې دبشپړمحتوياتواودغنا ټولې ادبي - فرهنګي زيرمې

چې دورته ټولنې دټولنيزو مناسباتو يا دلرغون او هم نوي فرهنګ په هميشنۍ ترڼه کې دپيړيو پيړيو راهيسې دپرګنو دعمل په نتجه کې رامينځته شويدي، يوازې هغه ژبپوهان چې دژبپوهنې حقوقي امتياز لرونکي وي، کولای شي ددې حق ولري چې پخپلو ژبخيړنو کې دخپلې ملي ژبې دلاغنا، بشپړنې او دفلکلوريکو ادبياتو دپانګې څخه په ګټې اخيستلو سره سره ديويشتمې پيړۍ دمعاصرې تکنالوژۍ دادبياتو او اصطلاحاتو سره په ورته ملګرتيا او هم ژبنۍ پراختياکې پخپل علمي توانمندۍ سره راتلونکي کول ته دژبپوهنې پيرزوينه ډالۍ کړي.

دعلمي مفاهيمو په رڼاکې ويلی شو چې ژبه دانسانانو په خپل منځي کې ديو - بل سره دخبرو. پوهې او پوهولو لپاره يوازينی اساسي وسيله ده چې دعمل په جريان کې دانسان دمغزو څخه سرچينه اخلي او دتفکر دلارې دګردو انسانانو په خپل منځي کې دعلمي فرهنګي او يا دژوند په هردول اجتماعي مناسباتو او راکړې ورکړې کې تيوريکي - شعوري دنده ترسره کوي. ددې ټکو دياډولو څخه مونږ ته دانتيجه په لاس راځي چې ژبه نه يوازې ديو انسان دخبرو او دهغه دمنطق ځيزمنه عيني وسيله ده بلکه دهغه دټول روان . دهغه دتفکردڅرګندونې او دهغه دروح وسيله هم ده.

دنړۍ ټول ټولنيز پوهان (فرق نه کوي
دهرډول نړۍ ليد. مکتب يا عقيدې لرونکی چې
وي) دملي فلسفي دمفاهيمو دابرخه په ګډه سره
مني چې دګردې نړۍ پرمخ دانسانانو ترمينځ
دټولنيزو مناسباتو په نتيجه کې بيا هم داجتماعي
پديدو دشناخت او پيژندنې موضوع دخپلې څيړنې
او يا بحث لاندې نيول په حقيقت کې دورته ټولنې
دپيچلو اجتماعي - سياسي او يا نورو هر ډول مسئلو
دحل هم پيلامه او هم بشپړ پای تشکيلوي دبيلګې
په توګه ديو هيواد په جغرافيايي اوسياسي حدوداتو
کې دننه چې ټولنه يې غيرمتجانس او څو قوميزه
بنه ولري دهمدغو قومونوترمينځ دملي مسئلې دحل
يوه اساسي ستونزه د ژبې مسئله ده چې قومي

بشري اکثریت یې دمسئلې دستونزې دحل دیواځنی کیلي. حقوقي نورم او دملي یووالي واحد سنمبول ګڼل کیږي. داځکه چې دوراندې تکو په یو ځل بیا تائید سره ویلی شم چې ژبه په یو هیواد کې دهغه هیواد داړوندې طبیعي جغرافیایي زمکې په سردورته بشري فرهنګ او داړونده انسان په ټول تمدن کې دهغه دمغزو دکړنې سره مل دهماغه انسان دشعور. تفکر او دژوند ورځنې یا ټول تاریخي اعمالو دتشریح دادمنه وسیله او دچاپریال دشناخت هدفمند انعکاس دی چې بل هیڅ فکتور بې له ژبې څخه دستونزې دحل ځواب نشي ویلای. داددي لپاره چې په ژبه کې دیوقوم او دیوې اړوندې ټولنې ټول

مدنیت، رواج، کلتور، سیاست، دود، تاریخ اوحتی
د ورته انسانانو دختې دطبیعي خصلت ترجماني
پرته ده.

زمونږ ددې مرکز دخدمت اساسي هدف
همدلته پروت دی او هغه هم ددې دپاره چې په
ګران هیواد افغانستان کې دهیواد ټول وګړي او
قومونه دبشري مدنیت په تخنیک، ساینس، اقتصاد
ادب او یا نورو مادي، معنوي پدیدو په حقیقي
کیفیت، اصلي پرمخ تللي ماهیت یا ښه ایزجوړښت
وپوهیږي یا وپیژنو یا نوروته و پوهوو، مجبوزیو چې
په ټولو اجتماعي مناسباتو کې زمونږ دهمدې بشري
اړتیاودپوره کولو په خاطردافغانستان دپښتو ملي
رسمي ژبې نوښت، غنا او د ژبپوهنې ودې ته

دژبیوهانو دلیارې ژوره پاملرنه ترسره شي نوځکه خو بیا اړکیږوچې زمونږ په وروسته پاتې ساتل شوې ټولنې دعلمي - فرهنګي پرمختګ لپاره لازم دی چې زمونږ دملت دبشپړاکثریت ژبې (پښتو) ته دټولو ملي - حقوقي مسئلو په سرکې دحل عملي بڼه ورکړو او پدې لرغوني اماډیرې بډای ژبې دفرهنګي پانګو په پټو زیرمو باندې زمونږ دپښتوژبې دژبپوهانو څیړنې او ډیرې ژورې څیړنې سرته ورسیږي.

لکه چې ستر څیړونکی او ژبپوه هنري راورټي لیکي: (دپښتو ژبې دافعالو او ضمایرو له خصوصیاتو او ځنې نورو مشخصاتو نه داسې ښکارې چې دایوه عجیبه او لرغونې ژبه او له هرې معلومې ژبې نه

متفاوته او بډای، ژبه ده.) په ویاړ اوخوښۍ سره باید په ډاګه ووایم چې دداسې څېړونکو او ژبپوهانو څخه چې داخوارکۍ اما لرغونې او بډای ژبې ته دزړه له کومې خپله پوهه او ژوند.په نوي ادب او نوي نوښت سره بخښلی دی یوهم پوهاند ډاکترمجاوراحمد زیارصاحب دی چې د(پښتوسیندګی) نومې دګړښود یو ډیر ارزښتناک کتاب یې ددوه زرم عیسوي نوي کال په درشل کې لیکلی دی او دخپلو ځلاندو افکارو او ژبپوهنې په وړانګو یې دپښتو ژبې لوستونکو او دپوهنې دځوانانودزده کړې سترګې روښانه کړي دي.

زه همدا اوس په همدې شیبو کې چې د(پښتوسیندګی زمونړبریا) سرلیک په نوم لیکنه

كوم ،ويارم چې د"سيندګی" نومی ارزښتنـــاک ګړښود کتاب په لومړي ځل سره دپښتو ژبې دیـوې علمـي پانګې او پوهنيزقاموس په توګه په وړيا ډول دساپی دپښتو څیړنـــو او پراختیـا مرکزلخـوا پـه پيښورکـې دساپي په ځانګړي لګښت چاپ اوخپورشو.

دساپی دپښتو څیړنو او پراختیا مرکـز دبنسټ ډېره چې ما په خپلـه دخپـل ځانـګړې پـانګې پـه لګښت دهغې مینې او ملي ارمان له املــه چـې زمـا دروح اوختې سره دافغانستان دبشــپړاکثریت خلکـو دملي ژبې پښتو ته بې له کوم امتیاز،ريا او بــې لـه کومو شخصي ګټو په نظر کې نیولـو سـره دخدمـت کولو په خاطر اخښګل شویدی څلورکاله وړاندې په پيښور کې کښيښودله.

ددې معنوي لوی مرکز دپرانستلو اساسي لـوری او ستراتیژیک هـدف تجـارتي نـه او نـه دشـخصي پـانګې دډیـربښت هدفونــه پرمــخ بیـایي بلکــې دافغانسـتان لرغونــی اوهـم معـاصر تـاریخ، پوهنــې، فرهنګ او دافغانستان دبشپړ اکثریت ولسـونو پښتـو ملي ژبې څیړنــو، بـدای کولـو، علمـي کولـو او ددې لیارې څخه دهیواد ټولو معنوي ارزښتونو ته دخپلو ټولو مـادي اومعنـوي امکانـاتو سره پـه وړیـا تـوګه دځانګړې پانګې په لګښت خدمت کول دي. مـا لا دډیر پخوانه دخپلو لوړو زده کړو په بـهیر کـې پـه کوم عمر کې چې تنکی ځلمـی وم دځانـه سره پـه تینګه پتیالې وه چې زه باید دداسې یوعلمي ټولنـیز مرکز دلارې په هر ډول مادي او معنوي قرباني چې

وي. افغانستان او افغاني ټولنې په تېره بيا دځوان کول دپوهنيزو ښيګڼو او دپښتو ژبې دپرمختګ او لاپسې دبډاى کولو لپاره خدمت او تاريخي - ملي ځنډ نه منونکي دندې ديوې رغونکې پوهنيزې ستراتيژۍ په رڼا کې ترسره کړم.

بې ځايه به نه وي چې دساپې دپښتو څېړنو او پراختيا دمرکزسترخدمت دپيل دورځې څخه راپديخوا دهغه د فعاليت اساسي تګ لاراو ټاکل شوې پوهنيزه ستراتيژي په لاندې ډول ياده کړم.

۱. په افغانستان کې دپښتو ژبه چې ددې هيواد دولسونو دبشپړ اکثريت ملي ژبه ده بايد دافغانستان دټولو قومونو لپاره پخپل منځي کې مينه مينه شي. علمي شي. دساينس تخنيک او دکمپيوټر ژبه شي

او بلاخـره ډېـر ژر دښووونـــې اوروزنـــې دوزارت دښونځيـــو، مســـلكي تخنيكمونـــو، اكـــاډميو او پوهنتونونو لوست خونو تـه ورننوځي اوپـه رسمي ملـي او دولتـي مناسباتو او راكـــړه وركـــړه، خـط اوكتابت كـــې دې پـه ټول هيـواد كـې عـام او دهـر افغان دقلم ژبه شي.

۲. دپورتني ملي ارمان سره جوښت دمسلكي علومو دلـوړو زده كـړو او دټول معـارف درسـي او مسـلكي كتابونو د وړيا چاپولو او خپرولو په څنګ كې دامركز د وياړه ډكه يوه بله دنـده هـم لـري او هغـه داچې دعلمي، ادبي، تـاريخي، فرهنـګي او ډول ډول له مينـځه وړل شـويو او سـوځول شـويو كتـابونو او ارزښتناكو ملي تاريخي او فرهنګي اثارو دبيا رغوني

لپاره په ملـــي رسمي ژبـې پښتـو بـانديې دساپـى دخانګړې پانګې پـــه لـګښت پـه وړيـا تـوګه چـاپ اوخپاره کړي.

۳. ددې مرکز دعلمي او فرهنــګي ستراتيژی دکـار بل غوره اسـتقامت دادی چـې دامرکـز بـه ترخپلـه وسه وسه هڅه وکړي چې پښتو ژبې ته داسې دزده کړې تجربوي - مسلکي معاصر علـوم چـې او سنې تولې بشري تولنې په تيره بيا دافغانستان راتلونکو ځوانانو. استعدادونو او ملي شعور ته په پراختيا او ترقي کې نه تمکيدونکی ونډه او تکامل ورکړي. پـام وړاړوي او ددې مرکز لخوانه دې په پښتو ملي ژبه کې دمعارف او زده کړې ځوانانو ته پـه زړه پورې چاپ شوي شوي اثار او کتابونه په لاس ورکړي.

۴. پدې ځای کې دپورتنیو تاکل شویو هدفونو ترڅنګ دکار یو بل ډیر اساسي لوری په ګوته کول هم ښه ګڼم او هغه داچې دپښتو ژبې دامرکز بیا هم ترخپله وسه وسه هڅه کوي چې دملي لوړو ګټو په تناسب په نړۍ اوهم دخپل ملي کچ په چاپیریال کې دبشري حقونو دمنل شوي انساني نورم او اصل ته چې (دژبې ازادي.دفکر اوبیان ازادي.د[illegible]دان ازادي.دلیکنې او مطبوعاتو ازادي) نومیږي درناوی کوي او دپښتو ژبې دخیړنې.بدای کولو، پراختیا او علمي کولو په برخه کې دامنل شوي پورتني بشري نورم او اصل دزړه په مینه پلي کوي.

۵. ددې مرکز دستراتیژۍ دخدمت دوړانګې بل څرک دادی چې دامرکزدپښتو ژبې دادب زخیرې

او د پانګې دبیا بشپړې رغونې دپاره چې دیوې

اوږدې مودې راهسې له جدي ګواښ سره مخامخ

کړی شوي دي دیوې خوانه او دافغانستان دملي

یووالي، ملي ګټو، ملي خپلواکۍ اودملي فرهنګ

دروښانولو په اړه لیکل شوي علمي اثاردبلې خوانه

ددې مرکزدعلمي شورې دڅیړنو او چاپ څانګې له

لیارې بیله کومې ځنډونې څخه دساپې په ځانګړې

لګښت چاپوي او خپروي.

دپورتنیو ستراتیژیکو هدفونو په رڼاکې

همداسترملي رسالت دی چې دپښتو ژبې دپوهنیزو

ښیګڼو او دلاپرمختګ لپاره دساپې دڅیړنو

دامرکزدنوموړو ملي ستراتیژیکو دندو په بیلابیلو

برخو کې دژبپوهنې دعلمي میتودولوژۍ په رڼاکې

لګیا دی څېړنې او خپرونې کوي او سږکال یې هم دنورو تیرو کلونو په شان پوشمیرادبي، علمي، تاریخي او دپوهنې او لوړو تحصیلاتو درسي کتابونه لکه دطب دپوهنځي د (P.C.B) تولګي ددړهم سمستر لپاره دعمومي بیالوژۍ درسي کتاب، دپښتو بدیع البیان کتاب، دپښتو ژبنود(ګرامر)، پښتو ګړښود(دکشنري یا قاموس) دهیواد، دنومیالي، ملي ولسي شاعر اروابناد امین الله (ملنګ جان) نومي کتاب، هرات پښتانه اوسترګ لبه، او د هیواد دنومیالي تاریخ پوه محمد حسن کاکړ(رڼا اودغه) نومي کتاب دساپي د پښتو څېړنو مرکز لخوا چاپ او خپاره شویدي چې دا لړی

اوس هم دپښتو ژبې سره دمينې په څپوکې جاري ده.

دادی نن یوځل بیا دهمدې لړی په بهیرکې ددې مرکز دپوهنیزې ستراتیژی په رڼا کې دساپی دپښتو څیړنو اوپراختیا مرکزته دا ډیر دویړ اوخوښی بله شیبه ده چې دپوهاند زیار صاحب سیندګی نومی پښتو ګړښود (پښتوقاموس) کتاب بیا ددې مرکز لخوا نوی چاپ شو او ددې مرکز دڅیړنو.چاپ ځای.او خپرونو په ارشیف کې اوچت ځای وموند.

داکتاب چې د پښتو ژبې څخه په انګریزی او پاړسی ژبوکې ډیرزیات شمیر وییونه (لغاتونه ترجمه شوي.معنی شوي او لندوچکی تفسیر یې

لیکل شوی دی دپښتوژبې دغنا له پلوه او د پښتو

ګړښوونې دتشریح او ګړپانګې په لحاظ ډیر زیات

پوهنیز ارزښت لري. ددې علمي ګړښود کتاب دلید

زاویه د ژبپوهنې دیو داسې نوي ډول

ګړدود. بداعت او د پاخه تفکر دنقطې څخه

سرچینه اخلي کوم چې له نیکه مرغه دا ډول

د پښتو ژبې ژبپوهنې دمیتودولوژی نوی ګړدود او

پښتو بداعت دپوهاند مجاوراحمد زیار لخوا د هغه

د مینې د لوړاحساس لرلو او زیار پلې شوې

نتیجه ده.

زه هیله مندیم او پوره باور لرم چې

دپوهاندداکتر مجاور احمد زیارصاحب سندګی

نومی ګړښود (قاموس) یا وییونه دهر زده

کوونکي ، څېړونکي ، ليکوال او دپوهې مينه وال پــه افغاني روح او مورنى ژبې ته ددرناوي پــه تلـه ښې ژورې اغيزې وکړي.

دتـاريخ پـه اوسنيو ډيــرو ترخــو اوســتونزمنو شرايطو کې چې دپښتو لرغونې ژبــې دمعـاصر ادب ډېرو علمي برخو او تاريخي اړخونو تـه پوره زيـان ورسول شوى دى او په دې برخه کې په څرګندې اوښکـاره سپين سترګى سره دپرديو پــه لمســون اولګښت اوس هم ددې ژبې دبيخي کمزورتيـا او لـه مينځه وړلــو لپــاره دبيــخ ايســتنې هلــې ځلــې کيږي ، هيله من يو دزيارصاحب سيندګى نومى پښتو ګړښود (دوييوني دغه مجموعه) به دپښتو ملي ژبــې درغاونې ، غنا او دبيرته لاښه بيخ نيونې دپاره ستره

دنده ترسره کړي. زه پوره باور لرم چې دپښتو ژبې
دکمزورتیا او ورکـاوي دمخنیـوي لپاره دټولو هغو
نامقدسو اروا ګانو په وړاندې چې غواړي دپردیو په
لـګښت دافغانستان دملـي ژبې ډیـر لـوړ حقوقـي
ارزښت کمزوری کړي. دسیندګي نومي پښتـوګړښود
(پښتو قاموس) یوازنی مناسب او سیال علمي ځواب
دی چې ددې مرکز لخـوا د شـلمې پیـړۍ پـه پـای
او دیویشتمې سدۍ پـه پیلامـه کـې پښتـو ژبـې تـه
دخپل خدمت په لړۍ کې چاپ شو.

دپښتو سیندګی نومیکتاب دافغانستان ملي ژبې
دغنا اوفرهنګي پانګوالـۍ ځوان ځواکمـن داسـې یـو
استاذی دی چـې لـه نیکـه مرغـه دسـاپـي دپښتـو
ځیړنـو اوپراختیـا دمرکـز لخـوا دهـر ځوان

پښتون ، دپوهنـــې هرافغـان زده کوونکـی یـا محصـل
او دژبپوهنې هرڅېړونکي مینه وال ته په پښتوژبـه
کـې نوښتونـه ،ګړویزونـــه ، نویزونـــه ډالـی کـوي
او دپښتو وییونې دقاموس زیری ورکوي.

زه دهیـــــــواد خپلـــــــو درنـــــــو
استادانو، پوهـانو، څیړونکـو او لیکوالانـو تـــه ددې
خبرې پخلی کول هم ضروري ګڼم چې دخپـل ځان
لخوا دیو افغان په توګه پښتو ژبې ته دخدمت کولو
لپاره دخپل هدف یو بل دیـادولو وړ اساسـي لـوری
څرګند کـړم او هغـه داچـې دساپـی‌دپښتـو څیړنـو
او پراختیا مرکز دخپلې پوهنیزې سـتراتیژی پـه رڼا
کې په غوڅ ډول پتیلې ده چې ټولې علمي څیړنې ،
لیکنې ، نویزونه اویا د یالکتیزمونه (ګړویزونه) چـې

دیودرسي. تاریخي یا ادبي کتاب، مجلې یا دژورنال په بڼه دژبپوهانو، ژورنالستانو او دپوهنې مسلکي ځانګو درنو استادانو لخوا په پښتو ژبه کې هیوادوالو یا دپوهنې شاګردانو ته دچاپ اوخپرونې دپاره دساپې دپښتو څیړنو اوپراختیا مرکز ته دخپلو اړوندو وړاندیزونو په ترڅ کې دمنظورۍ نه وروسته ورسپارل کیږي دامرکز یي په بشپړې ناپییلۍ سره بي له سیاسي او عقیدوي تمایلاتو یا پلوۍ څخه پښتو ژبې ته دخدمت لپاره چاپوي او هیڅکله دهر محترم مولف دخپل ځانګړي سیاسي دریځ او دهغه دلیکنې دسیاسي نړۍ لید زاویې لوري پورې هیڅ ډول اړه نه لري. دامرکز دخپل ملي ناپییلي خصلت له مخې هردروند لیکوال ته دهغه دخدمت په

خاطرچې یوازې او یوازې دپښتو ژبې دعلمي کولو، څیړنو او پراختیا لپاره یې ترسره کوي درناوی لري.

ددې مرکز د علمي شورى غړي او ټول مسولین دا دنده هم لري چې هر هغه کتاب چې د ساپي د پښتو څیړنو او پراختیا مرکز له لیارې د ساپي په ځانګړي لګښت چاپیږي، د افغانستان ټولي ملي - تاریخي ګټې ټینګې په پام کې ونیسي او د چاپ په بهیرکې دهیواد. د لوړو ګټو څخه په علمي کچ دفاع او ساتنه وکړي.

زه هیله مندیم چې دپښتو سیندګی نومی کتاب په چاپولو چې ددې مرکز دویاړونو په ارشیف کې یوه بله ډیره غوره او روښانه ډیوه بله شوه،

دتاریخي افغانستان دنوي کول دپاره دپښتو ژبې دزده کړې ځوانو استعدادونوته دپوهنې په هرې څانگه کې دوییونې معنی، مفهوم او تشریح په لارکې دیوه پاخه تجربه کار او پوه ښوونکی اولاربنود په توگه ډیر ارزښتناک اود داد وړ ملي - فرهنگي خدمت ترسره کړي. همداشان هیله لرم چې دزیارصاحب ددې ستر علمي زیار څخه ټول لوستونکي په تیره بیا دپوهنې اودپښتوژبې ټول مینه وال بشپړه گټه پورته کړي.

په پای کې دساپی دپښتو څیړنو او پراختیا مرکز دپورتنی ستراتیژی او پوهنیزې مفکورې په رڼا کې زه دپښتو ملي ژبې او ټولو افغانانو دژور خدمت لپاره ددې مرکز دبنسټ ایښودونکي په توگه له

خپلي خوا. ددې مرکز دعلمـي شـورى ددرنـو غـړو
او ټولو کارکوونکو لخـوا دهيـواد د نوميـالي ليکـوال
پوهاند مجاوراحمد زيار صاحب ته دده په دې لړى
زيار او هغه علمي، فرهنګي او دپښتو ژبــې وييونـي
ستره پانګه چې دپوهې، فرهنـګ او ژبپوهنـې مينـه
والوتـه دپښتـو سيندګی نومـی ليکـل شـوى ګړښود
کتاب په لمن او پانه پـانه کـې يـې رازيرمـه کـړي
او دراتلونکي کوُل ژبپوهنې او نورو علمي برخـو تـه
يــې ډالــی کــړې ده ښه چــارې او مبــارکي وايم
او دلـوى. بخښونکـي او مـهربان څښتـن(ج) څخــه
محترم پوهاند زيارصاحب ته دپښتو دملي ژبـې پـه
نورو هغو برخو کې چې لا تراوسه پورې پکې هيـڅ
ډول خيرنــــــه نـــــــده ترســــــــره

شوې، دژب خیړنې دکره کتنې توفیق او خیړنو کې یې لازیات بریالیتوبونه غواړم.

ویاړم چې ملي ژبې پښتوته دخپلو خدمتونو په لړی کې داارزښتناک کتاب د ۲۱ پیړی په لومړي کال چاپوم او ددې علمي اثردهمدې پانې پرمخ گرانو هیوادوالو او دنړی ټولو ولسونو ته هرچیرته او په هرهیواد کې چې میشته دي د 2000 کال دپیل دلومړی ورځې په مناسبت مبارکي وایم.

په ډیر درنښت.

په خپل ویاړلي هیواد کې دتل پاتې سوکالی

او دپښتوملي ژبې دلابریا په هیله

امام الدین ساپی

# فونيميك الفبيټ
# ( غږيزه آبېڅې )

| فونيميك | عادي | نوم |
|---|---|---|
| a | / فتحه | زور ، فتحه |
| ā | الف | الف |
| b | ب | بې |
| c | څ | څې |
| č | چ | چې |
| d | د | دې |
| ḍ | ډ | ډې |
| e | ی | اوږده ې |
| – | ه | زورکی |
| g | ګ | ګې |
| ɣ | غ | غې |
| h | هـ | هې |
| i | ي | لنډه ي |
| j | ځ | ځې |
| ǰ | ج | جې |
| k | ك | کې |

| فونيميك | عادي | نوم |
|---|---|---|
| l | ل | لې |
| m | م | مـــې |
| n | ن | نې |
| ṇ | ڼ | ڼې |
| o | و | اوږد ( و ) |
| p | پ | پې |
| r | ر | رې |
| ṛ | ړ | ړې |
| s | س | سې |
| š | ش | شې |
| ṣ | ښ | ښې |
| t | ت | تې |
| ṭ | ټ | ټې |
| u | و | لنډ ( و ) |
| w | و | بېواکه ( و ) |
| x | خ | خې |

| فونیمیك | عادي | نوم | فونیمیك | عادي | نوم |
|---|---|---|---|---|---|
| y | ی | ښواکه ( ی ) | ž | ژ | ژې |
| z | ز | زې | ay | ی | زوروالـه ی |
| z̧ | ډ | ډې | əy | ی | زورکې والا ی. |

# لنډیزونه

( اټ ) ایټلي
( ار ) اردو
( ان ) انګریزي
( بډ ) بډمانیز ( متضادالمعنی )
( پا ) پارسي ( فارسي )
( تر ) ترکي ( تورکي )
( ج ) جمع
( جر ) جرمني
( عر ) عربي
( فر ) فرانسي ، فرانسیسي

******

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِیۡمِ

# څو تخنیکي خبرې

ویاړم چې د پښتو پانګې ملګرو او نورو پښتو مینو په هڅونه او لګښت د پښتو سیندګیو په لړ کې دغه دویمه بریا د ټولو مینه والو مخې ته ږدم. له دې سره سره چې بره خوا درېکلنو جګړه ماریو او تالانګریو هر څه پر امو او اباسین لاهو کړل او په دې ناتار کې زما ځانګړی کتابتون له څه ناڅه شلو زرو کارتونو سره له خاورو او ایرو سره برابر شو چې پنځه زره یې یوازې همدغه نوېزونه وو. خو بیا هم له هماغو ژغورلیو سرچینو، اخځونو او توکونو ( موادو ) څخه دومره را ترلاسه شول چې له پخواني شمېره یې هم تېری وکړ او دغومره پنډ سیندګی ترې جوړ شو.

له دې دا راجوتېږي چې پښتو له دغه پلوه د نړېرو پرمختللیو ټولنو له ژبو سره سیالي کولای شي، او د دې تر څنګه دا هم زبات ته رسوي چې

دغې غرنۍ او تېرنۍ ژبې د نومهالې (ماډرنې) علمي ـ تخنیکي نړۍ د راخپلونې او سهنې (هضمْ) لپاره خپله پوره غېږ پرانېستې پرېښې او د خپل پراخ لیکزیکي پوتنسیال او ځواك له پلوه د داسې سیالۍ پوره پوره جوګه کېدای شي.

پښتو نیولوجیزم (نوې ویې رغاونه) د نورو ژوندیو ژبو غوندې تر اوږده ادبي ـ له امیر کروړ سوري تر امیر حمزه شینواري ـ پړاو وروسته نوی علمي ـ سېستماتیك دا پوره مخینه لري چې پیلامه یې د فرهنګیالي پښتانه واکمن امیر شیر علیخان (۱۸٦۸ ـ ۱۸۷۹ م د افغانستان باچا) له بولیو (commands) او اداري نومونو سره رانښلي او دلته یې یوازې هماغه غورې پوځي نومونې له نویو نویو بدلونونو سره راخوندي کړای شوې، په اماني پېر کې له پښتو مرکې او بیا په نادر ـ ظاهري پېر کې له پښتو ټولنې سره د تېرې پېړۍ نیولوجیزم لړ و ډېر څومره بیز او څرنګیز (کمی او کیفی) پرمختګ وکړ، خو په راوروستو دوو لسیزو کې یې له چټکو

سیاسي ادلونونو بدلونونو او د هغو په ملتیا له ډېرې چټکې خپرنی پراختیا او پرمختیا سره گرد سره یو خورا گړندي بشپړتیایی بهیر ته راگډ شو او بې کچه سیاسي، علمي، ایډیالوجیکي، دیني او فرهنگي نومونې یې زموږ د وروسته پاتې پښتو په برخه کړې چې دغه سیندگي یې تر ډېر ځایه ښکارندویي کولای شي. له بده مرغه چې نیولوجیزم په رادېخوا پښتونخوا کې پخپله د پښتو غوندې د پخوا په څېر د شاعرانو او لیکوالو له بریده نه دی راوتلې، لکه د حمزه صاحب سړیواله، مچواله، غېږ پرانیستی....، یا د کامل مومند صاحب سېکواله، پیرنگیواله، څنډه (حاشیه) ... او یا د بل کوم یو یوه نیمه څانتنی جوړونه، لکه ځیرنه، نورپرست... په سرکاري اډانه کې ویل کېږي چې یوازې مولانا عبدالقادر د پښتو اکېډمی او پښتو ټانگې د مشرتابه په راوروسته وختو کې د پښتو نیولوجیزم غږ پورته کړی و، خو یوه وفادار شاگرد هم ورسره خپل غږ نه و غبرگ کړی. ډېره د نهېلی خبره لا بیا

دا چې د دغې خوا ګڼ لیکوال، شاعران، او زده کړې والا پښتانه ډېر مشهور نوېزونه لکه پوهنتون، پوهنځی، ښوونځی، روغتون، زیږنتون، توغندی، ورځپاڼه، پریکړه لیك، سریزه، ډګروال، ژبپوهنه، پرمختګ، خپلواکي، هډو هیڅ نه پېژني او یا خو د مریيز (غلامي) ذهنیت له کبله یې پر ځای نیم انګریزي، نیم اردو او پارسی هغه غوره ګڼي، لکه: ترقي پسند، بنیاد پسند، کالم نګاري، سکول، کالج، یونیورسټي، هسپتال، شفاخانه، استحصال، نوآبادیت، دهشت ګردي، اقوام متحده، پیشنګویی، منشیات، همه ګیر، قومي اسمبلي، لسانیات، نفسیات، رومانویت....

دا نو په رښتیا هغه تش په نامه انګریزي ځپلي - اردو ځپلي روښاندان (انټېلېکچوال) دي چې ان پر خپلو بچو باندې هم پښتو ژبه او پښتو نومونه نه لوروي او واکمن ښکېلاك و ځبېښاك ته د غاړې اېښوونې (تسلیم طلبی) په توګه ورته تر شېرشاه، احمد شاه، میرویس، روښان، خوشال،

ایمل، بريالي، ننگيالي، توريالي، لمر، اتل، پسرلي، پلوشې، سپوږمۍ، وږمې، ملالۍ، گلالۍ، ښکلا، موسکا، څلا، برېښنا، زرينې، زرمينې... مغولي او شيعه نومونه، لکه: اورنگزېب، شاه جهان، جهانگير، عالمگير، رستم عليشاه، امجد علي، واجد على، على گوهر، گوهر علي، گوهر زمان، خورشيد، فرزند علي، خورشيد علي، آفتاب، لياقت علي، شکيل، شاه فيصل، شاه قيصر، شاه مسعود، عدنان، اشفاق، سکندر حيات، سکندر زمان، قمرالزمان، بدرالزمان، فخرالزمان، صديق زمان، عمر دراز، گلدراز، شير دراز، زرپوش، زرنوش، گلزار عالم، جهان عالم، ذوالفقار، سجاد علي، ساجد علي، سرتاج، زرتاج، تاجدار، بيدار بخت، بخت زمان، افضال، نورجهان، جهان آراء، لاله رخ، ماه رخ، گلرخ، در شهوار، مغول، مغل اعظم، شجاع الملك، فاتح الملك، رفيع الملك، فخر عالم، افتخار عالم، لايق زاده، مثال زاده، بدرالمنير، بدرالحکيم، احرار الحکيم، مشتاق الرحمن، چراغ حسين شاه،

نورالبشر ، شمس القمر ... غوره برښېي.

اړتیا او ضرورت:

د نوې ژبپوهنې له مخې دا د لمر غوندې جوته کړ شوې ده چې د هرې ژبې ویي پانگه (vocabulary) له څلور گونو رغنده ټوکونو (اجزاوو) څخه رغېدنه مومي:

۱ـ دیالکتیزمونه dialectisms (گـــړوېزونه) چې داړوندې ژبې په بېلا بېلو گړدودو (لهجو) کې ورځنۍ کاریدنه (استعمال) لري، لکه کور ، کالي ، ډوډی ، اوبه...

۲ـ ارکاییزمونه archaisms (زړوېزونه) چې په گړدودو کې چېری نیم نیمژوانده پاتې وي، یا یې گرد سره څرك نه لگي او تش په زړو ادبي او تاریخي لیکنو او متنو کې راخوندي شوي او یوازې دلیکوالو ، شاعرانو او ژورنالېستانو له خوا له اړتیا سره سم په لږو ډېر جولیز او مانیز بدلون کارول

کېږي او ورو ورو ګړنۍ ژبې ته هم لار پيدا کوي ، لکه نړۍ ، هېواد ، ويی ، يون ، وياړ ، اتل ....

هيستوريزمونه historisms ( هېروېزونه ) بيا هغو زړو وييونو ته وايي چې بيا راتاند او استعمال نه شي او همداسې تاريخي پاتې شي.

۳ـ نيولوجيزمونه neologisms ( نوېزونه )، دا هغه وييونه ( لغات ) دي چې دنيولوجيزم دنوې ويي زغاونې ) له لارې د ژبپوهنې او بيا ويي پوهنې او داړوندې علمي ، تخنيکي څانګې د ماهرانو له خوا په خپل لاس ( مصنوعي ) جوړېږي ، هغه هم د ترنګ او بېلنګ ( ترکيب و اشتقاق ) او تيارو مخبېلګو ( ماډلو ) له مخې ، لکه پوهنتون له ( پوهنه ) او ( تون ) څخه ديوه ترنګ يا ترکيب په توګه د مېږتون او يا توغندی ( راکټ ) ( دتوغولو ) له فعل څخه د بېلنګ په توګه د مخبېلګې ( ماډل ) پر بنسټ؛ يا غرنی ، وګړنی ، ژبنی ، ژبيز ، لنډيز ، سريزه ، پانګوال ، ځمکوال ... او يا لاسليک ، سرليک ، برخليک ، مخکتنه ، ژبپوهنه ، ټولنپوهنه ....

سېمانتيزمونه semantisms يا هغه وييونه چې تيار په ژبه کې په ټاکلو ماناوو کارول کېږي، خو ويي رغوونکی پکې مانيز بدلون راولي، هم له نيولوجيزمونو څخه ګڼل کېږي، لکه پند (نصيحت)، پخوانۍ مانا يې سفر، يا دريځ (موقف، پاليسي)، پخوانۍ مانا يې ممبر.

پور ژباړه (loan translation) د نيولوجيزم هم يو بل ډول ګڼل کېږي او مانا يې دا چې يو ويی يا نومونه (ټرم) له يوې ژبې څخه بلې (پوروړې) ژبې ته راوژباړل شي، لکه پوهنتون د دارلعلوم يا دارالفنون او دانشگاه يوه پور ژباړه ده چې د پښتو له ترښتي (ترکيبی) دود او قاعدې سره سم له (پوهنه) او (تون) (ځای) څخه رغول شوی دی.

٤. فارنيزمونه او اداپټېزمونه Foreignisms and adoptisms يا پوروييونه (پردي وييونه) د ژبنۍ پانګې څلورمه ډله وييونه دي چې له نورو ژبو څخه راپورېږي، داسې چې، که په پوروړې يا

اخیستونکې ژبه کې په هماغه آره (اصلي) جوله او مانا و کارول شي، فارنیز مونه (دخیل) بلل کېږي او که لږ و ډېر جولیز یا مانیز بدلون پکې راشي، یا په بله وینا، د پورورې ژبې له فونو لوجیکي او رغاونیزو (گرایمري) او یا هم له مانا پوهیزو آرونو (اصولو) سره اړخ ولگوي، نو بیا اډاپټیزمونه (لکه د پښتو په اړه «مفغن» او د فارسی په اړه «مفرس») نومول کېږي، خو څنگه چې هر راز پور وییونه که د ډېرو نژدې خپلوانو ژبو ترمینځه هم وي، هیڅکله بې بدلونه نه پاتېږي، نو له دې کبله یې لویدیز انډول زیاتره «اداپتیزمونه» کارول کېږي، لکه بېنك (بانك)، شمع (شمه). یوازې لیکلی جوله لکه ظلم یا قاضي... هم د دې پلمه نه شي کېدای چې آره جوله یې خوندي پاتې ده، ځکه وینگیزه (تلفظي) جوله یې له عربي وینگ څخه هرومرو لږ و ډېر توپیر لري.

نړیوېزونه internationalisms بیا په دغه لړ کې هغو نړۍ سراسر دود وییونو ته وايي چې لکه

ځانګړي نومونه په ډېره لږه استثناء په ټولو ژبو کې له لږ و ډېر جوليز بدلون سره کارول کېږي، لکه تيلېفون، ټېلېګراف، راديو (رېډيو)، تلوېزيون (ټېلوېژن)... چې جرمني، عربي، هندي، او يوې نېمې بلې ژبې ژباړلي دي.

په دې توګه د آرو پرنسيپ له مخې په هره ژبه کې د ويي پانګې له څلور ګونو برخو څخه لومړی درې برخې آره (اصلي) پانګه ګڼل کېږي او وروستۍ برخه يې پورنۍ يا عاريتي، په بله وينا بايد په سلو کې يې تر پنځو ويشتو پردی يا راپور کړې پانګه تېرې ونه کړي، که نه د اردو غوندې ترې يوه کنډيباغي «پتوا» جوړېږي او په پای کې له خپلې ټولنې څخه کورټه او سکوټه پردی کېږي. او که دغه څلورمه برخه، په سرچپه توګه بېخي له ژبې وکښل شي، نو خبره بيا پيوريزم (purism) ته رسي چې يوازې په بنسټپالو نېشنلېسټانو (فاشيستانو) اړه پيدا کوي. خو که څوک له خپلې درې ګونې (ګړدودي، لرغوني يا تاريخي او

رغښتي ) پانگې څخه له ژبني او نړیوال دود سره سم کار واخلي، هیڅکله پرې د پیوریست یا فاشیست تور لگېدای نه شي. د نوي جوړونې دواړه یا ټول رغښتي توکونه، بېلښتي ( اشتقاقي ) وي که تړښتي ( ترکیبي )، باید د اړوندې ژبې خپل مال وي او تر وسې وسې گډوله نه وي، لکه نمرپرست یا نورپرست چې ولسي تیارونه یې نمرگلی دی.

هو! که یو وخت ټوله نړی پر یوه هېواد بدله شوه او سیاسي پولې برېدونه له منځه ولاړل او له دې سره د اسپیرانتو (esperanto) غوندې یوه گډه نړیواله ژبه رامنځته شوه، بیا به نو ژبني سرحدونه هم ړنگېږي او څوك به دېته اړ نه وځي، نور د پورتنیو آرونو ( اصولو ) خیال وساتي او یا د خپلې «ملی» ژبې د ژوندی پاتېدو یا نه پاتېدو شه اندېښنه ولري.

راتلونکې یوویشتمې پېړۍ ته پښتو له هره پلوه سمبالول پکار دي او په تېره د معیارې لیکنۍ بڼې یا لیکلارې او د هر څه په سر کې یې بیا د

سیندونو (ډیکشنریو) او سیندگیو (جیبي ډیکشنریو) بشپړونه یو داسې اړین (ضروري) کار دی چې له دې پرته د ساینس او ټیکنالوجۍ له چټکو اوښتونونو سره د اړخ لگونې جوگه کېدای نه شي. په دې لړ کې د لومړي گام په توگه په کار ده، پښتو له یوې یوازینۍ کره لغوي او گرایمري بنې سره د نورو پرمختللو ژبو غوندې ژر تر ژره د کمپیوټر په الکترونیکي مغزو کې خپل ټاکلی ځای ځایگی پیدا کاندې.

هیله ده، دغه ۸ - ۱۰ زره راخوندي شوي نوېزونه د پښتو په نومهالې علمي - تخنیکي بهاینه او سیالۍ کې یو اغیزمن نقش ترسره کړي او تر بل چاپه پکې لا نوې زیاتونې او سمونې راشي.

پـوهــانــد زيــار

پېښور پوهنتون، پښتو څانگه

سپتېمبر، ۱۹۹۵

# ( الف )

**آبېځي** abecc : الفبې، الف بې تې، ( پا ) الف با تا، ( عر ) الفباء، ( ار ) حروف تهجی، قاعده، ( ان ) alphabet (ABC)

**آر** ar : آره، رښتينی، ( عر ) معيار، اصل، اصيل، قاعده، ( پا ) بنياد، شالوده، ( ان ) base, basis; origin, original; principle.

**آر پورويی** ár-por-wayay : ( په آره بڼه ) دخيل ويی ( لغت )، ( پا ) واژهٔ دخيل، ( ان ) domesticated word

**آر پوهه** ār-póha : د ويپونو دريښې راسپړنې علم، د اشتقاق علم، ( پا ) ريشه شناسی، ( عر ) فقة اللغته، ( ان )

etymology

**آر پوهيز** ār-póh-íz : دار پوهې اړوند ، ( پا ) مربوط ريشه شناسی ، ( ان ) اتيمالوجيکل .

**آرپېر** ā́r-per : اصلي حالت ( ګرامر ) ، ( ان ) (gram) direct case

**آر شمېر** ā́r-smer : اصلي شمېر ، ( پا ) عدد اصلی ، ( ان ) cardinal number

**آر کړ** ā́r-kaṛ : اصلي فعل ، ( پا ) فعل اصلی ، ( ان ) main verb

**آرليك** ār-lík : اصلي لکينه ، لمبسه ، لاسکښنه ، ( پا ) پېشنويس ، ( عر ) مسوده ، اصل ، ( ان ) manuscript, original

**آرمل** ār-mál : د اصيل ملګری ؛ اصل ملګری ، سهي دوست ، ( پا ) رفيق اصيل ، رفيق راستين/راصيل دوست .

**آرواصل** ā́r-o-ásal : آرو اصيل ، آرو رښتينی ، ( پا ) اصل و پرنسيپ ، اصيل و صديق . اصل و معيار .

**اروپا ګروهی** arupā-gróhay : اروپاپال ، ( پا ) اروپايی مشرب ، اروپايی ګرا .

**اروپايي ټولنه** arupā-yi-ṭolána : ( پا ) جامعه يا

اتحادیهٔ اروپا( یی )، ( ان ) European Community

**آرو رښتیني ژبني توکونه** : ā́r-o-rast-īni-žab-an-ī́-tokúna

د ژبې اصلي او رښتیني توکي، داصواتو او هیجاناتو په وړاندې، ( پا ) عناصر اصلی و حقیقی زبانی .

**آره** ā́ra : بنسټ، ځېله، ریښه؛ توکم، ( پا ) بنیاد؛ ریشه؛ نژاد؛ ( عر ) اساس؛ نسب ، ( ان ) root, race

**آره غونډله** ā́ra-ɣóndla : اصلي جمله، ( پا ) جملهٔ اصلی .

**آره یوستوې غونډله** ā́ra-gawastáwe-ɣóndla : اصلی ساده جمله، ( پا ) جمله سادهٔ اصلی، ( ان ) main simple sentence (clause)

**آره ويي بڼه** ā́ra-wayi- baṇa : دويي آره بڼه، ( پا ) صورت اصلی واژه، ( ان ) underlying form

**( د ) آریانا افغان هوایي شرکت** : (da)-āryānā-afɣā́n-hawāyí šerkat

Ariana Afghan Airlines co. ( ان )

**آریاني** āryān-í : د اریانا ( اریاییانو هېواد ) اړوند، ( پا ) آریانی، معادل اصطلاح «ایرانی» در افغانستان ( برای رفع

التباس )، ( ان ) aryanian

**آريايي** āryā-yī : داريا اړوند ، ( پا ) آريايي ، منسوب به اريا نژاد ، زبان ، فرهنگ ... )، ( ان ) aryan

**آرينزی** āryan-záy : دآرين له تېره ( لنډ نوم )، ( پا ) آرينزاد ( تخلص ).

**آرينمل** āṛyan-mál : دآرين ملگری ( لنډ نوم )، ( پا ) آريندوست ( تخلص ).

**آړ** āṛ : بنديز ، خنډ ، ( عر ) سد ، مانع ؛ شرط ، ( ار ) رکاوټ

**آړوتی** āṛ-wátay : ( پا ) شرط دار ، باقيد وشرط ، شرطی ، ( عر ) مشروط ، ( ان ) conditional, provisional

**آړوتی اړخ** āṛ-wátay-arx : شرطی اړخ ، ( پا ) وجه شرطی ( فعل )، ( ان ) conditional mood

**آړوتی خج** āṛ-wátay-xaǰ : مشروط فشار چې له گاونډيتوبه منځنه راځي ، ( پا ) تکيه يا فشار مشروط ، ( ان ) conditioned stress

**آړوتی غږ بدلون** āṛwátay-ɣaẓ-bad-lún : مشروط غږ بدلون ، لکه د گاونډي غږ تر اغيز لاندې ، ( پا ) ديگر گونی آوايی مشروط ، ( ان ) conditioned sound change.

**آړوتې غونډله** āṛ-wáte-ɣonḍla : شرطي جمله ، ( پا )

کمانډ ، کمان ، ( ان ) command

**بونګه** bongá : يرغملبيه ، ( پا ) پول ګروګانی .

**بوياره** buy-ā́ra : بېلګه ، پيلامه ، نښه ، څرك ، کنپل ، کرښپل ، ( پا ) نمونه ، نشانه ، کمترين نشانهٔ چيزی . ( ان ) secimem

**بهاو** bahā́w : بهېدنګ ، بهير ؛ رواني ، ( عر ) جريان ؛ سلاست .

**بهرنی** bahar-a-náy : ورچنيز ، دباندينی ، بلځايي ، پورژلی ( پورژنی ) ، ( پا ) بيرونی ؛ خارجی ( ج : بهرني ، بهرنيان ) ، ( ان ) فارېن ، فارېنر .

**بهرونه** bahar-a-wána : ( بهر ) وړنه ، ( عر ) صدور ، ( ان ) اېکسپورټ ( ج : بهرونې=صادرات ) .

**بهنځ** bahánj : بهنځی ، بهير ، ( پا ) بستر آب ، ( عر ) مجری ، مسير .

**بهير** bahír : جو په ؛ بهاو ، ( پا ) کاروان ؛ روند ( عر ) قافله ؛ جريان ؛ قطار ، ( ان ) کاروان ؛ پراسېس ، پروسه .

**بيابانګرځی** byā̄bā́n-gárjay : بيابان ګرځېدونکی ، ( پا ) بيابانګرد ، صحرا نورد .

**بيا بيا** byā́- byā́ : دويم ځلي ، بياځلي ، ( پا ) باربار ،

بطور مکرر ، تکراری ، ( عر ) مکرراً .

**بیا پېښې** byā-péṣay : بیا پېښېدونکی ، راغبرگېدونکی ، بیا ځلي ، ( پا ) تکراری .

**بیا پېښي** byā-peṣí : غبرگون ، بیا ځلي ، بیا پېښنگ ، ( پا ) دوباره گی ، ( عر ) تکرار .

**بیاپېښې اړخ** byā-péṣ-ay-aṛx : تکراری فعلی وجه ، ( پا ) وجه تکراری فعل ، ( ان ) iterative aspect

**بیا پېښې ترنگ** byā-péṣa-taṛang : ( دوییونو ) بیا ځلي ( تکراری ) ترنگ ( ترکیب ) ، ( پا ) ترکیب مکرر ( واژه شناسی ) ( ان ) iterative compound

**بیا پېښې کړ** byā-péṣ-ay- kaṛ : هغه کړ ( فعل ) چې د یوه کړن ( عمل ) تکرار ښیي ، ( پا ) فعل بسایند ، ( ان ) frequentative verb

**بیا پیلونه** byā- payl-aw-ána : بیا پیلونگ ، ( پا ) ازسر گیری ( مذکرات ) .

**بیا تاندي** byā-tānd-í : بیا تاندونه ، بیا تاندېدنه ، دوباره تازه کول ، ( پا ) تازه گی بخشی ، تازه گی دوباره( دادن ، یافتن ) .

**بیا چاپونه** byā-čāp-aw-ána : بیا ځلي ( دویم ځلي )

چاپ ( چاپونه )، ( پا ) چاپ دوباره، تجدید چاپ، چاپ تازه، تجدید طبع، ( ان ) reprint

**بیا ځانرغاونه** byā-jān-raɣāwána : بیا ځان جوړونه، ( پا ) باز سازی از خود.

**بیا ځلي** byā-jal-í : بیا پېښی، بیا پېښي، ( پا ) تکراری، تکرار ( عر ) مکرر.

**بیا ځواکي** byā-jwāk-í : بیا ځواکمني، بیا ځواکمنونه، ( پا ) باز توانی، تقویت دوباره.

**بې ارزښتي** be-arz-ast-í : ( پا ) بی ارزشی، بې ارزی، ( ار ) بېقدری، ( ان ) disvalue

**بیا رغاونه** byā-raɣāwána : بیارغونه، بیا جوړونه، بیا سازونه، ( پا ) باز سازی، نو سازی، ( ان ) restoration, rebuilding, rehabilitation

**بې آړوبې خنډه** be-āṛ-o-be-xánḍa : بی قیدو شرط، ( پا ) بی قید و شرط.

**بې اړې** be-áṛe : بې اړتیا، ( پا ) نا محتاج، غیر محتاج، بی نیاز.

**بې اړیکې** be-aṛíke : نااړیکن، نا اړونده، بی ربطه ( غږ پوهنه )، ( پا ) بی ربط ( ان ) irrelevant

**بې اړيکي** be-aṛikí : نااړوندي، نااړيکنوالى ( غږ پوهنه )، ( پا ) بى ربطى، ( ان ) irrelevance

**بیازېږد** byā-zéẓd : بیا ځلى زېږد، دويم ځلى زېږد ( زېږون، زېږېدونه )، ( پا ) زايش دوباره، تولد مجدد .

**بیاز بېږون** byā-zeẓ-ún : بیاز بېږونه؛ بیازېږېدنه، ( پا ) زايش ( تولد ) دوباره، ( ان ) rebirth

**بیاژواکي** byā-žwāk-í : بیاژونه، بیا ژوندي کول، ( پا ) باز زيستى، احياى دوباره، حيات بخشى، ( عر ) احياء، ( ان ) revivel restoring to life, rennissance

**بیا کارونه** byā-kār-aw-ána : بیا ځلي ( دويم ځلي )، کارونه ( استعمال )، ( پا ) کاربرد دوباره، استعمال دوباره

**بیا کتنه** byā-katána : بیا ليدنه، ( پا ) تجديد نظر، نظر ثانى، ( ان ) revision

**بیا کتونکى** byā-katúnkay : بیا ليدونکى، ( پا ) تجديد نظر کننده، نظر ثانى کننده .

**بیا ليکنه** byā-likána : بیا ليکون، ( پا ) باز نويسي ( ان ) rewriting

**بیا ليکون** byā-likún : بیا ليکنه، ( پا ) باز نويسى، مکرر نويسى، ( عر ) استنساخ ( ان ) re-writing

**بیاموندنه** byā-mondána : بیا میندنه ، ( پا ) باز یابی ،

**بیا ودانونه** byā-wadān-awána : بیا ابادونه ، ( پا ) اعمار مجدد ، تجدید عمران و آبادی ، ( ان ) reconstruction

**بې اوډوني** be-oḍ-un-í : بې ترتیبی ( ژبپوهنه ) ، ( پا ) بی رجی ، عدم ترتیب ، ( ان ) synchysis

**بیا وېینه** byā-wayána : ( وینا ) غبرگون ، بیا ځلي ویېنه ، دویمځلي وینا ، ( پا ) باز گو( یی ) ، بحث دوباره ، ( ان ) retelling, repetition

**بې اهنگه** be-ahánga : ( پا ) بدون آهنگ ، ( ان ) intonationless

**بې باوره** be-bāwár-a : ناویسا ، نا باوره ، ( پا ) بی اعتماد ، بی باور ، فاقد یقین .

**بې باوري** be-bāwar-í : نا باوري ، ناویسایي ، ( پا ) بې باوري ، عدم اعتماد ، سلب اعتماد .

**بې برخې** be-bárxe : بې برخلیکه ، ( پا ) بی بهره ، بد قسمت ؛ بې سرنوشت ، ( عر ) محروم .

**بې برخي** be-barx-í : بې برخیوالی ؛ بې برخلیکي ، ( پا ) بی بهره گي ، بد قسمتی ؛ بی سرنوشتی ، ( عر ) محرومیت .

**بې بنسټه** be-bansáṭa : بې سرو بوله ، بې بنیاده ،

دروغ، ( پا ) بې تهداب، بې اساس، بی سرو پا، دروغ.

**بې پاڼې** be-pāṇ-í : بې پاڼې والی، ( پا ) بې برگی.

**بې پته** be-páta : بی ننگه؛ بی عزته، سپك ورك، ( پا ) بې غیرت؛ بی مروت، بی آب، بی آبرو، بی حرمت، حقیر.

**بې پتې** be-páte : بې نښې نښانې، بې اډرسه، بې درکه، ( پا ) بدون نشانی، بی آدرس، ( ار ) لاپته.

**بې پتي** be-pat-í : بې ننگی؛ بې احترامی، سپکاوی ( پا ) بی مروتی؛ بی آبی، بی حرمتی، بی عزتی.

**بېپلوه** be-paláwa : بی پرې بې جنبې، ( پا ) بېطرف، غیر جانبدار، ( ان ) neutral

**بې پلوي** be-palaw-í : ( پا ) بېطرفی، ( ان ) neutrality

**بی توپیره** be-tawpíra : بې تفاوته، بی پروا، ( پا ) بی تفاوت، بی اعتناء

**بې توپیري** be-tawpir-í : بې توپیروالی، بې پروایي، ( پا ) بی تفاوتی، بی مسؤولیتی.

**بې توغه** be-twára : بېځواکه، بی لله، کمزوری، ( پا ) ناتوان، ضعیف، بی نیرو.

**بې توله** be-tóla : بې وزنه؛ بېخرته، بې حسابه ( پا )

بېوزن ، بې ريتم ( شعر ) ؛ بيحساب ، بې اندازه .

**بې تولي** be-tol-i : بېوزني ، ( پا ) بى وزنى ( در شعر ) .

**بېچار** be-čā́r : ( پا ) غير فعال ، مجهول ( فعل ) . ( ان ) pasive, voice

**بېچار پېر** be-čā́r-per : ناچاروال پېر ( حالت ) ، لكه په پښتوکې تېر مهال ( ماضى ) متعدي فعل کې چې د فاعل پر ځاى د مفعول تابع کېږي ( ځلمي منه وخوړه ) ، ( پا ) حالت مجهول ، حالت فعلى كه در ماضى متعدى فعل تابع مفعول ميگردد از جمله در زبان پښتو ، ( ان ) ergative case

**بېچار پېر غونډال** be-čā́r-per-ɣondā́l : بېچار پېرسېستم ، چې په يو لړ ژبو لكه پښتو او بلوڅى کې دود لري ، ( پا ) سستم يا نظام حالت مجهول ، ( ان ) ergative system

**بېچار ستاينوم** bečā́r-stāy-núm : بېچاکړ نوم ، مفعولى صفت ، ( پا ) صفت مفعولى ، ( ان ) past participle

**بېچار كړ** be-čā́r-kaṛ : مجهول فعل ، ( پا ) فعل مجهول ، ( ان ) passive verb

**بېچار كړ نوم** be-čā́r-kaṛ-núm : بېچار ستاينوم ، ( پا ) صفت مفعولى ، ( ان ) past participle

**بېچار نوم** be-čā́r-num : ( پا ) صفت مفعولى ، ( ان )

past participle

**بېځواکه** be-jwā́ka : ناتوان، کمزوری ، بې قدرته ، ( پا ) ناتوان ، بی قدرت ، بی نیرو .

**بېځواکي** be-jwāk-í : ناتواني ، کمزوري ، بې قدرتي ، ( پا ) ناتوانی ، بی قدرتی ، بی نیرویی ، عدم قدرت .

**بېخبنا** bex-benā́ : بنسټ ، ( پا ) زېربنا ، پایه ، ( ان ) basis, base, infrastructure, foundation

**بېخېندی** bex-band-áy : بنده کوڅه ، په ټپ ولاړه ( سیاسي لانجه یا خبرې ) ، ټپ ؛ ( پا ) بن بست ، ( ان ) cul-de-sac, dead end, impasse

**بې خجه** be-xáǰa : بې فشاره ( غږ پوهنه ) ، ( پا ) بی فشار ، بدون فشار ( آوا شناسی ) ، ( ان ) enclitic

**بې خجي** be-xaǰ-í : بې فشاري ( غږ پوهنه ) ، ( پا ) بی فشاری ( آواشناسی ) ، ( ان ) enclisis

**بی خرتې** be-xráṭe : بې موقع ، ( کار ) نابهنگام

**بې خرڅه** be-xárc-a : کم خرڅه ، بې پیسو ، تش لاس ، کم خرچ ، بېخرچ ، تهیدست ، ( عر ) مفلس

**بې خرڅي** be-xarc-í : تش لاسي ، ( پا ) بیخرچي ، مفلسی ، تهیدستی ، تنگدستي .

**بې خرخشې** be-xarxašé : بې اړنگه، بېشکه، ( پا ) بدون خدشه، بدون شك و شبه، بدون تردد، بی غل و غش.

**بېخلي** be-xal-í : بې خنډي، ( پا ) بېواسطه گی، حایل بودن.

**بېخ و بنسټ** béx- o-bansáṭ : سټ و کونسټ، آره او بنیاد، ( پا ) بیخ و بنیاد، بیخ و بن، کنه و ماهیت، اصل و نسب.

**بې خورمنه** be-xwar-mán-a : بې لوهې، بې مخې، کم لوهی، کم خورمنه، ( پا ) بی اشتهاء، کم اشتها.

**بې خورمني** be-xwar-man-í : بی لوهي، بي اشتهايي، بې میلی.

**بېدوده** be-dóda : بی قاعدې، ( پا ) بیقاعده، مستثنی، ( ان ) irregular

**بېدودي** be-dodí : بېقاعدگی ( پا ) بېقاعدگی، ( پا ) بېقاعده گی ( عر ) استثناء، ( ان ) irregularity, ereception

**بېدويه** be-dóya : بې قانونه، ( پا ) غیر قانونی، غیر مشروع، ( ان ) illegale

**بېدويي** bedoy-í : بې قانونی، ناروا، ( پا ) بی قانونی، ناروا.

**بېديا مېشتی** bedya-meštay : د بېديا اوسېدونکی، د

سارا استوگن ، ( پا ) بادیه نشین ، صحرا نشین .

**بېدينواله** be-din-wāla : بېدينولی ، ( پا ) الحاد گرایی ، ( عر ) الحاد ، ( ان ) atheism

**بېډاډه** be-ḍáḍa : نارام ، بې اطمینانه ، ( پا ) بی اطمینان ، غیر اطمینانی ، نامطمئن .

**بېډاډي** be-ḍāḍ-í : نارامي ؛ بې اطمیناني ، ( پا ) بی اطمینانی ، عدم اطمینان .

**بې ربړه** be-rábṛa : بې ستونزې ، بې زحمته ، په اسانه ، ( پا ) بدون زحمت ، به آسانی .

**بې ربړې** be-rábṛe : بې ربړه ، بې ستونزې ، بې پرابلمه ، ( پا ) بې تکلیف ، بدون زحمت ؛ بدون ( کدام ) معضله پرابلم .

**بیروبار** bir-o-bár : بهیروبار ( ! ) ، گڼه ، گڼه گوڼه ، سراوړه ، تېلما تېل ، ( پا ) بیروبار ، انبوهی ، ( عر ) ازدهام ، اجتماع .

**بېړندوی** beṛ-andóy : تلواري ؛ ترور ، ( پا ) شتابزده ، با عجله ، عجله کننده .

**بېړنی اکر** beṛ-an-áy-akár : بېړنی حالت ، اضطراري حالت ، ( پا ) حالت اضطراری ، ( ان ) emergency

**بېړنی خونه** beṛ-an-áy-xúna : تلوار خونه ، ( پا )

emergency room (ان) اطاق عاجل ،

**بیڕنی مرستە** beṛ-anáy-mrasta : سملاسي مرسته (مرستي)، هنگامي مرسته، (پا) کمك عاجل، کمك (های) فوری و اضطراری، (ار) ابتدائی امداد، (ان) urgent aid, first aid

**بیڕی چلند** beṛay-čalánd : بیڕی چلونه، (پا) کشتی رانی، کشتیرانی.

**بێزاوه** be-záwa : ناچار، اړ، (پا) ناچار، ناگزیر، (عر) مجبور.

**بې زغمه** be-zɣáma : کم چجوری، بی پیخه، بی صبره (پا) کم حوصله، بی حوصله، بی تحمل، بی صبر.

**بې ژبي** be-žáb-í : گونگوالی؛ بی خولي، (پا) بیزبانی.

**بې سا(ه)،** be-sá (h) : نا ساکښ، (پا) بیجان، (عر) غیر ذیروح.

**بېساری** be-sár-ay : بې جوړې، بې بېلگې، بی گوره، بې بهه، (پا) بی مانند، بیمثال، بیچون.

**بی سده** be-sád-a : بې سوله( بېعقله)؛ بېهوښه، بې

حاله، ( پا ) بی عقل، نابخرد؛ بیهوش، بېحال در حالت ضعف و بېهوشی ( کوما ).

**بېسدي** be-sad-í : خپګان؛ ساړوبي، بېهوښي؛ بې عقلي، ( پا ) اندوه؛ بیهوشی؛ بی عقلی، نابخردی.

**بې سروبوله** be-sar-o-bóla : بې بنسټه، بې بنیاده، دروغ ( پا ) بی اساس، بې سروپا، دروغ، دروغین.

**بې سروبولي** be-sar-o-bolí : بې بنسټي، دروغجنې، ( پا ) بی بنیادی، بی اساسی، بی سرو پایی، دروغ.

**بې سوله** be-sól-a : بې سده، نا معقوله، بې منطقه، ( پا ) غیر معقول، غیر ذیعقل، غیر منطقی.

**بې غږه** be-ǵáẓa : ناغږن ( اواز، فونیم )، ( پا ) بېصدا، بی آوا، بېواك، ( ان ) noiceless

**بېغږېدنګ** be-ǵaẓ-ed-áng : بې غږېدن، نا غږنوالی، ( پا ) بی آوا، بېواك شدن، ( ان ) devoicing

**بې کچ و میچه** be-káč-o-méča : ناپایه، بې کچه، بېخرته، ( پا ) بی حدوحصر، بی پایان، فروان.

**بې کچه** be-káča : بې ګچه، بېخرته، په پېخرو، ( پا ) بې اندازه، بی حدوحصر، نا محدود، ( عر ) غیر محدود، لا محدود، ( ان ) infinite,unlimited

**بېکوري** be-korí : ( پا ) بی خانه گی ، بېخانگی ، بی سرپناهی .

**بې گڼې** be-gáṇ-e : بی نمبره ، ( پا ) بی نمبر ، ( ان ) numberless

**بېلارې** be-lā́re : بدلاری ، بد لامی ، بدلغامی ، ( پا ) گمراه ، بد راه ، ( عر ) منحرف ، ضل .

**بېلاري** be-lārí : بدلاري ، بد لامي ، بد لغامي ، ( پا ) گمراهی ، ( عر ) ضلالت ، انحراف .

**بېلتونپال** beltun-pā́l : بېلتون خوښونکی ، ( پا ) جدایی گرا ، جدایی طلب ، ( ار ) علیداگی پسند ، ( ان ) separatist

**بېلتونپالنه** beltun-pālána : بېلتونواله ، بېلوالی بېلتون خوښونه ، ( پا ) جدایی گرایی ، جدایی طلبی ، ( ار ) علیداگی پسندی ، ( ان ) separatism

**بېلتون ځپلی** bel-tun-japál-ay : بېلتون زمولل ، ( پا ) فراق زده .

**بېلتون و پیوستون** beltún-o- paywastún : ( پا ) وصل و فصل ( در جریان گفتار ) .

**بېلتیا** bel-tyā́ : بېلاو ، ( پا ) ویژه‌گی ، ( عر ) ممیزه ، ( ان ) specification, purity

**بېلبښتتاړی** be-lásṭ-tấṛay : اشتقاقی تاړی ، ( پا ) وند اشتقاقی ، ( ان ) deriued afix

**بېلبښت ترڼگ** be-lấṣt-taṛáng : ببلښتي ترڼگ ، بیلیزترڼگ ، ( پا ) ترکیب اشتقاقی ، ( ان ) derivational compoud.

**بېلبښت سټه** belaṣt-sáṭa : اشتقاقی مونډیا سټه ، ( پا ) ستاك اشتقاقی .

**بېلبښتي** belaṣt-í : ببلیز ، ( پا ) اشتقاقی ، ( ان ) derivative

**بېلگاو** belgấw : متفرقه لگښت یا خرڅ ، ( پا ) مصرف ، خرج متفرقه .

**بېلگه** belgá : بولگه ، ساری ، ( پا ) الگو ، نمونه ، ( عر ) مثال ، ( ان ) instance, example

**بېلگه يي** belg**a-yí** : نمونه يي ، ( پا ) نمونه یی ، الگویی

**بېلنگ** belấng : ببلښت ، ( عر ) اشتقاق ، مشتق ، ( ان ) derivation

**بېلواله** bel-wấl-a : ببلتون پالنه ، ببلتونواله ، ( پا ) جدایی طلبی ، تجزیه طلبی ، ( ار ) علیدا پسندگی ، ( پا ) separatism

**بېلوره** be-láwra : بی غوره، بی پېرزو ؛ بې رحمه، بې ربله، ( پا ) بی رحم ؛ نا مهربان، بې مهر .

**بې لوهې** be-lóh-e : بې اشتها، ( پا ) بی اشتها، کم اشتها، ( ان ) anoretic, inappetent, not having appetite

**بې لوهي** be-loh-í : بې اشتهايی، ( پا ) بی اشتهايی، ( ان ) anorexia, inappetence

**بېل يې کړه - اېل يې کړه** bėl-ye-kṛa-ėl-ye-kṛa : ( پا ) تفرقه انداز و حکومت کن، ( ان ) divide and rule

**بېواکبڼه** be-wāk-báṇa : کنسوننتي بڼه، ( پا ) مختصهٔ همخوانی، ( ان ) consonental feature

**بې ليك لوستـه** be-lik-lwaśt-a : نالوستی، بی زده کړي، ( پا ) بېسواد، بی تعليم، ( ان ) illiterate

**بې ليك لوستي** be-lik-lwast-í : نالوستی، نا ليکلوستی، ( پا ) بېسوادی، ( ان ) illiteracy

**بې نوږي** be-nózi : بې جنس ( گريمر )، ( پا ) بې جنس، فاقد جنس ( گرامر )، ( ان ) genderless

**بې نوږي** be-noz-í : بې جنسي ( گرايمر )، ( پا ) فقدان

جنس ( گرامر ) ، ( جر ) geschlechtlosigkeit

**بې نوړي ژبه** be-nózi-žába : هغه ژبه چې گرايمري جنس ( نرينه ، ښځينه ، منځينه ) نه لري. لکه پارسي ، انگليسی .. ( پا ) زبان فاقد جنس ( تأنيث ، تذکير ، مخنث ) مثل خود پارسی ، ( ان ) genderless language

**بې نوړي نوم** be-nózi-num : هغه نوم ( اسم ) چې رنروښځې لپاره يو راز وي ، ( پا ) اسم فاقد جنس ، ( ان ) genderless noun

**بېواك ( غږ )** bewā́k-γaz : ( پا ) حرف صحيح ، همخوان ، صامت ، ( ان ) consonant

**بېواکغږ ليك** bewā́k-γaz-lík : -----> بېواك ليك

**بېواك ليك** bewāk-lík : هغه ليکني ( الفبايي ) سيستم چې يوازې د بېواکو اوازونو ( کنسوننټونو ) لپاره توري لري ، ( پا ) سيستم الفبايي منحصر به علامات ( حروف ) همخوانها ، ( ان ) consonantal writing

**بېواکوړی** be-wāk-wázay : بېواکغونډ ، د کنسوننټو غونچه ، ( پا ) خوشهٔ همخوان ، تجمع چند کنسوننت بدون واول ، ( ان ) cluster (phanetics)

**بېواکه غونډله** bewā́ka-γóndla : ځرمه يا مله

غونډله ( جمله )، ( پا ) جملهٔ فرعی، جملهٔ وابسته، ( ان ) subodinate clause

**بېواکېدنه** be-wāk-edána : واك بايلنه؛ د واوېل يا سيمې واوېل کنسوننتېدنه، ( پا ) مورد سلب اختيار واقع شدن؛ تبديل واکه يا نيمواکه به همخوان، ( ان ) to be unwilling; consonantization

**بېوړه** be-wáṛa : نانډوله، ( پا ) نامناسب، ناگوار، بې کفايت.

**بې يېبرې** be-yébre : بې ثمره، شنډ، ( پ ) بيحاصل، بی ثمر، بی بار، غير مثمر.

**بې يېبري** be-yebr-í : بې ثمري، شنډتيا، شنډوالی، ( پا ) بی ثمری، بی باری، بيحاصلی.

\+ + + +

# ( پ )

**پاتمړې** pāta-maṛe : پاتوړې ، ( پا ) مرده ريگ ، ( عر ) ميراث ، موروثه .

**پاتنى** pātanay : <-- پايند .

**پاتوړى** pāta-waṛay : ميراث خور ، ( پا ) ميراث خور ، ميراث بر ، ( عر ) وارث .

**پاتې شوني** pāte-šú-ni : پاتې شونې ، راپاتې شونې ، ( پا ) باقيمانده ، ( عر ) بقايا ، ( ان ) lestover, rest, remainings, remains

**پاتې كسان** pāte-kasān : ( دمړي ) پا توړي ، ( پا ) بازمانده گان .

**پاتېوالى** pāte-wāl-ay : ناكامي ؛ وروستوالى ، وروسته پاتېوالى ، ( پا ) ناكامى ؛ پسمانى ، پسمانده گى ، عقبمانده گى ، عدم پيشرفت .

**پاڅون** pācún : سرغړاوى ، ( پا ) رستاخيز ، برخاست ،

یاغیگری ، ( عر ) قیام ، ( ار ) بغاوت ، ( ان ) insurrection, revolt

**پاخونګر** pācun-gar : <--- پاخوني .

**پاخونوال** pācun-wal : <--- پاخوني .

**پاخوني** pāc-un-í : د پاخون ( قیام ) اړوند ، پاخونوال ، پاخونګر ؛ ( پا ) قیام کننده ، مربوط و یا منسوب به قیام ( رستاخیز ) .

**پار** par : برخه ، د شپږ له څلورو برخو څخه یوه برخه ، پاس ؛ ( پا ) پاس ، بهره ، ( عر ) لحاظ ، خاطر .

**پار( ه ) پېر** pā́r-(a)-per : مفعول له حالت ، ( پا ) حالت مفعول له ( ان ) destinative

**پارچاو** pārčáw : پرچاو ، بېکارونه ، ( د اوبو ، ژرندې ، بربېښنا ، فابریکې ... ) ، ( پا ) پارچاوی ، پرچوی ، ( ان ) لوړ شیږ .

**پارلمان ړنګول** parlamān-ṛang-awál : د پارلمان ( پارلمېنټ ) ورانول ، ( پا ) انحلال پارلمان ( مجلس شورا ) .

**پارند** pā́rand : پاروونکی ، ( پا ) هیجان آور ، ( عر ) مهیج ، ( ان ) emotive

**پار وینا** pā́r-waynā : پارنده یا پاروونکې ، وینا ، ( پا ) کلام مهیج ، ( ان ) emotive speech

**پارويي** par-wayáy : دپارونې لفظ ، پارون توکی ، ( پا ) کلمهٔ هیجان .

**پارويیزالواك** pār-way-íz-alwák : په دې مانا چې ژبه له هیجاناتو ( اغ ، وخ ، ویش ، . . ) څخه رغېدلی ده ، ( پا ) تیوری یا نظر واژگان هیجانی ، ( ان ) interjectional theory

**پارويیزه څیرله** pār-way-íza-círla : د هیجاني وییونو فقره ، ( پا ) گروه از واژگان هیجانی ، ( ان ) interjectional phrase

**پاړکی** páṛkay : پاټکی ، د لرگینې زینې پوړۍ؛ پاټکی ، ( ټولنیزه ) طبقه؛ قطعه ( شعر ) ، ( پا ) طبقه ( اجتماعی ) ، دسته ، ( ان ) a fragment; class

**پاړکیز** pāṛk-íz : د پاړکي اړوند ، پاټکیز ، ( پا ) طبقه یی ، طبقاتی .

**پاړکیزه جنگ جگړه** pāṛk-íza-ǰang-ǰagṛa : پاړکیزه مبارزه ( جد و جهد ) ، ( پا ) مبارزهٔ طبقاتی ، ( ار ) طبقاتی کشمکش ، طبقاتی جد و جهد ، ( ان ) class strugle

**پاړکیوال** pāṛki-wál : لاټول ، پاړکي ( قطعات ) جوړوونکی ، چندی ، ( عر ) شاعر ، ( ان ) poet

**پازپېژاند** pāz-pežánd : پازه ( وظيفه ) پېژندونکی ، زمنی ، ( پا ) وظيفه شناسی ، پابند وظيفه ، ( ار ) فرض شناس ، ( ان ) dutiful

**پازوال** pāz-wāĺ : د پازې ( وظيفی خاوند ) ، ( پا ) ذمه وار ، توظيف شده ، پاسخ گو ، جوابگو ، ( عر ) مؤظف ، مسؤول ، ( ان ) with a duty, responsible in charge,

**پازوالي** pāz-wāl-í : ذمه واري ، ( پا ) ذمه واری ، پاسخگويی ، ( عر ) مسؤوليت ، ( ان ) responsibility

**پاس شونډيز** pās-šunḍ-íz : په پاسنی شونډې ادا کېدونکی آواز ( فونيم ) ، ( پا ) واج ( صدايی ) که بالب بالا تلفظ ميشود ، ( ان ) upper labial

**پاسره گر** pāsra-gáŕ : پاسره وال ، زېرمه گر ، زېرمه وال ، بچت کوونکی ، ( پا ) صرفه جو ، پس انداز کننده ، اقتصادی ( عر ) مقتصد .

**پاس غاښيز** pās-ǵāṣ-íz : هغه اواز چی د پاسنيوغاښو په مرسته ويل کېږي لکه ( د ، ډ ، ت ، ن ، ڼ ) ، ( پا ) بالا دندانی ، ( ان ) upper dental

**پاسگر** pās-gáŕ : پاسللی ، منت بار ، ( پا ) سپاسگزار ، لحاظ دار ، ( عر ) ممنون ، مشکور .

**پاسلنليك** pāslan-lík : د منني ليك ، منليك ، ( پا ) سپاسنامه .

**پاسلنه** pās-lána : منت ايښوونه ، منت باري ، ( پا ) منت گذاری ، ( ار ) احسانمندی ، شکر گذاری ؛ ( ان ) thankfulness, gratefulness

**پاسوالزی** Pās-wāl-záy : شاهزی ، ( پا ) شهزاده ، ( ان ) prince

**پاسوالي** pās-wāl-í : ټولواکي ، پاچايي ؛ څوکيوالي ، ( پا ) پادشاهی ؛ پاسبانی ، پاسداری ، چوکېداری .

**پاسلونی** pās-lúnay : منت ايښوونکی ، ( پا ) منت گذار ، سپاسگذار .

**پاسليلی** pās-ley-ál-ay : منت بار ، پاسللی ، ( پا ) سپاسگزار ، ( عر ) ممنون .

**پاسوال** pās-wā́l : ټولواك ، پاچا ، واكمن ؛ ساتونکی ، څوکيوال ، ( پا ) پادشاه ؛ پاسبان ، پاسدار .

**پاکزړی** pāk-záṛ-ay : سپين زړی ، ( پا ) پاکدل ، پاك طينت .

**پاکسازي** pāk-sāz-í : پاك کاري ، نږه والی ، خالصونه ، ( پا ) پاك کاری ، پاکسازي ، ( عر ) تصفيه ، ( ار ) صفائی ، ( ان )

clearance, refinemeut, purism

**پاك كـاري** pāk-kā́r-ay : پاكساز ، سپېڅاند ، ( پا ) پاك كن ؛ تصفيه كننده ، پاكساز ، ( ان ) refiner, purist

**پاك كـاري** pāk-kār-ī́ : سپېڅنه ، پاكسازي ، ( پا ) پاك كارى ، پاك سازى ، ( عر ) تصفيه ، ( ان ) purism, clearance, refinement

**پاك كښنـه** pāk-kṣā́na : پاك ليكنه ، ( پا ) پا كنويسى .

**پاكلمنې** pāk-lamā́n-e : پاكلمنه ، تاونې ، د عفت مېرمن ، ( پا ) پاكدامن ( زن ) .

**پاكلمني** pāk-laman-ī́ : پاكوالى ، پاكلوښي ، ( پا ) پاكدامنى ، ( عر ) عفت ، عصمت .

**پاك لوښى** pāk-lṓṣ-ay : د پاكې لوښې ( خصلت ) خاوند ، درون خويه ، پاك خويه ، ( پا ) نيكخو ، نيكخصال ، پاك نهاد ، پاك سرشت .

**پـالنځى** pālan-jáy : پالنتون ، مرستون ، روزنځى ( د بې كالخوا ماشومانو لپاره ) ، ( پا ) پرورشگاه براى اطفال بى سر پرست ، ( عر ) دارالیتام ، ( ار ) دارالامان ( وطن پالنځى : پرورشگاه وطن ) .

**پـالندوى** pāl-an-dóy : پالونكى ، باميالى ؛ دخارندوى

( سکوټ ) پوهنتوني پوړی، ( پا ) پرورشگر ، پرورد‌گار ، پیش آهنگ به درجهٔ دانشگاهی .

**پالوال** pāl-wā́l : پرهیز گار ، وفادار ، ( پا ) پرهیز گار ، وفادار .

**پالیال** pāl-yā́l : پالیالی ، ( پا ) پرورشگر ، پرورد‌گار .

**پاملرنه** pām-larána : پام ساتنه ، خیال ساتنه ، څیرتیا ، ( پا ) رسیده گی ، هوشیاری ، ( عر ) توجه ، اهتمام ، مواظبت ، التفات ، ( ان ) care, attention .

**پاموړ** pām-wáṛ : د پام وړ ، ( پا ) قابل دقت ، قابل توجه ، مورد توجه ، مورد ملاحظه .

**پامیالی** pām-yāláy : ویښیار ، څیرمن ، ( پا ) با توجه ، با دقت ، با احتیاط ، ( عر ) متوجه ، دقیق ، محتاط ، ملتفت ، مهتمم .

**پانگارتی** pāng-ártay : پانگا چوونکی ، پانگه اچوونکی ، ( پا ) سرمایه گذار ، ( ار ) سرمایه کار ، ( ان ) investor

**پانگ ارتی** pāng-artáy : پانگ اچوانه ، پانگه اچوانه ، ( پا ) سرمایه گذاري ، ( ار ) سرمایه کاری ، ( ان ) investmtnt

**پانگواك** pāng-wā́k : پانگواکی ، ( پا ) سرمایه سالار ،

( ار ) سامراجی ، ( ان ) imperialist

**پانگواکي** pāng-wākí : د پانگې واکمني ، پانگواکمني ،
( پا ) سرمایه سالاري ، ( ار ) سامراج ، ( ان ) imperialism

**پانگوال** pang-wal : دپانگې خاوند ، ( پا ) سرمایه دار ،
( ان ) capitalist

**پانگواله** pāng-wāla : پانگوالي ، ( پا ) سرمایه داری ،
( ان ) capitalism

**پانگوالي ودې لار** pāng-wal-í wáde-lár : د
پانگوالې ودې لار ، ( پا ) راه رشد سرمایه داری ،

**پانگیز** pāng-íz : پانگوالي ، د پانگې اړوند ، ( پا )
سرمایه داری ، سرمایه یي ، مربوط سرمایه ،

**پاڼرېژ** pāṇ-réž : منی ، پاڼې تویېدنه ، ( پا ) برگ رېزان ،
خزان ؛ برگرېزی ،

**پاڼرېژې ونې** pāṇ-réže-wáne : پاڼې تویوونکې ونې
( په مني او ژمي کې ) ، ( پا ) درختان برگرېز .

**پاڼوځی** pā́ṇo-jáy : قرطاسیه ( لیك اوزار ) خرخونه ،
( پا ) قرطاسیه فروشی ، ( ان ) stationery, mart (shop)

**پاوتل** pā́w-tál : ( پا ) ته نشین ، درد .

**پای بېواکوړی** pā́y-bewāk-wáẓay : مغه

ببواکغونږ چې د یوه ويي پای ته راغلی وي، ( پا ) خوشهٔ همخوانها در اخر واژه ( کلمه )، اجتماع حروف صیحح در آخر کلمه، ( ان ) final cluster

**پای ټکی** Pā́y-ṭákay : د پای ټکی، وروستی ټکی، ( پا ) نقطهٔ آنجامی، ( ار ) حرف آخر .

**پایځوړ** Pāy-cóṛ : پایله، پایلیزه، ( پا ) دنباله، آنجامیه، ( عر ) خاتمه، تعلیق ( تعلیقات ).

**پای خج** Pay-xaj : هغه فشار چې دیوه ويي یا بلې ژبنی توټې پای ته راغلی وي، اخرنی فشار، ( پا ) فشار آنجامی، ( ان ) final accent

**پایلغونډله** Pāyl-ɣóndla : نتیجه لرونکې جمله، ( پا ) جملهٔ منتج، جمله هدفیه، ( ان ) consequence clause

**پایلنیوی** Pāyl-niwáy : نتیجه اخیستنه، جاج اخیستنه، ( پا ) نتیجه گیری، ( ار ) نتیجه، اختتام، ( عر ) استنتاج. ( ان ) concluding . conclusion

**پایله** pā́y-la : د پښوگانه، پای، ( پا ) پایان، انجام، پایزیب، ( عر ) خاتمه، نتیجه، عقوبت، عاقبت، ( ان ) conclusion, result, end, ending

**پایله غونډله :** pāyla-ɣóndla : <--- پایلغونډله

**پایلیزه** pāy-líza : پایله ، ( پا ) خاتمه ( کتاب ) ، ( ار ) نتیجه ، خاتمه ، منتج ، ( ان ) conclusion

**پایلیك** Pāy-lík : فوټ نوټ ؛ د پوهنتوني زده کړو د پای رساله ، ( پا ) پاورقی ، زیر نویسی ؛ پایاننامه ، ( ان ) footnoting, footnote, thesis

**پایمخ** pāy-max : ترپای د مخه ، له وروستی خوا دویم ، ( پا ) از طرف اخر دوم ، ( عر ) ماقبل الاخر ، ( ان ) second last

**پایمخ خج** pāy-máx-xaǰ : هغه فشار چې د یوه ویي ( کلمې ) پر ماقبل الاخره څپه ( هجاء ) راغلی وي ؛ فشار ماقبل آخر .

**پایند** Pāy-and : پایښتي ، پاتنی ، ( پا ) پایا ، پاینده ، دوامدار ، جاوید ، ( عر ) باقی ، متداوم .

**پاینه** pāy-ána : پایښت ، ( پا ) پایایی ، پایش ، ( عر ) بقاء ، دوام ، ادامه .

**پتلیك** Pat-lík : پته لیك ، ( پا ) نشانی نامه ، آدرس ( نامه ) ، ( ان ) address

**پتمن** Pat-mán : پتوال ، پتیال ، کېسمن ، دروند ، عزتمن ، د درناوي ښښتن ، ( پا ) آبرومند ، برومند ، با شرف ، گرامی ، ( عر )

شریف ، معزز ، مکرم .

**پتنگ وزمه** patang-wázma : پتنگ ورته ، د پتنگ غوندې ، ( پا ) پروانه وار ، پروانه وش .

**پتنه گر** Patna-gár : فتنه گار ، پتنه یي ، ( پا ) فتنه گر ، فتنه انگیز ، ( عر ) مفتن ، شریر .

**پتوال** Pat-wā́l : پتمن ، پتیال ، پتیالی ، عزتمن ، ( پا ) آبرومند ، با آبرو ، با شرف ، ( عر ) شریف ، عزیز ، معزز ، مکرم .

**پتیالی** pat-yāláy : <--- پتوال .

**پتېينه** Pate-yana : موډ ، نمات ، وېلاړ ، ( عر ) تصمیم ، عزم ، اراده ( مصدر : پتېيل ) .

**پټپوهاند** Paṭ-pohā́nd : غیب پوه ، ( پا ) غیب شناس ، دانای غیب ، ( عر ) عالم الغیب .

**پټکاری** Paṭ-kā́r-ay : پټچاری ، ( پا ) نهانکار ، ( ار ) زمین دوز ، ( ان ) underground, underhand, hidden

**پټکاري** Paṭ-kār-í : پټچاري ، ( پا.) نهانکاري .

**پټنځای** paṭan-jā́y : پټونی ، ( پا ) مخفیگاه ، کمینگاه .

**پټنځی** Paṭan-jáy : پټونی ؛ ځوی ، ( پا ) مخفیگاه ؛ کمینگاه .

**پټولن** paṭ-wlán : پټ مینځی ، ( عر ) استنجاء .

**پټه** paṭa : دټېپ او کسېټ فيته ، ( پا ) نوار ( ضبط صوت ) ، ( ان ) strip; tape

**پخساکګر** Paxsāk-gár : قهرژلی ، کاوړي ، ( پا ) غصه ناك ، خشم آلود ، خشمگين .

**پخاولی** pax-āw-láy : پخوونکی ، پخوونی ، ( پا ) آشپز ، ( ار ) باورچی ، ( ان ) cook

**پخلاګر** Pəxlā-gár : پخلا کوونکی ، روغوال ، ( پا ) آشتی دهنده .

**پخلاینه** poxlā-yána : پخلا توب ، ( پا ) آشتی ، ( عر ) مصالحه ، صلاح .

**پخلنځی** Pax-lan-jáy : پخلي ځای ، پخلوځی ، پخليځی ، پخلنغ ، ( پا ) آشپز خانه ، ( ار ) باورچی خانه ، ( عر ) مطبخ ، ( ان ) kitchen

**پخلی** paxláy : پخونه ، نغوره ؛ تاييد ، ( پا ) پخت و پز ، آشپزی ؛ تائيد ( سخن ، پيشنهاد ، مطالبه ، اراده . . . ) .

**پخوونی** pax-awúnay : پخوونکی ، پخليکار ، ( پا ) آشپز ، ( ار ) باورچی ، ( عر ) طباخ ، ( ان ) cook

**پد لويی** Pádal-wayáy : تحريمی ويی ( لغت ) ، ( پا ) واژهٔ تحريمی ( ان ) taboo

**پراخ بنسته** P(a) rāx-bansáṭa : پراخ بنستی، پراخ بنیاده، ( عر ) وسیع البنیاد، ( پا ) باپایه های وسیع، ( ان ) broad barsed

**پراختیا** Prāx-tyā́ : پراخي، ( پا ) گسترش، گسترده گی، ( ار ) توسع، وسعت ( ان ) extention, expansion

**پراختیا پال** prax-tyā-pál : پراختیا غوښتونکی، ( پا ) توسعه طلب، توسعه گرا، توسعه خواه، توسعه جو، ( ار ) توسیع طلب، توسیع پسند، ( ان ) expansionist

**پراختیا واله** prāx-tyā-wā́la : پراختیا غوښتنه، ( پا ) توسعه خواهی، توسعه طلبی، توسعه گرایی، توسعه جویی، ( ار ) توسیع پسندي، ( ان ) expansionism

**پراختیایي** prāx-tyā-yí : ( پا ) گسترشی، توسعه یي، ( ار ) توسیعی، ( ان ) expansional

**پراختیایي سیاست** prāx-tyā-yi-syāsat : سیاست توسعه طلبانه، ( ان ) expansionistic policy

**پراخ تندی** prāx-ṭánḍ-ay : پراخ تندی، ورینی؛ نېکمرغه، ( پا ) با پیشانی فراخ، خوشخوی؛ خوش نصیب، نېکبخت، ( عر ) بشاش، مسعود.

**پرانسي** prāns-í : فرانسی، دپرانس ( فرانس ) اړوند،

فرانسېسي، پرانسي ژبه، ( پا ) فرانسوی، فرانسه، ( ان ) (french)

**پرانیستونکې وینا** prānist-únke-waynā : افتتاحیه وینا، ( پا ) بیانیهٔ افتتاحیه.

**پرانیسته** prānísta : پرانیستنه، ( پا ) گشایش، ( عر ) افتتاح.

**پرانیستی لیك** pranist-ay-lik : سر پرانیستی لیك، سر واز لیك، سر خلاصی لیك، ( پا ) نامهٔ سر گشاده، ( ان ) open letter

**پرتلاند** partal-ānd : ( پا ) حسابگر قیاسی، ( ان ) analogue computer

**پرتلوال** prtal-wāl : نسبیت خوښی، ( پا ) نسبی گرا، relativist ( ان )

**پرتلواله** partal-wāl : نسبیت خوښونه، ( پا ) نسبی گرایی. ( ان ) relativism

**پرتله** par-talá : انډول، انډولونه، انډولتیا، ( پا ) برابری، ( عر ) مقایسه، مقابله، تناسب، ( ان ) comparison, equation, symmetry, relationship

**پرتلیز** partal-íz : د پرتلې په ډول، ( پا ) نسبی گرانه،

مقايسي ، ( ار ) اضافي ، ( عر ) مقايسوی ، مقابلوی ، ( ان ) comparative, relative

**پرتليزه پښويه** partal-íza-paṣóya : مقايسي گرايمر ، ( پا ) دستور مقايسي ، ( ان ) comperative grammar

**پرتليزه ژبپوهنه** partal-íza-žab-pohána : انډوليزه ( مقايسي ) ژبپوهنه ، ( پا ) زبانشناسي مقايسي ، ( ان ) comparative linguistics

**پرتمناك** partam-nák : پرتمين ، ( پا ) هيبت ناك ، پر از هيبت .

**پرتمين** partam-ín : پرتمناك ، برمن ، ( پا ) شكوهمند ، پر شكوه ، شاندار .

**پرتند غبرگغږ** Prátand-ǵbarg-ǵaẓ : ( په غږ پوهنه كې پر ېو تونكى يا غورځېدونكى غبرگغږ ( ډايفتانگ ) ، ( پا ) آواى تركيبى افتان ( آواشناسى ) ، ( ان ) falling diphthong

**پرتند اهنگ** prát-and-aháng : پرېوتونكى آهنگ ( په جمله كې ) ، ( پا ) آهنگ افتان ، ( ان ) falling tone

**پرته ليكه** Pratá-líka : افقى ليكه ، ( پا ) خط افقى ، ( ار ) افقى خط ، ( ان ) horizontal line

**پرځېدنه (را)** Parjedána (râ) : غورځېدنه، تسکورېدنه، سقوط کول، له پښو غورځېدل، ( پا ) از پا در آمدن ( در قدرت سیاسی)، ( عر ) سقوط، ( ان) fall of government

**پرده پوښ** parda-póṣ : پرده ساتی، ( پا ) پرده پوش، پرده دار، کتمان کننده.

**پرده پوښي** parda-poṣ-í : پوښلتیا، پټوالی، ( پا ) پرده پوشی، پوشیده گی، ( عر ) کتمان.

**پردی پال** praday-pál : بیگانه پال، ( پا ) بیگانه پرور، بیگانه پرست.

**پردیپالنه** pradi-pâl-ána : پردیواله، ( پا ) بیگانه پرستی.

**پرشا تگ** Par-šā-tág : شاتگ، ( پا ) پسمانی، پسمانده گی؛ عقبگردی؛ عقب نشینی، بر گشت، سیر قهقرایی، ( عر ) ارتجاع، ( ار ) شکست، رجعت، ( ان) retreat, regress, revision

**پرشاتگپال** Par-šā-tag-pâl : پر شا تگی، پرشاتگ خوښی، ( پا ) عقب گرا، ارتجاع پسند، ( ار ) ترمیم پسند، رجعت پسند، ( ان) regressive, revisionist retroactive,

**پر شاتگواله** Par-šā-tag-wāla : پرشاتګپالنه ، ( پا )
عقب گرایی ، ارتجاع پسندی ، برگشت ، سیر قهقرایی ، ( ان )
regression, revisionism

**پرشاتګی** par-šā-tágay : پرشاتلونکی ، ( پا ) ارتجاعی ،
عقب گرا ، عقب نشین ( عر ) مرتجع ، ( ان ) retral, reviser
regressive

**پر شا تګې همرنګي**
: par-šā-tage-ham-rang-í پرشاتلونکې همرنګي ( غږ
پوهنه ) ، ( پا ) همگونی رجعتی ، ( ان ) regressive
assimilation

**پر شا تمبونه** Par-šā-tamb-awána : شاته تمبونه ،
( پا ) عقب رانی ، ( ان ) push back

**پربښته** parasta : پرېښته ، ( پا ) فرشته ، ( عر ) ملك ،
( ان ) angel

**پرغز ناك** Parɣaz-nāk : قهر ژلی ؛ قهرېدلی ، ( پا )
غضبناك ، غضب آلود ؛ عصبناك ، عصبانی .

**پرغزي** parɣaz-í : عصبی ، ( ر ) پارېدونکی ، ( پا )
عصبانی ، عصبناك .

**پرګنوال** parganwāl : دپرګنو مل ، ( پا ) توده گرا ،

مردم دوست ، ( ار ) عوام دوست ، ( ان ) communal

**پرگنواله** Pargan-wāĺa : کمیونیزم ، ( پا ) کمونیزم ، توده گرایی ، ( ان ) communism .

**پرگنه** Parganá : ولس ، وگړ ډله ، وگړي ، ( پا ) توده ( مردم ) ، ( ار ) عوام ، ( ان ) the mass of the people

**پرگنیز** Pargan-íz : ولسی ، وگړیز ، وگړنی ؛ کمیونېسټ ، ( پا ) توده ای ، مردمی ؛ کمونست ، ( ان ) Communal, communist

**پر گونډو کول** Par-góndo-kaw-ál : اړلول ، ماتول ، ( پا ) به زانو در آوردن ، ( ان ) kneel down to hield ، پرگونډوکېدل : بزانو آمدن .

**پرله باندې جوړښتونه** parla-bānde-ǰoṛ-aṣt-úna : دژبپوهنې یوه نومونه ، ( پا ) ساختمانهای رویهم قرار گرفته ( مطبق ) ، ( ان ) hierarchical structure

**پرله پسې** Parla-psé : یو بل پسې ، یو مخیر ، پیهم ، پیگیرانه ، ( پا ) دنباله دار ، ( عر ) مسلسل ، ( ار ) سلسله وار ( پر له پسې پرامه ) دی مار ، ( ان ) serial

**پرله پسې داستان** parla-psé-dāstán : څوبرخیز

یا څو ټوکیز داستان ( افسانه )، ( پا ) داستان مسلسل یا دنباله دار .

**پرله پسېوالی** párla-pse-wā́l-ay :پيوستون ، پيوستوالی ، ( پا ) پيوستگی ، ( عر ) تسلسل ، تعاقب .

**پرله پورې** parla-póre : پله پورې ، بله پورې ، پرله پېيلی ، پرله پسې ، پرله غښتی ، ( پا ) پيوست ، پيهم ، پيگير ، پيگيرانه ، يکی بعد ديگر ، بسيج ، ( عر ) مسلسل ، متصل ، منظم .

**پرله پېيلی** Parla-peyál-ay : ---> پرله پورې .

**پرله پېيلتيا** Parla-peyaltyá : اوډون ، ( پا ) بسيج نظم و نسق ، ( عر ) تنظيم ، نظم ، ترتيب .

**پر له .غښتی** parla-ǵáṣt-ay : پرله پېيلی ، ( پا ) دارای نظم و نسق ، ( عر ) منظم ، منسجم .

**پرله غښتيا** parla-ǵaṣtyá : پرله پېيلتيا ، ( پا ) نظم و نسق ، ( عر ) انسجام .

**پرمختگ** par-max-tág : پرمختيا ، وړاندې تگ ، پرمخيون ، ( پا ) پيشرفت ، ترقی ، ( ان ) progress

**پرمختگپال** par-max-tag-pā́l : پرمختگ خوښوونکی ، ( پا ) ترقيخواه ، مترقی ، ( ار ) ترقی پسند ، ( ان ) progressive

**پرمختگواله** par-max-tag-wā́la : پرمختگپالنه، ( پا ) ترقیخواهی، ( ار ) ترقی پسندی.

**پرمختگې همرنگي** par-max-tág-e-hamrang-i : همگونی رجعتی، ( ان ) progressive assimilation

**پرمختلی** par-max-tál-ay : پرمختللی، پرمختگپال، ( پا ) ترقیخواه، ( عر ) مترقی.

**پرمختیا** par-may-tyā́ : پرمختگ، ( پا ) پیشرفت، ( عر ) انکشاف، ارتقاء، ( ان ) development

**پرمختیايي** par-max-tyā-yí : ( پا ) انکشافی، ارتقائی، رو به انکشاف.

**پرمختیايي هېوادونه** par-max-tyā-yi-hewāduna : مخ پر ودې هېوادونه، ( پا ) کشور های رو به انکشاف.

**پر مخه دې ښه!** par-máxa-de-ṣá : ( د ) خدای پامان! مخه دې ښه ( ج! پر مخه مو ښه)! ( پا ) خدا حافظ!

**پرمخیون** par-max-yún : پرمختلون، پرمختګ، وړاندې تګ، ( پا ) پیشرفت، پیشروی.

**پروان مېنه**Parwā́n-Ména : د کابل ښار یوه کالونې ( کارته ).

**پرېژه** préža : ( عر ) طلاق.

**پرېښه** préṣa : ( پا+ عر ) اجازه، اجازت.

**پرېکړونی** pre-kṛ-ún-ay : غوځ، پرېکنده ( ځواب، خبره...)، ( پا ) قاطع ( جواب، سخن...)

**پرېکړه** pré-kṛa : پرېکون، پرېکړون، ( عر ) فیصله، ( ار ) قرار داد، ( ان) resulation

**پرېکړه لیک** prakṛa-lík : فیصله لیک، ( پا ) فیصله نامه، قطعنامه.

**پزڅپونی** páz-caponay : دپزې ( پوزې) څپونی ( دستمال، رومال )، ( پا ) دستمال بینی.

**پز ویندی** paz-wínd-ay : چې له پزې یې وینه ځي، ( پا ) خون بینی، خون دماغ.

**پز ویندي** paz-wind-í : دپزې وینې کېدنه، ( پا ) خون

دماغ، ( ان ) bleeding at the nose, nasal hemorrhage

**پزیز** paz-íz : پزنی، ( پا ) انفی، ( ان ) nasal

**پژساتی** paž-sắt-ay : دچا د ځان ساتونکی، ( پا ) محافظ شخص، نگهبان یا هنگ ویژه، ( ان ) body-guard

**پژساز** paž-sắz : پژی ( مجسمه ) جوړوونکی، ( پا ) مجسمه ( تندس ) ساز، پیکره ساز، ( ان ) sculptor

**پژسازي** paž-saz-í : پژی جوړونه، ( پا ) مجسمه سازی، پیکره سازی، ( ان ) sculpture

**پژ نوم** paž-núm : پژ ویی، ( پا ) اسم ذات، ( ان ) concrete noun

**پژنی** paž-anáy : بدنی، جسمی، ځانی، ( پا ) بدنی، جسمی، جسمانی.

**پژی** pažáy : کنډه، ( پا ) تندیس، پیکره، ( عر ) مجسمه.

**پژیز** paž-íz : <-- پژنی.

**پړی** pázay : پژی، ځان، ځاندره، دړه، ( پا ) پیکر ( عر ) بدن، وجود، جسم.

**پسرلنی** p(a)sarl-anáy : دپسرلي اړونده بولله ( شعر، قصیده )، ( پا ) بهاریه.

**پسرلنیز** psarl-an-íz : پسرلنی، دپسرلي ( سپرلي )

اړوند ، ( پا ) بهاری .

**پښتپوهاند** pașt-poh-ā́nd : دپښتپوهنې څانګوال ، د علم الانساب ماهر ، ( پا ) نسب شناس ، ( ان ) جېنولوجېست .

**پښتپوهنه** pașt-poh-ána : ( پا ) نسب شناسی ، جینالوجی .

**پښتني** pașt-an-í : پښتنی ، دپښتون اړوند ( متعلق ) ، ( پا ) پښتنی .

**پښتني تجارتي بانك** pastan-í-tejārat-í-bānk : يو افغانی بېنك ، ( پا ) یکی از بانکهای افغانی .

**پښتو ادبي جرګه** pașto-adab-í-jargá : ( پا ) انجمن ادبي پشتو ، ( ان ) pashto lit. association

**پښتو پال** pașto-pā́l :مغه چې پښتو پالي ، ( پا ) پرورش دهنده و هوا خواه زبان پشتو ( و ارزشهای پشتونی ) .

**پښتو پانګه** pașto-pā́nga :پښتو زېرمه ( د کتاب نوم ) ، ( پا ) «ذخیرهٔ پشتو» ( نام کتاب ) .

**پښتو پښويه** pașto-pașóya :پښتو ګرايمر ( د يو کتاب نوم ) ، ( پا ) «دستور پشتو» ( نام کتاب ) .

**پښتو پوهنه** pașto-pohā́na :د پښتو ژبې او ادب

اړونده پوهنه ، ( پا ) پشتو شناسی .

**پښتو ټولنه** paṣto-ṭolána :( پا ) «انجمن پشتو » ( در افغانستان ) .

**پښتو څانګه** paṣto-cánga :پښتو ډیپارټمنټ ، ( پا ) شعبهٔ ( دیپارتمنت ) پشتو .

**پښتو روزنه** paṣto-rozána :پښتو پالنه ( د یوه کتاب نوم ) ، «پرورش پشتو » ( نام کتاب ) .

**پښتو سیند** paṣtó-sind :( د قاموس نوم ) ، پښتو قاموس ، ( پا ) «فرهنګ پشتو » ، سیند ترجمه و معادل قاموس در پشتو میباشد .

**پښتو سیندګی** paṣtó-sind-gáy : ---> سیندګی .

**پښتو لیکلار** paṣtó-lik-lár :د کتاب نوم ، پښتو سبك ، پښتو لیکدود ( ناکره ) ، ( پا ) سبك ( طرز نګارش ) پشتو «نام کتاب » .

**پښتو مین** paṣto-mayán :پر پښتو مین ، ( پا ) پشتو دوست ، دوستدار پشتو .

**پښتونستان** paṣtun-istán :د کوزې پښتونخوا پخوانی ( بدل ) نوم ، ( پا ) پشتونستان ، نام علی البدل پشتونخوا ، منطقهٔ پشتون نشین پاکستان .

**پښتونمل** paṣtun-mál :( پا ) پشتونيار ·

**پښتون مېشتی** paṣtun-mĕst-ay پښتون زونی ، د پښتنو مېشتځای ، ( پا ) ( منطقهٔ ) پشتون نشين ·

**پښتونيار** paṣtun-yā́r : ---> پښتونمل ·

**پښتو ويي پوهنه** paṣtó-wayi-pohána :( د كتاب نوم ) ، د پښتو ويي پوهنه ( لغت پوهنه ) ، ( پا ) «واژه شناسی پشتو» ( نام كتاب ) ·

**پښتيانا** paṣt-yan-ā́ : پښتونخوا ، ( پا ) مسكن پشتونها ( افغانستان ) ·

**پښويه** pá-ṣóya : گرايمر ، ( پا ) دستور ، ( ان ) grammar

**پښوييز** paṣoy-íz :گرايمري ، ( پا ) دستوری ، ( ان ) grammatical

**پښوييزه بڼه** paṣoy-íza-baṇa : گرايمري جوله ( شكل ) ، ( پا ) صورت دستوری ، ( ان ) grammatical form

**پښوييزه رغاونه**
paṣoy-íza-raγāw-ána : گرايمري جوړښت ، ( پا ) ساختار دستوری ، ( ان ) grammatical structure

**پښوييزه شننه** paṣoy-íza-šanána : گرايمری تجزيه

( تحلیل)، ( پا ) تحلیل دستوری، ( ان) grammatical analysis

**پښوییزه مانا** paṣoy-íza-mānā́ : گرایمري مانا ( معنی)، ( پا ) معنای دستوری، ( ان) grammatical meaning

**پښوییزې توکي** paṣoy-íze-ṭolá́y : گرایمری مقولې، ( پا ) مقولات دستوری، ( ان) grammatical categories

**پښه پاك** psa-pák : ( پا ) پای پاك ، کفش پاك کن، ( ان ) doormat, scraper, shoebrush

**پښه پر ځای** pṣa-par-jā́y : ( ناکره) چپرځای، پوځي بولی ( کومانده)، ( پا ) پابرجا ، ایست! چپرځای ( پارسی افغانستان)، ( ان ) stop ! halt !

**پښېله** pṣé-la : ( عر ) قافیه، ( ان ) rime, rhyme

**پښېلیز** pṣe-líz : دپښېلې اړوند، ( پا ) قافیه یی، ( عر ) قافیوی، مقفی.

**پلارواکي** plār-wāk-í : پلرواکي، ( پا ) پدرسالاري، ( ان ) patriarchy, patriarchate

**پلار وطن** plār-watán : پلار هېواد، ( پا ) پدر وطن ( پلار وطنه ملي جبه : جبهۂ ملی پدر وطن).

**پلار هېواد** plā̄r-hewā́d : پلار وطن ، د پلار غونډې هېواد ، ( پا ) پدر وطن .

**پلاز مېنه** palā̄z-ména : پلازمني ، ( پا ) پایتخت ، ( ار ) دارالحکومه ، دار الخلافه ، دارالخلافت ، ( ان ) capital

**پلاوی** plā́way : استاز ډله ، ( پا ) هيئت اعزامی ، ( ان ) mission

**پلټند** plā́ṭand : پلټونکی ، لټونکی ، لټند ، ( پا ) جستجوگر ، کاوشکر .

**پلټنه** plaṭ-ána : لټه ، لټون ، پلټون ، ( پا ) بازرسی ، ( عر ) تفتيش ، ( ان ) inspection

**پلټونکی** plaṭ-únkay : ( پا ) باز رس ( عر ) مفتش ، ( ار ) معاینه کار ، ( ان ) inspector

**پلسپي پښویه** palsap-í-pṣóya : فلسفي گرایمر ، ( پا ) دستور فلسفی ، ( ان ) philosphical grammar

**پلستري** plastə̄́ri : توري ، جرابلې ، مچوړې ، ( پا ) جوراب ، ( ان ) sock, sox, stocking

**پلنپاڼی** plan-páṇ-ay : کلم ( کرم ) گل ، ( پا ) گل کلم .

**پلنډی** planḍáy : بوخته ، جبه ، ( پا ) باتلاق ، مرداب ، جبه زار ، لجنزار .

**پلورتوکي** plor-tőki : سوداګري سامان، د پلور ( خرڅلاو ) توکي ( مواد )، ( پا ) کالا ، کالای بازارګانی ، اموال تجارتی ، ( عر ) مال التجاره ، ( ان ) merchandise, goods, wares .

**پلورليك** plor-lík : قواله ( قباله )، د پلور ( خرڅلاو ) سند ، ( پا ) سند فروش ، ( عر ) قباله .

**پلورنځی** plor-an_jáy : دوکان ، هټ ، هټۍ، پلورځی ، ( ان ) ( جنرل ) سټور ، شاپ ، لوی پلورنځی (departmental store)

**پلوشين** palwaš-ín : وړانګن ، وړانګين ، ( پا ) پراشعه ، ( عر ) مشعشع .

**پلوی** palawáy : پلوي ، سېلی ، ( پا ) طرفدار ، جانبدار .

**پلوي** palawí : سېله ، پلويتوب ، ( پا ) طرفداری .

**پلوي نومځری** palaw-í-num-járay : ( پا ) ضمير سمتی ، ضمير توجيهی ( را ، در ، ور ) .

**پلوی وييکی** palaw-í-wayí-kay : لورښود ادات ، ( پا ) ادات جهت نما ، ( ان ) directive particle

**پلی پوځ** pálay-páwz : پلی لښکر ، ( پا ) پياده نظام ، ( ان ) infantry

**پلی سر تېر** pálay-sartér : ( پا ) سر باز پیاده نظام ( ان ) foot-soldier, infantry-man

**پلي کول** pali-kawál : تر سره کول، عملی کول، تطبیقول، ( پا ) پیاده کردن، عملی کردن، تطبیق کردن ( لازمی : پلي کېدل ).

**پلې گرځېدنه** pále-garj-ed-ána : په پښوگرځېدنه، چکر، ( پا ) پیاده گردی، قدم زدن، گردش، پیاده روی، ( ان ) walk(ing)

**پلې لار** pále-lār : څړه لار، څړه لرې، د پلیو لار، ( پا ) پیاده رو، ( ان ) footpath, sidewalk، ( بې ) سپره لار ( جاده موتر رو ).

**پمرنځ** pám-ranj : پمن ( ساری ) رنځ، پمنه ناروغي، ( پا ) بیماری ساری ( همه جاگیر )، وباء، ( ان ) epidemic disease

**پناځای** panā-jáy : د پټيدو ځای، ژغور ځای، د پناور وړ لو ځای، د امن ځای، ( پا ) پناهگاه.

**پناه غوښتنه** panā-ǰoṣtána : شو غوښتنه، ( پا ) پناه خواهی، خواست پناهنده گی، ( ان ) seeking of asylum

**پناوړنه** panā-wṛána : شو وړنه، ( پا ) پناهگزینی،

پناهنده گی، ( عر ) مهاجرت، ( ان ) asylum

**پناوړی** panā-wáṛay : شووړی، کډوال، ( پا ) پناه گزین، پناهنده، ( عر ) مهاجر، ( ان ) refugee

**پنځباندې** panj-bánde : پنځ اخوا، له پنځ ( طبیعت ) څخه اخوا، تر پنځ ( طبېعت ) بهر یا پورته ( پا ) ماوراء طبیعت، ( عر ) ماوراء الطبیعة، ( ار ) مابعدالطبیعیات، ( ان ) metaphyaic(s)

**پنځپوهنه** panj-pohána : طبیعي پوهنه، ( پا ) طبیعت شناسی، ( ار ) طبیعیات، ( عر ) علم الطبیعته، طبیعیات، ( ان ) physics

**پنځپوهنې** panj-pohάne : پنځیزې پوهنې، ( پا ) علوم طبیعی، ( ان ) physical sciences

**پنځپوهیزه غږ پوهه**

panj-poh-íza-ǥaẓ-poha : فیزیکي غږ پوهنه، ( پا ) آواشناسی فیزیکی، ( ان ) physical phonetics

**پنځڅپې** penj-capé : پنځه څپیز غونډ، د پنځو څپو غونډ ( مجموعه )، پنځه څپیزویی، ( پا ) پنج هجاء، واژهٔ پنج هجایی، ( ان ) quinquesyllable

**پنځڅپیز** penj-cap-íz : پنځڅپې، پنځه څپیز، ( پا )

پنج هجايي ، ( ان ) quenquesyllabic

**پنځځنډ** penj-cánd : پنځه ضلعی ، ( پا ) پنج ضلعی ، پنج پهلو ، ( ان ) pentagon

**پنځدوی** panj-dóy : طبیعی قانون ، ( پا ) قانون طبیعی ، ( ج : پنځدويونه : طبیعی قوانین ) .

**پنځزرکلن** penj-zar-kal-án : پنځه زرکلن ، پنځه زره کلن ( ناکره ) ، ( پا ) پنجهزار ساله .

**پنځزري** penj-zar-í : پنځه زری ، پنځه زريز ( بېنکنوټ ) ، ( پا ) پنجهزاری ( بانکنوت ) .

**پنځسوی** penj-saw-áy : پنځه سوه گون ( کونی ) ، پنځه سوه گیز ، پنځسويز ، ( پنځه سوی ) ، ( پا ) پنجصدی ( بانکنوت ) .

**پنځکلن** penj-kal-án : پنځه کلن ، ( پا ) پنجساله .

**پنځگوټ** penj-gwáṭ : پنځه گوټه لرونکی ، ( پا ) پنج گوشه ، ( ان ) pentagon

**پنځگونی** penj-gún-ay : پنځگون ، پنځگیز ، ( پا ) پنجی ( بانکنوت افغانی ) .

**پنځلسیزه** penj-las-íza : پنځلس ورځنی ، دوه اوونیزه ( خپرونه ) ، ( پا ) پانزده روزه ( نشریه ) .

**پنځمه** penj-áma : پنځم ، څلورم ، شورو ( شروع ) ، ( پا ) چهار شنبه ، ( ار ) بدهـ ، ( ان ) wednesday

**پنځوال** panj-wā́l : پنځپال ، طبیعت خوښوونکی ، ( پا ) طبیعت گرا ، طبیعت پسند ، ( ان ) نیچرالیسټ ، ( فر ) ناتورالېست .

**پنځواله** panj-wā́l-a : طبیعت خوښونه ، ( پا ) طبیعت گرایی ، طبیعت پسندی ، ( ان ) نیچرالیزم ، ( فر ) ناتورالېزم .

**پنځوسی** panjos-áy : پنځوسگیز ، پنځوسگون ، ( پا ) پنجاهی ( بانکنوت ) .

**پنځونه** panj-aw-ána : هستونه ، زېږونه ، زېږندويي ، ( پا ) ایجاد گری ، ( عر ) ایجاد ، تخلیق ، خلاقیت ، ( ان ) creation

**پنځه افغانیز** penja-afǵan-íz : پنځه افغانکی ، ( پا ) پنج افغانیگی ( پول فلزی ) .

**پنځیز** panj-íz : د پنځ ( طبېعت ) اړوند ، خورمنځیز ، پیدایښتي ، ( پا ) طبیعی ، فیزیکی ، ( ان ) physical

**پنډ غالی** panḍ-ǵā́lay : شپول ، وانېه ، بانېه ، پنډتون ، ( پا ) اردوگاه ، فراهمگاه ، ( ان ) camp کېمپ ، ( جر ) lager لاگر .

**پنډ گر** panḍ-gár : پنډ ( لایټر ) جوړوونکی ، ( ار )

جوکی، ( پا ) آتشپر ساز.

**پوچاندی** puč-ánday : بداندی، ( پا ) بداندیش، بد سگال، هرزه فکر، (an) evil-minded

**پوځي ټولگی** pawz-í-ṭolgay : پوځی ( فوځی ) ټولگی، ( پا ) قطعهٔ آرتش ( نظامی ).

**پوځیوال** pawz-i-wā́l : لښکروال، ( پا ) نظامیگر، هوا خواه سیاست و نیروی نظامی، ( ان ) militarist

**پوځیواله** pawj-i-wā́la : لښکرواله، ( پا ) نظامیگری، ( ان ) militarism

**پورتنی خپلواک** port-a-n-áy-xpal-wā́k : ټرلی خپلواک، ( پا ) ویل بالایی، ویل بسته، ( ان ) high vowel, closed vowel

**پوخاندی** pox-ánd-ay : پوخ فکری، ( پا ) بافکر پخته، با ادراک، ( ان ) intelligent

**پور توک** pór-tok : پردی ( ژبنی ) توک، پردېس توک، ( پا ) سازای بیگانه، ( ان ) foreignism

**پور ژباړه** pór-žbā́ṛa : هغه ویی یا بل ژبنی توک چې له پردی ژبې څخه په ژباړلې بڼه را اخیستل شوی وي ( لکه ټولنپوهنه له sociology څخه )، ( ان ) translation

loan-word

**پور غږ** pór-γaẓ : له بلې ژبې راپورکړې یا راخپل کړی فونیم، ( پا ) آوای قرضی .

**پور مانا** pór-mānā́ : د اړوندې ژبې په یوه ویي ( لفظ ) کې د بلې یا پردۍ ژبې دیوه ویي مانا او محتوا را ځای کول، ( پا ) عاریه گیری معنی، ( ان ) semantism

**پورنی** por-anáy : پورشوی څیز، ( پا ) قرضی، وامگرفته، عاریتی، ( عر ) مستعار .

پور وړی por-a-wáṛ-ay : قرضوړی؛ پاسللی، منت بار، ( پا ) بدهکار، قرضدار، وامگیر؛ سپاسگزار، ( عر ) مدیون؛ مرهون، ممنون .

**پور ویی** pór-wayay : پردی ویی، مستعار لغت، دخیل لغت، ( پا ) واژهٔ قرضی، کلمهٔ مستعار، ( ان ) loan-word, borrowed word, Adoptism, foreignism

**پوره ویی** purá-wayay : بشپړ ( مکمل ) ویی ( لغت )، ( پا ) واژهٔ تام، ( ان ) full word

**پوره یا سپوره** pora-yā-spóra : پورې یا سپوره، لنده یا وچه، ( پا ) خشك و یا تر ( نان ) .

**پوړ** poṛ : چت، ( پا ) طبقه، منزل ( عمارت )؛ قشر، لایه،

پوست ، ( ان ) crust

**پوړشمېر** póṛ-šmer : وصفی عدد ، ( پا ) عددوصفی ( رتبی ) ، ( ان ) ordinal number

**پوړۍ** pawṛáy : دزينې پاتکی ، پوړۍ؛ دريځ ، څوکۍ ( پوستې ) ، ( پا ) رتبه ، منصب ، چوکی ، مقام ، ( ان ) position, rank, authority

**پوړۍ پر پوړۍ** pawṛáy-par-pawṛáy : درجه پر درجه ، پرله پسې ، يو بل پسې ، ( پا ) درجه به درجه ، پيهم ، ( عر ) متدرجاً ، مسلسل ، سلسلة .

**پوړيز** poṛ-íz : طبقه يي ؛ قشري ، ( پا ) قشری ، لايه ای ، ( ان ) crusty

**پوړۍ والا** pawṛay-wālá : څوکۍ والا ، درتبې ( منصب ) خاوند ، ( پا ) صاحب مقام ، صاحب چوکی ، صاحب مرتبت ، ( ان ) officail

**پوز يار مرغه** puz yár-marγə : يوراز مرغه چې ځاله دونې په ښرانگو پورې پېړي ، ( پا ) پرنده يا مرغ بوريا باف .

**پوست بېواک** póst-bewák : پوست بېواکغږ ( کانسوننټ ) ( پا ) همخوان نرم ، ( ان ) soft consonant

**پوست کړ** póst-kaṛ : له قاعدې سره سم گردانېدونکی

کړ، ( پا ) فعل با قاعده ( ان ) regular verb, weak verb

**پوښتپاڼه** poşt-pāṇa : پوښتپاڼه، ( پا ) ورق استعلام، استعلامیه.

**پوښتغونډله** poşt-ǰóndla : سوالیه جمله، ( پا ) جملهٔ پرسشی ( استفهامیه ).

**پوښتنښه ( ؟ )** poşt-náşa (?) : د پوښتنې لیکنښه، ( پا ) نشان پرسش، علامهٔ سوالیه ( ؟ ) ( ار ) سوالیه نشان ( ؟ )، ( ان ) question-mark(?)

**پوښتنلیك** poştan-lík : د پوښتنو لیست یا کتاب، ( پا ) پرسشنامه ( ان ) quetionaire (-y) .

**پوښتنو مځری** póşt-num-járay : استفهامي ضمیر، ( پا ) ضمیر استفهامی، ( ان ) interrogative-pronoun

**پوښتني دود** poşt-ən-í-dod : سوالي وجه، سوالیه وجه، ( پا ) وجه پرسشی ( فعل )، ( ان ) interrogative mood

**پوښلتیا** poşal-tyấ : نغښتنه، پوښونه، ( پا ) نهانکاری، ( عر ) استتار، کتمان.

**پوکڼی** puk-aṇáy : کوبی ( حباب )؛ دالوځولو پوکڼی؛ متیازاړی، ( پا ) فوقانه؛ مثانه؛ حباب.

**پولادي** polād-í : پولادين، له پولادو جوړ، د پولادو غونډې کلك، د پولادو په رنګ، ( پا ) پولادی. ( فولادی )، پولادين.

**پولګی** pul-gáy : وړوکی پول، ( پا ) پلچك.

**پولي پړسوب** pol-í-pars-ób : پولي تورم، ( پا ) تورم پولی، ( ان ) inflation

**پولي زېرمه** polí-zérma : پولي ذخيره؛ پولی صندوق؛ فانډ، ( پا ) ذخيرهٔ پولی؛ صندوق وجهی؛ فوند.

**پومبه کار** pumba-kār : د پومبې کرونکی يا کروندګر، ( پا ) پخته کار، ( ع ) قاطن.

**پونګاړی** pungāray : دمګی دننه بچی، لاروا، ( پا ) چوچهٔ داخل تخم، لاروا ( ج : پونګاړي ـ لارواوې، ډېر بچي ).

**پووندګلی** powand-galí : خاروي ساتنه، پوونده توب، شپني، ( پا ) مالداری، شبانی.

**پوهان** poh-ān : پوهاند، د پوهې ( پوهنې ) خاوند، د علم ماهر، ( پا ) دانشمند، ( ار ) دانشور، ( عر ) عالم، ( ان ) scintist, scholar

**پوهاند** poh-ānd : دپوهنتوني استادی شپږمه او تر ټولو لوړه پوړی؛ پوهان، ( پا ) استاد دانشګاهی، ( ان ) پروفيسر.

**پوهاندي** poh-ānd-í : د پوهاند او پوهان اړوند؛ پوهيالي ( علميت )، ( پا ) دانشمندی؛ منسوب به پوهاند، ( ار ) دانشوری، ( عر ) علميت.

**پوهان وزمه** pohān -wázma : پوهاند ړوله، پوهان ړوله، نیمچه پوهان، ( پا ) عالم نما، نیمچه عالم.

**پوهنپال** pohan-pā́l : پوهنتوني شاگرد، زده کړيال، ( پا ) دانشجو، محصل، ( ار ) طالب العلم، ( ان ) student

**پوهنپوهه** pohan-póha : د پوهنې پوهنه، د علم علم، ( پا ) علم شناسی، ( ان ) epistemology

**پوهنتون** pohan-tún : ( پا ) دانشگاه، ( عر ) جامعه، دارالفنون، ( ان ) university

**پوهنتوني** pohən-tun-í : دپوهنتون اړوند، ( پا ) دانشگاهی.

**پوهنځی** pohən-jáy : ( پا ) دانشکده، ( عر ) کليه، ( ان ) college; faculty

**پوهندوی** pohəndə́y : د پوهنتوني استادی څلورمه پوړی، تر پوهاند دوې درجې راټيټ، ( پا ) استاديار، ( ان ) اسوشيېټ پروفيسر.

**پوهندويي** pohəndoy-í : د پوهندوی ( استاد يار )

اړوند ، ( پا ) منسوب به پوهندوی ( استاد يار ) .

**پوهنغونډ** pohan-ɣónḍ : پوهنجونګ ، ( عر ) دايرة المعارف ، دانش جونګ ، ( ان ) encyclopedia

**پوهنغونډه** pohán-ɣónḍa : علمي غونډه ، پوهنيزه غونډه ، ( پا ) ګرد همآيي علمی ، سيمينار ، ( ان ) ceminar, symposium

**پوهنليك** pohan-lík : پايليك ، تحصيلي رساله ، د پوهنتوني زده کړو د پای رساله ، ( پا ) پايان نامه ، رسالهٔ دکتورا ، ( ان ) thesis

**پوهنمل** pohan-mál : د پوهنتوني استادی منځنی درجه ، ( پا ) دانشيار ، يك درجه پايينتر از آسوشيتيد پروفيسور ، ( ان ) اسېستېنټ پروفيسر .

**پوهنملي** pohan-mal-í : دپوهنمل ( <------ ) اړوند ، ( پا ) منسوب به پوهنمل ( <--- ) .

**پوهنمين** pohan-mayán : د پوهنې مينه وال ، پر پوهنه مين ، د پوهنې لېوال ، ( پا ) علم دوست .

**پوهنوال** pohan-wál : د پوهنتوني استادی پنځمه پوړی ، تر پوهاند يوه درجه راټيټ ، ( ان ) اسوشيېټېډ پروفيسر .

**پوهنوالي** pohan-wāl-í : د پوهنوال اړوند ؛ علميت ،

( پا ) علميت ، منسوب به پوهنوال ( -----> ) .

**پوهنه** poh-ána : پوهه ، ( پا ) دانش ، ( عر ) علم ، معرفت ، ( ان ) Knowledge, science

**پوهنيار** pohan-yár : د پوهنتوني استادۍ دويمه پوړۍ ، ( پا ) استاديار ، دانشيار ، ( ان ) اسيسټېنټ پروفيسر .

**پوهنياري** pohan-yār-í : د پوهنيار (----->) اړوند ، ( پا ) منسوب به پوهنيار (----->) .

**پوهنيز** pohan-íz : د پوهنې اړوند ، ( پا ) علمى ، دانشى ، معرفتى ( په پوهنيز ډول يا له پوهنيز پلوه : علماً ) .

**پوهونه راپوهونه**

pohawána-ra-pohawána : پوهونه او پوهېدنه ، ( پا ) افهام و تفهيم .

**پوهه او فرهنگ** póha-aw-farháng : علم و فرهنگ ، ( كلچر ) ، ( پا ) علم و فرهنگ ، دانش و فرهنگ .

**پوهه پلورنه** póha-plor-ána : پوهه خرڅونه ، ځلنښوونه ، ( پا ) علم فروشى ، فضل فروشى ، خود فروشى ، ( ان ) pedantry, ostenfation

**پوهه پلورى** póha-plór-ay : ځانښود ، ځانښكارى ، ( پا ) علم فروش ، فضل فروش ، ( ان ) pedantic, arrogart,

ostentatious

**پوهیالی** poh-yāláy : د پوهنتوني استادی تر ټولو ټیټه پوړی، ( پا ) استاد یار ، ( ان ) لیکچرر .

**پوهیالي** poh-yāl-í : د پوهیالي (---->) اړوند ؛ علمیث ، ( پا ) علمیت ، منسوب به پوهیالی (---->) .

**پوهېدانه** poh-ed-ána : سره ( پوهېدنه ) ، گډتفاهم ، ( پا ) تفاهم ( باهمی ) ، ( ان ) understanding

**په بشپړ ډول** pa-báspar-ḍáwal : په پوره ډول ، په پوره توگه ، یو مخیز ، په یو مخیز ډول ، یو مخ ، له یوه سره ، په مطلق ډول ، ( پا ) بطور مکمل ، بطور کامل ، بصورت کلی ، به طور مطلق ، ( ان ) completely, absolutely .

**په بله وینا** pa-bála-wayná : په بله ژبه ، ( پا ) به عبارت دیگر ، به زبان دیگر .

**په پای کې** pa-páy-ke : تر ټولو ورسته ، په اخر کې ؛ په متې ( پا ) در پایان ، در اخر ( ار ) اخر کار ، ( عر ) بالآخر ، ( ان ) finally,atlast

**په پرتلیز ډول** pa-partal-íz-ḍawal : د پرتلې په توگه ، ( پا ) به طور نسبی ، به طور مقیاسی ، ( عر ) نسبتاً .

**په ترخ کې** pa-trác-ke : په دې منځ کې ، په دې کې ،

( پا ) در ضمن ، در صورت ، ( عر ) ضمناً ( دخبرو په ترڅ کې : د خبرو په ضمن کې ،ستا د راتګ په ترڅ کې : در صورت آمدن تو ).

**په توګه** pa-tóga : په ډول ، ( پا ) بطور ، بحيث ، بصورت ، به ګونه ، بمثابه ، ( عر ) منحيث ( د ليکوال په توګه : به حيث نويسنده ).

**په تېره** pa-téra : په تېره بيا ، په تېره تېره بيا ، په ځانګړې توګه ، په ځانګړي ډول ، ( پا ) به ويژه ، به خصوص ، ( عر ) خاصتاً ، خصوصاً ، ( ار ) خاص کر .

**په ټينګه** pa-ţı̆́ng-a : په کلکه ، په ټينګار ، ( پا ) به اصرار و ابرام ، به طور اکيد ، ( عر ) شديداً ، اکيداً .

**په ځانخبري ډول** pa-jā̃n-xabár-i-ḍáwal : په ځانخبرۍ توګه ، آګاهانه ، ( پا ) آګاهانه ، شعوری .

**په خوله خندان - په زړه پرېشان**

pa-xwla-xandán-pa-zŗa-pre : په ښکاره خوښ او په زړه کې غمجن ؛ ( پا ) بالب خندان و دل پريشان .

**په داسې ترڅ کې چې**

pa-dā́se-trác-ke-če : په داسې توګه چې ، په داسې حال کې چې ، ( پا ) در حاليکه ، در صورتيکه .

**په درناوي** pa-dran-ā̃w-ı̆́ : په نمانځنه ، په درنښت ،

( پا ) با احترام، با حرمت، با سپاس ( زیاد ).

**په دې وروستيو کې** pa-de-wrust-áyo-ke : په دې وروستيو ( شپو ) ورځو کې، په دې تازه ورځو کې، ( پا ) در این اواخر.

**په رښتينه** pa-raṣt-ína : په رښتينې سره، په رښتيا ( سره )، ( پا ) در واقعیت، در حقیقت، راستی، براستی، صادقانه، ( عر ) واقعاً، حقیقتاً، ( ان ) really, indeed, truly, in fact

**په زړه پورې** pa-zṛa-póre : زړه ته نږدې، زړه را کښونکی، ( پا ) دلچسپ، ( عر ) مرغوب.

**په زړه پورېوالی** pa-zṛa-pore-wā́lay : ليوالتيا، زړه راکښون، ( پا ) دلچسپي، علاقمندی، ( عر ) مرغوبیت، جذابیت، ( ان ) attraction

**په ژوندونې** pa-žwand-úne : په ژوند کې، ( پا ) در زنده گی، هنگام حیات.

**په ګډه** pa-gáḍa : په شریکه، شریکي، ځبله، وبله، یو له بله، ( پا ) باهم، بهم، با همدیگر، ( عر ) مشترکاً.

**په لړ کې** pa-láṛ-ke : په لړۍ کې، ( پا ) در سلسله

( د کتابونو په لړ کې : در سلسلهٔ کتابها ) .

**په لوی لاس** pa-lóy-lā̃s : په خپله خوښه ، په قصدي ډول ، ( پا ) به دسته ، قصدی ، عمدی ، ( عر ) قصداً ، عمداً ، ارادتاً .

**په مړوني** pa-mṛ-úne : په مړینه ، په مړینې ، تر مړینې ورسته ، ( پا ) در حالت مرگ ، در اوان مرده گی ، هنگام ممات ، پس از مرگ .

**په وړاندې** pa-wṛā́nde : په مخ کې ، په نېز ، ( پا ) به مقابل ، در مقابل ، در برابر ، به حضور ، در حضور ، بر ضد ، بر خلاف ، بر علیه ، به نزد ) ، ( ستا په وړاندې : ستا په مقابل کې ، ستا په مخ کې ، ستا پر ضد ، ستا پر خلاف ) .

**په هسکه غاړه** pa-háska-ǵā́ṛa : په هسکو سترګو په جګو سترګو ، په ویاړ ، ( پا ) با گردن فراز ، با سرفرازی ، به افتخار .

**په یو مهال کې** pə-yáw-mahā́l-ke : په یوه وخت کې ، هممهال ، ( پا ) همزمان ، در عین وقت .

**پې** pe : پ ، د پښتو آبېڅې دریم توری ، ( پا ) بای فارسی ( پ ) .

**پیاز( ه ) کی** pyāz-(a)-káy : یو غرنی ( دشتي ) پیاز ؛ گندنه ، ( پا ) پیاز خود روی دشتی ، گندنه .

**پیاغله** pyāǧla : دغاړې څپونې، دغاړې دستمال ( رومال )، ( پا ) گلوبند، دستمال گردن، مفلر، ( ان ) neckeerchief, scarf

**پیاند** pay-ánd : پینده، پېیونکی، پېرونکی، ( پا ) سفتگر.

**پیاوړتیا** pyāwaṛ-tyā́ : ځواکمني ( مادی او معنوی )، ( پا ) نیرو مندی، توانایی ( مادی و معنوی )، ( عر ) قوه، قدرت، فضیلت.

**پیاوړی** pyāwáṛay : ځواکمن، فضیلت خاوند، ( پا ) توانا، نیرو مند، صاحب فضیلت، ( عر ) قوی، فاضل.

**پی پلور** pay-plór : پی پلورنه، شودې ( شېدې ) پلورنه، پی خرڅونه، ( پا ) شیر فروشی.

**پی پلوری** pay-plór-ay : شودې والا، پی والا، ( پا ) شیر فروش.

**پېچلتیا** pečal-tyā́ : پېچلتوب، جړتوب، جړتیا، جړه، غوټنتیا، ( پا ) پېچیده گی، بغرنجی، ( ان ) twist, contortion

**پېخیالی** pec-yāláy : سهاند، ساخولی، زغمناك، صبرناك، ( پا ) بردبار، با تحمل.

**پیداگر** paydā-gár : پیدا وښتگر؛ زېږندوی، ( پا )

تولید کننده، کمایی کننده، پیداگر؛ ایجاد گر، ( عر ) مولد، موجد، خالق، خلاق.

**پیداوار** paydā-wā́r : پیداوښت، یېبره، ( پا ) پیداوار، ( عر ) حاصل، محصول، تولید.

**پیدایښت** paydā-yáṣt : پیداوښت، پنځېدن، پنځون؛ زېږ، زېږون، زېږېدنه؛ زېږد، ( پا ) پیدایش، زایش، ( عر ) خلقت؛ مخلوق؛ تولد؛ تولید.

**پیدایښتي** paydā-yaṣt-í : پنځیز؛ زېږدي، د پیدایښت اړوند، په پیدایښتي توګه، ( پا ) پیدایشی، خلقتی، وجودی؛ تولیدی، تولدی.

**پېر** per : یوټاکلی مهال یا دوره؛ ( ګرایمري ) حالت، ( پا ) ګردش، مقطع زمان، دور زماني؛ حالت ( دستوری )، ( عر ) مرحله، دور.

**پېر بڼه** pér-bā́ṇa : د پېر ( حالت ) شکل ( ژبپوهنه )، ( پا ) صورت حالت، ( ان ) case-form

**پېر غونډال** per-ɣonḍ-ā́l : د پېر ( حالت ) سیستم، ( پا ) دستګاه حالت، ( ان ) case system

**پېرګر** per-gā́r : لوبغاړی، ( پا ) بازیګر، ( عر ) ممثل؛ ( ان ) actor.

**پېرند** peŕ-and : پېرونکی، پېرودونکی، ( پا ) خریدار .

**پېرنګواله** perang-wála : پرنګوالي، دپرنګیانو ښکېلاکي پېر، ( پا ) دورهٔ تسلط فرنګ .

**پېر و پلور** pér-o-plór : رانیونه او خرڅونه، راکړه ورکړه، سودا ګري، ( پا ) خرید و فروش، تجارت ( پیشګی )، داد و ستد .

**پېړاورمېږی** peṛ-orméẓ-ay : پېړ څټی، ( پا ) ګردن کلفت .

**پېزګر** pez-gár : پېزونکی، ( پا ) رفو کننده، رفوګر ( لباس، قالین ... ) .

**پېژند** pež-ánd : پېژندون، پېژندنه( تعریف )؛ د تعریف حرف یا توری، ( پا ) شناخت، تعریف؛ حرف تعریف؛ دفتر ( ادارهٔ ) سوانح در نظامی، ( ان ) article, definition

**پېژندالواک** pežánd-alwák : د پېژندني تیوري، ( پا ) تیوری شناخت، تیوری معرفت .

**پېژند پاڼه** pežand-páṇa : د هویت پاڼه ( کارډ )، ( پا ) شناسنامه .

**پېژنتون** pežand-tún : ( پا ) یکی از شعبات ریزرف در وزارت دفاع افغانستان .

**پېژندلی** pež-and-álay : پېژندوی ، نومیالی ، نومور( نوموړی ) ، نوملوړی ، وتلی ، ( پا ) شناخته شده ، نامور ، نامدار ، مشهور .

**پېژندليك** pežand-lík : پېژندپانه ( پا ) شناسنامه .

**پېژند نښه** pežand-náṣa : د پېژندنې علامه ، ( پا ) علامهٔ شناخت ، ( عر ) هویت .

**پېژندوی** pežandóy : اشنا ، پېژندلی ، پېژندگلو ( لره پښتونخوا ) ، ( پا ) شناسا ، آشنا ، شناخته ؛ صاحب شهرت ، ( عر ) معروف ، مشهور ، شهیر .

**پېژندويي** pežandoy-í : پېژندگلو ، پېژندگلوي ، پېژندنه ، آشنايي ، اوځارتیا ، مشهورتیا ، ( پا ) شناسایی ، شناس ( عر ) معرفت ؛ شهرت .

**پېسمن** pes-mán : ښاځمن ، ( پا ) باکبر و غرور ، ( عر ) متکبر ، مغرور .

**پېشو پړی** pišo-páṛay : واښلوبه ، رسیلوبه ، ( پا ) بازی ریسمانکشی .

**پېښليك** peṣ-lík : د پېښو لیکنه ؛ تاریخ ، ( پا ) واقعه نگاری ؛ تاریخ نگاری ، تاریخنویسی ، ( عر ) تاریخ ، ( ان ) history

**پېښليکپوه** peş-lik-póh : تاريخپوه ، ( پا ) تاريخ دان ، ( عر ) مؤرخ ، ( ان ) historian

**پېښليکونکی** peş-lik-únkay : تاريخ ليکونکی ، ( پا ) واقعه نگار ( ان ) historian

**پېغليستان** peǵl-istán : د پېغلو سيمه ، د پېغلو ټولی ( شاعرانه ) ، ( پا ) گروهی از دوشيزه ها ، محلهٔ دوشيزه ها ( شاعرانه ) .

**پېل** pel : شېبه ، ( پا ) دقيقه ، ( عر ) دقيقه ، ( ان ) minute

**پيلامگر** paylām -gár : پيلامه گر ، پيلگر ، پيلوونکی ، پيلند ( پا ) آغازگر ، ( عر ) مبتدی ، ( ان ) beginner

**پيلامه** paylāmá : نښه ؛ پيل ؛ د پښو خاپ ، کرښپل ، کنپل ( پا ) نشانی ، رد پا ، سر آغاز ، ( عر ) علامت ، علامه .

**پيل اوړون** páyl-awṛun : مغه اوړون ( گردان ) چې دويي يا څپې پر مختاړي ( preffix ) باندې راځي ، ( پا ) گردان ( تصريف ) يك کلمه يا هجاء در قسمت پيشوند مربوطهٔ آن .

**پيل ببواکوړی** payl-bewāk-wáẓay : پيل ببواکغونډ ، ابتدا پر ساکن ، ( پا ) ابتداء بر ساکن ، خوشهٔ ( همخوان ) آغازي ، ( ان ) initial cluster

**پیل بېواك ونج** páyl-bewāk-wánǰ : دمغه بېواك ( كنسونېنټ ) بدلون چې دوئيي په سر کې راغلی وي ، ( پا ) دیگر گونی ممخوان ( حرف صيحح ) آغازی .

**پیل پړی** pil-páẓay : پيل پژی ، پیلتن ، گوسنه ، پلونډ ، ( پا ) پیلتن ، قوی هیکل ، گشن ( ان ) of a huge body, huge, bulky

**پیل خج** páyl-xaǰ : د سرخج ، ړومبی خج ، ( پا ) فشار آغازی ، ( ان ) initial accent

**پیلغابښ** pil-ɣáṣ : د پیل غابښ ، پیلنابښ ، ( پا ) دندان پیل ( عاج ) ، ( ار ) هاتهی دانت ، ( ان ) ivory, tusk

**پیلگر** payl-gár : پیلوونکی ، پیلامگر ، پیلند ، شورو ( شروع ) کوونکی ، ( پا ) آغاز گر .

**پیل منگ** pil-máng : پلونډ ، ( پا ) پیلتن ، شخص قوی میکل ، شخص قوی جثه ، پهلوان ، ( ان ) of a huge body, huge, bulky

**پیلنابښ** pil-náṣ : پیلغابښ ، ( ار ) هاتهی دانت ، ( پا ) عاج ( فیل ) ، ( ان ) tusk, ivory

**پیلند** páy-l-ənd : پیلامگر ، ( پا ) آغازگر ، ( ع ) مبتدی .

**پېلنه** pelə́na : مخه ښه ، خدای پامانی ، ( پا ) پدرود ،

بدرود ، خدا حافظی ، ( عر ) وداع .

**پیلوان** pil-wán : ( پا ) پیلبان ، ( ع ) مهوت ، ( ان ) elephant-driver (keeper)

**پیلوستی** payl-wástay : سریزه ، سری ، د سر خبرې ، سر غړنی ، ( پا ) سخن آغازین ، سر آغاز .

**پیلول** payl-a-wál : پیل کول ، ( پا ) شروع ـ آغاز کردن ، آغازیدن .

**پیلیځ** payl-íź : پیلټکی ، د پیل نقطه ، ( پا ) پایه ، نقطهٔ آغاز ، ( عر ) مبداء ، منشاء ، ( ان ) starting point

**پیلیز** payl-íz : ( و ) ړومبنی ، لومړنی ، ( پا ) آغازین .

**پیمالگر** paymāl-gár : پیمال وال ، ورهنګر ، ورهنه وال ، کسبګر ، ( پا ) پیشه ور ، کسبګر ، ( عر ) کاسب .

**پیوستون** paywas-tún : تړون ، سره نښتون ، ( ار ) سالمیت ، ( پا ) همبستګی ، ( عر ) وصل ، وصال ؛ حمایت ، تساند .

**پیوندي ژبې** paywandí-žabe : ( پا ) زبانهای پیوندی ، ( ان ) agglutinative languages

**پېیلتیا** pey-əl-tyá : پېیلتوب ( پا ) وابسته ګی ، ( عر ) انسلاك ، ( ان ) alliance

**پېیلی** pey-ál-ay : پېیل شوی ، په چا پورې تړلی ، ( پا )

وابسته ، ( عر ) منسلك ( سیاست ) ، ( ان ) allied

**پېيون** pe-yún : پېينه ؛ اوېون ، اوېنه ، ( پا ) سفتکری : بسيج ، ( عر ) نظم ، تنظيم ، ترتيب .

## ( ت )

**تاریخ ځپلی** tārix-japálay : تاریخوهلی ، تاریخی بد نام ، ( پا ) تاریخزده .

**تاریخ ساز** tārix-sāź : تاریخ جوړوونکی ، ( پا ) تاریخساز .

**تاړاکګر** tāṛāk-gár : غلیاکګر ، یرغلګر ، تلغاکګر ، یلغاکګر ، بلوسګر ، ( پا ) چپاولګر ، حمله آور ، شبیخون ( شبخون ) کننده .



**تاریخوال** tārix-wāĺ : ( پا ) تاریخګرا ، ( ان ) historist

**تاریخواله** tarix-wala : ( پا ) تاریخګرایی ، ( ار ) تاریخیت ، ( ان ) historism

**تاریخي پښویه** tārix-í-pṣóya : تېرمهالې پښویه ( ګرایمر ) ، ( پا ) دستور تاریخی ، ګرامر تاریخی ، ( ار ) تاریخی

گرامر ، ( ان ) historical grammar

**تاریخي ژبپوهنه** tārixí-žab-pohána : تېرمهالې ژبپوهنه ، ( پا ) زبانشناسی تاریخی ، ( ار ) تاریخی لسانیات ، ( ان ) historical linguistics

**تاړی** tā́ṛay : وندی ( لغوی یا تصریفی ) ، ( پا ) وند ، ( عر ) ضمیمه ، ( ان ) affix

**تازه دمی** tāza-dám-ay : د ملوی ، هوسا ، ( پا ) تازه دم ، تازه نفس ( ان ) Fresh

**تازه کار( ـ ی )** tāza-kā́r(-ay) : نوکاری ، ( پا ) تازه کار ، نو کار ، ( عر ) مبتدی ، ( ان ) beginner

**تالانگر** tālān-gár : لوټمار ، لوټوونکی ، تالاگر ، ( پا ) چپاولگر ، غارتگر ، تاراجگر .

**تالوییز** tālu-yíz : په تالو کې ادا کېدونکی ( غږ ) ، ( پا ) کامی ، ( ان ) velar

**تالي څټی** tāli-cáṭay : کاسه څټونکی ، تیار خور ، غوړاوو ، ( پا ) کاسه لېس ، چاپلوس ، مفتخور ، طفیلی ، ( ان ) flatterer. parasite

**تالي څټي** tāli-caṭí : کاسه څټنه ، غوړاوی ، تیار خوري ، ( پا ) کاسه لیسی ، چاپلوسی ، مفتخوری ، طفیلی گری ، ( ان )

flattery, sponging on others

**تاند و تازه** tā́nd-o-tāzá : تازه او تاند ، ېېرتازه ، ېېرتاند ، تاندوښېراز ، تانده بانده ، ( پا ) ترو تازه ، تازه و شاداب .

**تاندوښېراز** tā́nd-o-ṣerā́z : تازه او تاند ، تاندو و تازه ، ( پا ) تر و تازه ، سبز و خرم ، سیراب .

**تانه وال** Tāṇa-wā́l : تانې والا ، تانه دار ، د تانې څارندوی ( پولیس ) ، ( پا ) تانه دار ، پاسدار .

**تاوتریخوالی** tā́w-trix-wā́l-ay : بدچلند ، زور زیاتی ، اخ و ډب ، الغا تلغا ، اور لګاوی ، شخه شلانړه ، شرغوبل ، بدوردي ، بدخویی ، ( پا ) خشونت ، شرارت ، تشدد ، گیر و دار ، کشمکش . ( ان ) coarseness, rudeness

**تت خپلواك** tát-xpal-wā́k : سپك خپلواك ، بی خجه واول ، ( پا ) واکه تیره ، ( ان ) light vowel

**تت و تېز** tát-o-téz : د ( گاړي ) څراغ اړوند ، ( پا ) فل و دیم ( روشنی ) ، ( ان ) full and dim

**تته څپه** táta-capá : بې خجه څپه ( هجاء ) ، ( پا ) هجای تیره یا بې فشار ، ( ان ) light syllable

**تخت ناستی** taxt-nā̆st-áy : پر تخت کېناستنه ، ( پا )

تخت نشینی .

**ترټولو ډېر** tar-ṭólo-ḍer : ترټولو زيات ، زياترين ، زيات نه زيات ، ( پا ) بيشترين ، بيشترينه ، بطور اعظمی ، ( عر ) اكثراً ، اغلباً .

**ترټولو ناوخته** tar-ṭólo-nā-wáxta : ناوخترين ، ( پا ) ناوقترين .

**ترټولو وروسته** tar-ṭólo-wrústa : د ټولو په پای كې ، ( پا ) واپسينترين ، آخرين ، بعد از همه ، در پايان كار ، ( عر ) آخر الامر .

**تركېدونه** tar-ked-úna : ترامكانه ، ( پا ) تا حد امكان ، ( عر ) حتى الامكان ، حتى المقدور ، حتى الوسع .

**تركېدوني بريده** tar-ked-úni-brída : د كېدون تر بريده ، تر ممكنه بريده ، ( پا ) تا حد امكان ، تا سرحد امكان ، تا حد ممكنه .

**ترنگتوك** trang-tók : يو خوږ اواز يا داوازونو غونډ ( تركيب ) ، لكه د لنډۍ ( ټپې ) وروستی يا سرباري غږ ( نه ) ، ( پا ) عنصر ترنمی ، ( ان ) euphony

**ترنگو** trangú : يوه موسيقي اله ، ( پا ) سارنک .

**تروروستي بري** tar-wrustí-bari : تر وروستي

بریالیتوب ( کامیابی ) ، ( پا ) تا پیروزی نهایی .

**تر وروستي بريده** tar-wrustí-brída : تر وروستي سرحده .

**تر وروستي څاڅکي** tar-wrustí-cācki : دوینی تر وروستي څاڅکی ، ( پا ) تا اخرین قطره ( خون ) .

**تروروستی سلگی** tar-wrustáy-salgáy : تر وروستی سا ، د ژوند تر وروستی شېبې ، ( پا ) تا آخرین رمق ، تا دم واپسین .

**تروسې وسې** tar-wáse-wáse : تر وروستي خواکه ( توانه ) ، ( پا ) تا آخرین نیرو ، ( عر ) حتی الوسع ، حتی القوه .

**ترهوال** trah-wā́l : وهمی ؛ ترنو ، وهمپال ، ( پا ) توهمگرا ، وهمگرا ؛ سهمناك ، ( ان ) illusionist

**ترهواله** trah-wā́la : وهمی توب ، وهمپالنه ، ( پا ) توهمگرایی ، وهمگرایی ، ( ان ) illusionism

**تریخ خوړی** trix-xóẓ-ay : خوږه لوړی ، ( پا ) میان خوش ، میخوش .

تریخژوندی trix-žwánd-ay : د ترخه ژوند خاوند ، ( پا ) دارای زنده گی تلخ ( دشوار ) .

**تریو خوړی** triw-xóẓ-ay : خوږه لوړی ، تریو خوږ

( پا ) میان خوش ، میخوش ، میان ترش .

**تړاو** tar-ā́w : تړون ، تړښت ، اړیکی ، ( پا ) وابسته کی ، ( عر ) رابطه ، ارتباط .

**تړڅپه** tár-capá : د تړخپلواك پرخای راتلونکې څپه ، ( پا ) هجای ارتباطی ، ( ان ) bridge-syllable

**تړخپلواك** tár-xpal-wā́k : د دوو ژبنیو توکونو تړونکی ( رابط ) خپلواك ( واول ) ، ( لکه -a- په bar-a-nay کې ) ، ( ان ) bindevokal, bridge-vowel, bridge-sound

**تړښت** tar-áșt : تړاو ، تړنگ ، ( پا ) ترکیب ، طرز ترکیب ، ( ان ) composition, compound (in wordformation)

**تړښتي** taraşt-í : تړنگي ، ( پا ) ترکیبی .

**تړغونډله** tár-ɣóndla : عطفیه جمله ، ( پا ) جملهٔ عطفیه .

**تړگړ** tár-gar : زیاتره یو فونیمي مورفیم چې د کړ یا نوم ولې له نورو اړوندو کړونو سره تړي ( لکه -a- په pāc-á-m کې ) ، ( پا ) تك واژهٔ ارتباطی ، ( ان ) athematic morpheme

**تړلې څپه** tarále-capá : پورې څپه ، مغه څپه ( هجاء ) چې پر کنسوننټ پای ته رسي ، ( پا ) هجای بسته ، ( ان ) blocked syllable, closed syllalde

**تړلی خپلواك ( غږ )** :taṛálay-xpalwák(-ǵaẓ) پورتنی خپلواك ، ( پا ) ویل بسته ، ویل بالایی ، ( ان ) closed vowel, high vowel

**تړلیك** taṛ-lík : تړونلیك ، لوزنامه ، ( پا ) قرار داد ، عقد نامه ، عهد نامه ، ( ار ) سمجهوته ، معاهده ، ( ان ) convention, contract

**تړلی گړ** taṛálay-gáṛ : ( پا ) واج وابسته ، مورفیم وابسته ، ( ان ) dependent morpheme

**تړلی او پېيلی** taṛ-al-ay-aw-pey-ál-ay : ( په سیاست کې ) په چا پورې تړلی ، ( پا ) بسته و وابسته ، لازم و ملزوم .

**تړنگ** taṛáng : تړښت ، ( پا ) ( طرز ) ترکیب ، مرکب ( لغوی ) ، ( ان ) (word) compound

**تړون** taṛún : تړه ؛ سازښت ، لوز نامه ؛ تړنه ، نوموښه ( کتاب ) ؛ اړه تړه ، ( پا ) قرار داد ؛ زد و بند ، سازش ؛ پیمان ، ( عر ) میثاق ، معاهده ؛ انتساب ، ( ان ) convention, contract

**تړونلیك** tar-un-lík : تړلیك ، لوز نامه ، قرار داد لیك ، ( پا ) عقد نامه ، عهد نامه ، قرار داد نامه ، سند قرار داد ، ( ان )

convention, contract

**تړون ماتی** tar-un-mā́t-ay : تړون ماتوونکی ، تړماتی ، ژمن ماتی ، ( پا ) پیمان شکن ، عهد شکن ، وعده خلاف .

**تړونوال** taṛ-un-wā́l : تړون والا ، ( پا ) قرار دادی ، هم پیمان ، ( عر ) معاقد ، متعاقد ، معاهد .

**تړوني** taṛ-un-í́ : د تړون اړوند ، ( پا ) قرار دادي ، ( ان ) conventional, contractual

**تړوییکی** tā́ṛ-wayí-kay : د عطف توری ( ادات ) ( او ) ، ( پا ) حرف ( ادات ) عطف ( و ) ( ان ) connective conjunction

**تشپانی** taš-pā́ṇ-ay : بنوبی ، بې وسلې ، ( پا ) خلع سلاح ( شده ) ، ( ار ) غیر مسلح ، ( ان ) disarmed

**تشپاني** taš-pāṇí́ : بی وسلې کونه ، ( پا ) خلع سلاح ( ان ) disarmament

**تش ذهنی** taš-zéhnay : بنگوله ، ناخبر ، بې خبره ، ( پا ) خالی ذهن ، بی اطلاع ( قبلی ) .

**تشناب کاغذ** tašnā́b-kāɣáz : تېتی کاغذ ، ( پا ) کاغذ طهارت ، ( ان ) toilet-paper

**تشیال** taš-yấl : تشه، تشیا، ( پا ) کیهان، سپهر، ( عر ) فضاء، خلاء، ( ان ) space, cosmos

**تښن** taṣ-án : تښتند، تښتېدونکی، ( پا ) گریزان، فراری، پایگریز، گریز پا.

**تکړښت** takṛ-áṣt : تکړه والی؛ کړاو، ورزش، ( پا ) ورزش ( بدنی )، تربیهٔ بدنی، ( ان ) sport, exercise

**تگلار** tag-lấr : ( پا ) خط مشئی؛ اساسنامه ( ار ) راه عمل، لائحهٔ عمل، ( ان ) procedure, policy, routine; articles of association

**تگلوری** tag-lóray : کړنلار ( پا ) مسیر ( حرکت )، سمت حرکت؛ خط مشئی، ( ان ) policy

**تلبهاندی** tal-bahấnday : مدام بهېدونکی، تل بهنده، تل بهېدونکی، ( پا ) همیشه جاری.

**تلبهاندې چینه** taḷ-bah-ấnde-čina : تلتاندې چینه، ( پا ) چشمهٔ لایزال.

**تلپاتې** tal-pấte : تلپایند ، تلژوندی ، مدامي ، ( پا ) مانده گار ، ماندگار ، جاوېد ، جاوېدان ، ابدی ، ( ار ) زندهٔ جاوید .

**تلپایند** tal-pấy-and : ( تلپاتې ) .

**تلتاندی** tal-tấnd-ay : همېشه ( مدام ) تازه ، ( پا ) همیشه سبز و خرم ، همیشه تر و تازه ، همیشه سېراب و شاداب .

**تلتیا** tal-tyấ : همیشه والی ، پایښتیا ، ( عر ) استمرار ، ( ان ) duration

**تلتیا اړخ** tal-tyấ-aṛx : ( پا ) وجه استمراری ، ( ار ) دورانی پهلو ، میعادی پهلو ، ( ان ) durative aspect

**تل چمتو** tal-čamtú : تلبېلودی ، تل بې وملی ، تلتیار ، ( پا ) همیشه آماده ، همیشه تیار و آماده ، ( ان ) eveready

**تلځلاند** tal-jal-ấnd : مدام ځلېدونکی ، تل ځلیدونکی ، ( پا ) همیشه درخشان .

**تلڅپاند** tal-cap-ấnd : ( پا ) همیشه متلاطم ، همیشه موجزن ،

**تلرپاند** tal-rapấnd : تل رپېدونکی ، ( پا ) همیشه در امتزاز ؛ همیشه لرزان .

**تلزرغون ( ـ ی )** tal-zarǥún(-ay) : تلشین ، ( پا ) همیشه سبز ، همیشه بهار ( ار ) سدا بهار ، ( ان ) evergreen

**تلژړاند** tal-žaṛ-ā́nd : تل ژړغونی ، تل ژړېدونکی ، ( پا ) همیشه گریان .

**تلژوندی** tal-žwandáy : د تل لپاره ژوندی ، همیشه ژوندی ، تلپاتی ، ( پا ) زندهٔ جاوید ، جاویدانی .

**تلسمسور ( ـ ی )** tal-samsór(-ay) : تلښېراز ، ( پا ) همیشه سبز ، همیشه تازه ، همیشه بهار ، ( ار ) سدا بهار ، ( ان ) everjreen

**تلشنې ونې** tal-šné-wane : تلزرغونې ونې ، ( پا ) درختان همیشه سبز ، درختهای همیشه بهار ، ( ان ) evergreen trees

**تلشین** tal-šín : تلزرغون ، تلښېراز ، ( پا ) همیشه سبز ، ( ان ) evergreen

**تلښېراز ( ی )** tal-ṣerā́z(-ay) : تلشین ، تلزرغون ( پا ) همیشه سبز ، همیشه بهار ، ( ان ) evergreen

**تلنځ** tlanj : د تېرېدو ځای ، تلنځی ، کېت ، دین ، ( پا ) گذرگاه ؛ کېش ، دین ، ( عر ) مزهب ، دین .

**تلوار وال** talwā́r-wā́l : تلواري ، اورترور ، بېړنوی ، ( پا ) شتابگرا ، شتابزده ، ( عر ) عجول ، ( ان ) precipitate, hasty, impetuous

**ځلول** : برېښول ، ځلښت ورکول ، ( پا ) درخشانيدن ؛ بازتاب دادن .
jalawə́l

**ځلونه** jalawána : ( پا ) بازتابدهی ، واکنش ، ( عر ) تبلور ، ( ان ) crystallization

**ځمبا** jamb-ā́ : ځمب ، ځمبل ، رپا ، رپ ، ( پا ) پلك زدن ، چشم بهم زدن ، ( عر ) طرفة العين .

**ځمکباندې** jmak-bā́nde : پر ځمکه ، دځمکې پر مخ ، ( پا ) بالای زمین ، روی زمین ، ( ان ) overground

**ځمکبلوسنه** jmak-blos-ána : په زوره د ځمکی لاندې کول ( غصبول ) ، ( پا ) غصب زمین ( مربوط یك کشور ) .

**ځمکبوټپوهنه** jmák-buṭ-pohána : دبوټو ځمکپوهنه ( جغرافيا ، ( پا ) جغرافيای گياهی ، ( ان ) geobotany

**ځمکپوهاند** jmak-pohánd : ځمکپوه ، ( پا ) جغرافيا دان ، جغرافی دان ، ځاینومځېړنه ، ( ان ) geographer

**ځمکپوهنوېش** jmák-pohan-wéš : جغرافيايي وېش ، ( پا ) توزیع جغرافيايي ، ( ان ) geographical distribution

**ځمکپوهنه** jmak-pohána : د ځمکی علم ، ( پا )

جغرافیا ، ( ان ) geogra jphy

**ځمکپېژاند** jmak-pežā̃nd : د جیالوجۍ ماهر ، ( پا ) زمین شناس ، ( ار ) ماهر علم طبقات الارض ، ( ان ) geologer, geologist

**ځمکپېژندنه** jmak-pežand-ána : د ځمکې د جوړښت او رغنده توکونو علم ، ( پا ) زمین شناسی ، ( ار ) علم طبقات الارض ، ( ان ) geology

**ځمکزی** jmak-záy : د ځمکې اوسېدونکی ، ادمزی ، ( پا ) زمین زاد ، باشندهٔ زمین .

**ځمکخوځه** jmak-xúca : په اوبو ( سمندر ) کې ځمکنۍ ریتاړه یا پټیاره ، ( پا ) خاکنا .

**ځمکدننه** jmak-danána : د ځمکې دننه ، په ځمکه کې دننه ، ( پا ) درون زمین ، در بین زمین ، داخل زمین ، زیر زمین ، ( ار ) زمین روز ، زیر زمین .

**ځمکرېږد** jmak-réẓd : ځمکرېږدله ، رېږدله ، ( پا ) زمین لرزه ، ( عر ) زلزله ، ( ان ) earth quake

**ځمکژبپوهنه** jmák-žab-pohána : جغرافیايي ژبپوهنه ، ژبنۍ جغرافیا ، ( پا ) زبانشناسی جغرافیایی ، ( ار ) جغرافیائی لسانیات ، ( ان ) linguistic geography

**ځمکسمون** jmak-samún : د ځمکې اصلاح ( اصلاحات ، ( پا ) اصلاح ارضی ، اصلاحات ارضی ، ( ار ) زرعی اصلاحات ، ( ان ) agrarian reform, landreform

**ځمکغونډاری** jmak-jwənḍ-ā́r-ay : ځمکنی غونډاری ، دځمکې غونډاری ، خاورین غونډاری ، ( کره ) ، ( پا ) کرهٔ زمین ، کرهٔ ارض ، ( ان ) earth, the terrestrial globe

**ځمکلاندې** jmak-lā́nde : تر ځمکې لاندې ، ( پا ) زیر زمین ، تحت الارضی ، ( ار ) زمین دوز ، ( عر ) تحت الارص ، مخفی ، ( ان ) underground

**ځمکلاندې اوبه** jmak-lā́nde-obá : تر ځمکې لاندې اوبه ، ( پا ) آب ( های ) زیر زمین .

**ځمکمېچ** jmak-meč́ : د ځمکې دمېچولو پوهه ، ( پا ) زمین سنجی ، ( ان ) geodesy, geodetics

**ځمکنی** jmak-a-náy : د ځمکې اړوند ، ( پا ) زمینی ، ارضی .

**ځمکنی بشپړتیا** jmakanáy-bašpaṛ-tyá : ځمکنی تمامیت ، ( پا ) تمامیت ارضی .

**ځمکني توت** jmak-an-í-tut : گروس grus ، ( پا ) توت زمینی ، توت فرنگی ، ( ان ) strawberry

**ځمکنۍ ځواک** jmakanáy-jwāk : ځمکنۍ قوه، ( پا ) نیروی زمینی، قوهٔ زمیني، ( ار ) بری قوت، ( ان ) land force

**ځمکواک** jmak-wā́k : ( ار ) جاګیردار، ( پا ) ملوك الطوایفی، ( ان ) landlord, feudal

**ځمکواکي** jmak-wāk-í : ( ار ) جاګیر داری، ( پا ) ملوك الطوائفی، ( ان ) feudalism

**ځمکوالي** jmak-wāl-í : ځمکواله، ( پا ) زمینداری، ملاکي، ( ار ) زمینداره.

**ځمکوال** jmak-wā́l : د ځمکې څښتن، ( پا ) زمیندار، صاحب ملك، ( ان ) landlord, owner of the land

**ځمکوېش** jmak-wes̃ : دځمکې وېش، ( پا ) توزیع ارضی.

**ځمکهوا توغندی** jmak-hawā́-toɣanday : مغه توغندی ( راکټ ) چې له ځمکې هواته ویشتل کېږي، ( پا ) موشك زمین به هوا.

**ځناورانه** janāwar-ānā́ : ځناور وزمه، ( پا ) جانورانه، دد منشانه، وحشیانه.

**ځناور خویه** janāwar-xúya : ځناور لوښی، ( پا ) دد

منش .

**ځنډ پوهی** jand̩-pohay : ځنډنپوهی ، ( پا ) دیر فهم ، مفته کوك .

**ځنډن** jand-án : ځنډنی ، ( پا ) معطل شده ، دیر شده ، کند ، بطی ، ( عر ) معطل ، مطلق .

**ځنګلوان** jangal-wā́n : د ځنګله ساتونکی او پازوال ( ذمه وار ) ، ( پا ) جنګلبان ، ( ان ) forester, forest warden

**ځنګلواني** jangal-wān-í : د ځنګلي چارو اداره یا ځانګه ، ( پا ) جنګلبانی ، جنګلداری ، ( ان ) forest protection

**ځواب لوڅی** jwāb-lúc-ÿ : ژر ځوابی ، ( پا ) حاضر جواب ، بدیهه ګو ، ( ان ) present-minded, quick-witted, witty

**ځواك انډول** jwāk-and̩wál : د ځواك ( ځواکونو ) تول ، دقوو توازن ، ( پا ) توازن قواء .

**ځواك بدلون** jwāk-badl-ún : د ځواك ( قدرت ) بدلون ، ځواکونج ، ( پا ) تغییر قدرت .

**ځواکپېر** jwāk-pér : د قدرت دوره ، ( پا ) دورهٔ قدرت

یا اقتدار ، ( ار ) عهد اقتدار ، دوران اقتدار .

**ځواکجګړه** jwāk-ǰagṛá : پر ځواك ( باندې ) جنګ جګړه ، ( پا ) جنګ بر سر قدرت .

**ځواکځی** jwāk-jáy : د قدرت ځای؛ دانرجۍ مرکز ، ( پا ) نیروګاه ( برقی ، ذروی ... ) .

**ځواك سیمه** jwāk-sīma : تر ځواك لاندې سیمه ، ( پا ) قلمرو قدرت ، ساحهٔ اقتدار .

**ځواك شخړه** jwāk-šxáṛa : ځواك جګړه ، ( پا ) کشیده ګی بر سر قدرت ، منازعهٔ قدرت ، جنګ قدرت .

**ځواك کارونه** jwāk-kārawána : د قدرت استعمال ، ( پا ) استعمال قدرت ، اعمال قدرت ، اعمال قوه .

**ځواکلېږد** jwāk-léẓd : د ځواك لېږد ( انتقال ) ، ( پا ) انتقال قدرت ،

**ځواك لېوال** jwāk-lewā́l : ځواك غوښتونکی ، د قدرت لېوال ، ( پا ) اقتدار پسند ، قدرت طلب .

**ځواك لېوالتیا** jwāk-lewāl-tyā́ : د قدرت لېوالتیا ، ( پا ) اقتدار پسندی ، قدرت طلبی .

**ځواکمن** jwāk-mán : سېکمن ، پیاوړی ، زوروړ ، غلبېچ ، ( پا ) قدرتمند ، زورمند ، توانا ، توانمند ، نیرومند ، قوی ، صاحب

قدرت، صاحب اقتدار، ( ار ) طاقتور .

**ځواکمني** jwāk-man-í : پیاوړتیا، ( پا ) توانایی، قدرتمندی، اقتدار، نیرومندی .

**ځواکمېچ** jwāk-méč : د ځواك دمېچ ( اندازې ) اله، ( پا ) نیرو سنج، ( عر ) میزان القوه، ( ان ) dynamometer

**ځواکونج** jwāk-wánǰ : ځواك بدلون، د قدرت بدلون، ( پا ) تغییر قدرت، تبدیل قدرت .

**ځواکوېش** jwāk-wéš : د قدرت وېش، ( پا ) تقسیم قدرت ( در دولت )، ( ار ) تقسیم اقتدار، ( ان ) division of power

**ځواکهڅه** jwāk-háca : ځواکپالنه، ( پا ) قدرت طلبی، قدرت گرایی، جاه طلبی .

**ځواکهڅی** jwāk-hác-ay : ځواك ( قدرت ) غوښتونکی، ځواکپال، ( پا ) قدرت طلب، جا طلب .

**ځوانکه** jwān-áka : د ځوانۍ دانه؛ ( نباتي ) تبغ، ( پا ) جوانی دانه؛ جوانه .

**ځوراك** jawr-ā́k : ځور، ځورونه، ربړونه، ( پا ) جور، شکنجه، ( عر ) جبر، اجبار، تعذیب .

**ځوراند** jawr-ā́nd : ځوروونکی، ربړوونکی، شکنجه

کوونکی، ( پا ) آزار دهنده، جور دهنده، زجر دهنده.

**ځور ځای** jáwar-jā́y : ځورځی، شکنجه ځی، ( پا ) شکنجه گاه.

**ځوروازار** záwr-o-azā́r : ځور و شکنجه، ( پا ) جور و شکنجه، زجر و شکنجه، جور و آزار.

**ځور و شکنجه** jáwr-o -šekanǰa : ځور و ازار، ( پا ) جور و شکنجه، جور و آزار.

**ځوړتیا** jwaṛ-tyā́ : کښوتون، شاتگ، ( پا ) سراشیبی، ( عر ) انحطاط، فتور.

**ځوز گوړی** joz-guṛ-áy : ځوزژاوله ( پا ) ترنجبین، ترنگبین، ( ان ) manna of hedysarum

**ځوښا** joṣā́ : رښ، دمېوې اوبه، ( پا ) شیره،آب میوه، ( عر ) عصاره، ( ان ) juice, extract

**ځې** je : ځ، د پښتو آبېځې نهم توری، ( پا ) زای پشتو.

**ځیر کېدل** jir-ked-ál : متوجه کېدل، پام کېدل، ( پا ) متوجه شدن، دقیق شدن ( متعدي : ځیر کول،متوجه کول )، [توجه ورکول، یو ببځایه تقلید دی ].

**ځیرمن** jir-mán : ځیر، ( پا ) با دقت، آدم دقیق،

**ځیرل** jir-ál: شنل، ( پا ) تحلیل کردن، تفسیر کردن.

**ځېل** jel :فعلی صیغه ( مجهول و معلوم)، ( پا ) صیغهٔ فعلی به ارتباط معلوم و مجهول، ( ان) voice

**ځیرنه** jir-ána : ---> شننه .

**ځېلپوهه** jel-póha :ژبځېلپوهنه، دژبپوهنې یوه څانگه چې له ژبنیو ځېلونو ( ټایپونو ) سره کار لري، ( پا ) گونه شناسی ( ان) typology

# (څ)

**څاپاکی** cā-pā́k-ay : څاه پاکی، د څاه ( کوهي ) پاکوونکی ( صفا کوونکی )، ( پا ) چاه پاك کن، پاك کنندۀ چاه، چاه صاف.

**څاپاکي** cā-pāk-í : څاه پاکي، د کوهي پاك کاري ( صفايي )، ( پا ) چاه پاکی، پاککاری چاه.

**څارځی** cār-jáy : څار ځای، څارتون، زرنيځ، ( پا ) رصد گاه، رصد خانه، زيچ، ( ان ) observatory

**څارن** cār-án : د څارندوی ( پوليسو ) تورن، ( پا ) سروان ( در پاسبانی ).

**څارند** cār-ánd : څارونکی، پلټونکی، ( پا ) بازبين، نگران، منتظر فرصت، ( عر ) مفتش، مترصد، نظار.

**څارندوی** cār-andóy : ( ۱ ) سپاهی، پوليس، ( ۲ ) سکوټ، ( پا ) ( ۱ ) پاسبان، ( ۲ ) پيشاهنگ، ( ان ) police; policeman; scout

**څارندوی مېنه** cār-an-dóy-ména : د څاندويي ( پوليسي ) افسرانو کالوني ، ( پا ) څارندوی مېنه ( کابل ) .

**څارنوال** cāran-wā́l : ( پا ) دادسرا ، ( ان ) (public) prosecutor ( لوی څارنوال : مدير کل دادسرا ) .

**څارنوالي** cāran-wāl-í : ( پا ) داد سرا ، پارکه ، ( ان ) public prosecutors office

**څارنه** cārána : ( پا ) نگرانی ، دیده بانی ، رسیده گی ، ( عر ) مراقبت ، مواظبت ، نظارت ، ( ان ) supervision, control

**څارنه او پاملرنه** cār-ána-aw-pām-lar-ána : ( پا ) مراقبت و مواظبت .

**څارنه او ساتنه** cār-ána-aw-sāt-ána : ساتنه او څارنه .

**څارو** cār-ú : په څار ( سخت انتظار ) کې ، سترگې پرلار ( پا ) منتظر فرصت ، در کمین نشسته ، ( ع ) منتظر مراقب ، مواظب ،

**څاروال** cār-wā́l : څارونکی ، څارو ، ( پا ) منتظر فرصت ، دیده بان ، ( عر ) مترصد ،

**څاروان** cār-wā́n : جوپه مشر ، لیږ غندی ، ( پا )

ساربان، کاروان سالار، ( ار ) میر کاروان.

**څارونکی** cār-únkay : څارند، کتونکی، ( پا ) نظارت کننده، منتظر فرصت، ( عر ) نظار، مترصد، ( ان ) supervisor, spectator

**څارویتون** cārwi-tún : د څارویو روغتون ( ناکره: څارنتون )، ( پا ) بیطارخانه، ( ار ) هسپتال حیوانات، ( ان ) veterinary hospital

**څاروي درملي** cārwí-darmalí : د څارویو درملي ( طبیب )، څاروي رنځپوه (-->)، ( پا ) دام پزشك، ( ان ) veterinarian

**څاروي رنځپوه** cārwí-ranj-póh : د څارویو درملگر ( ډاکټر )، ( پا ) دام پزشك، ( عر ) بیطار، ( ار ) ډاکټر حیوانات، ( ان ) veterinarian

**څاروي رنځپوهنه** cārwi-ranj-poh-ána : د څارویو درملگری ( طبابت )، ( پا ) دام پزشکی، ( ان ) veterinary (science), veterinary medicine

**څاروی روزنه** cārwi-roz-ána : څاروي ساتنه، پووندگلي، مال ساتنه ( مالداري )، ( پا ) مالداری، دامداری، د امپروری، ( ان ) animal husbandry

**څاروي ساتنه** cārwi-sāt-ána ← څاروي روزنه .

**څاروي وال** cārwi-wāl(-ā) : څاروي ساتونکی ، پووونده ( مالدار ) ، ( پا ) د امپرور ، ( ان ) farmer, husbandman

**څاروی وزمه** : cārwi-wázma : څاروي ړوله ، څاروینکه ، څلور بولې ، ( پا ) چهار پا نما ، مانند چهار پای .

**څاکن** cā-kán : څاه ( کوهی ) ایستونکی ، ( پا ) چاه کن .

**څاکني** cā-kan-í : څاه کني ، کوهی ایستنه ، ( پا ) چاه کنی .

**څانګغوځ** cāng-ɣwác : وزر پرېکړی ، وزرغوڅی ، ( پا ) پا بال زخمی .

**څانګنومونې** cang-num-aw-án-e : نومونپوهنه ، څانګویې پانګه ، ( پا ) دانشواژه ها ، اصطلاحات تخنیکی ، ( ان ) technical terms, nomenclature

**څانګوال** cāng-wāl : د څانګې ( ملك ) څښتن ، ( پا ) صاحب رشته ( مسلك ) ، ( عر ) حرفوی ، متخصص ، ( ار ) ماهر ، ( ان ) expert, professional

**څانګور** cāng-wár : وزر لرونکی ، ( پا ) بالدار .

**څانګور توغندی** : cāng-wár-toɣnday : وزرلرونکی توغندی ، ( پا ) موشك بالدار ، راکت بالدار .

**ځانګوييپانګه** : caͣng-wayi-paͣnga ځانګيزه ( اختصاصی) نومونپوهنه، ( پا ) لغات فنی یا دانشواژه های اختصاصی، ( ان ) nomenclature

**ځانګه** caͣnga : ښرانګه، ښاخ؛ ( پا ) شاخچه؛ رشته، بخش، ( عر ) شعبه، تخصص، ( ان ) branch, field, department

**ځانګې او پاڼې** : caͣnge-aw-paͣṇe ځانګې پاڼې، ( پا ) شاخ و برگ.

**څپن الواک** capán-alwáx : موجي نظريه، ( پا ) نظريه موجی ( زبان)، ( جر ) wellentheorie، ( ان ) wave theory

**څپه** capá : چپه، چل، چله، ( پا ) خيزآب؛ سيلاب ( شعر )، ( عر ) موج؛ هجاء، ( ان ) wave; syllable

**څپه ستونځ** capa-stúnj : څپې څوکه، د څپې واول، ( پا ) اوج هجاء، ( ان ) syllabic peak

**څپيز** cap-íz : سيلابيك، سيلبيك، ( پا ) هجائی، سيلابيك ( يوڅپيز، دوه څپيز ...).

**څپيز- خجيز** cap-íz-xaǰ-íz : سيلابوتونيك ( شعری وزن)، ( پا ) سيلابوتونيك، وزنيكه بر پايهٔ سيلاب ( هجاء ) و

تون ( آهنگ) استوار باشد ، ( ان ) syllabic - tonic

**څپيزه بڼه** cap-íza-báṇa : د څپې ( هجاء ) بڼه ، ( پا ) مختصهٔ هجايی ، ( ان ) vocalic (syllabic)feature

**څټ مری** caṭ-maráy : د اورمېږ مری ( مهره ) ، ( پا ) مهرهٔ گردن .

**څڅواکي** cac-wā́ki : ميده يا واړه څاڅکي ( د ليکوال ديوه شعري غونډ نوم ) ، ( پا ) قطره گك ها ، نام مجموعهٔ شعر نويسندهٔ اين کتاب .

**څڅوب** cac-ób : څڅوبی ، څڅك ، څڅون ، ( پا ) تراوش ، تقطير ، چکك .

**څڅی** cacáy : تره tára ، ( پا ) ناوه ، ناودان .

**څرخگر** carx-gár : باټگر ، ( پا ) چاقو تېز کن ، ( ان ) grinder

**څرکبني** crak-baní : پلټنه ، لټون ، لټونواله ، پټه پلټنه ، سجيل ، سجيلټوب ، ( پا ) سراغ جويی ؛ جاسوسی ، خفيفه پوليسی ، ( ار ) سراغ رسانی .

**څرکبه** cark-bá : څك کښونکی ، پټه لگوونکی ؛ پټ پلټونکی ، ( عر ) جاسوس ، مامور خفيه ، ( ان ) spay

**څرگند غاړی** cargand-ɣā́ṛ-ay : ( پا ) دارای لحن

صریح ، رك ، ( عر ) صریح اللحن .

**ځرگند نوړ** cargand-an-waŕ : د بیان وړ ، د ځرگندنې وړ ، ( پا ) قابل بیان ، قابل توضیح .

**ځرگندنه** cargand-ána : ځرگندونه ؛ ( پا ) اصطلاح ، ( عر ) بیان ، عبارت ؛ اصطلاح ؛ افاده ، ( ان ) expressing; expression

**ځرگندني** cargand-aní : ځرگندوني ، د ځرگندنې وړ ، ( پا ) بیانی ، توضیحی ، افادوی ، ( ان ) explanatory, expressive

**ځرگندني غونډله** cargand-an-í-ǵóndla : بیانیه غونډله ( جمله ) ، ( پا ) جملهٔ بیانیه .

**ځرگندون** cargand-ún : ځرگندنه ، ( پا ) آشکار سازي ، ( عر ) بیان ، افاده ، اظهار ، ابراز .

**ځرگندونه** cargand-awána : ځرگندون ، بیانونه ، ( پا ) ابراز داشتن ، ( ار ) اظهار ، تشریح ، ( عر ) توضیح ، وضاحت ، شرح .

**ځرگندوی** cargand-óy : ښکارندوی ؛ استازندوی ، استازگر ، ( پا ) نمایانگر ؛ نماینده ( عر ) ممثل ؛ وکیل ، مظهر ، ( ان ) exponent, envoy, advocate

**څرګندويي** cargando-yí : ښکارندويي ؛ استازندويي ، استازي ، استازګری ، استازيتوب ، ( عر ) تمثيل ، تکفل .

**څرګندوييکی** cargánd-wayí-kay : بياني ادات ، ( پا ) ادات بيانيه .

**څرمن باب** carman-báb : څرمني څيزونه ، بېلا بېل څرمني ډولونه ، ( پا ) چرمينه ، لوازم چرمی .

**څرمنساز** carman-sáz : څرمن جوړوونکی ، څرمن پخوونکی ، ( پا ) چرمساز ، چرمګر ، ( عر ) د باغ ، سراج ، ( ان ) currier, tanner

**څرمنسازي** carman-sāz-í : څرمجوړونه ، څرمن پخونه ، ( پا ) چرمسازی ، سراجی ، ( ان ) curriery, tannery

**څرمني** carman-í : څرمي ، څرمنيز ، د څرمنې ، ( پا ) چرمی ، چرمين ، ( ان ) leathern

**څرمه** cérma : څرمه ييز ؛ اړخيز ( پا ) پيوست ؛ نزديك ، ( عر ) ملحق ، متصل ؛ فرعی ؛ جنبی .

**څرمه غونډله** cérma-ɣóndla : څرمه ( فرعي ) جمله ، ملړ غونډله ، بېواکه غونډله ، ( پا ) جمله فرعی ، جملهٔ وابسته ، بندتبعی ، ( ان ) subordinate clause

**څرمه ييز** cerma-yíz : څرمه ، ( پا ) فرعی ، الحاقی .

**څرنگوالی** carang-wálay : وړتيا ، ( پا ) چگونگی ، ( عر ) كيفيت ، شايسته گی ، ( ان ) quality

**څرنگيز** carang-íz : څرنگه ييز ، ( پا ) چونی ، ( عر ) كيفی ، ( ان ) qualitative

**څښتن پال** caṣtan-pál : خدای پاك ، خدای دوست ، خدای گروهی ، ( پا ) خدا پرست ، يزدان پرست ، گرويدهٔ خداوند .

**څښتنولی** caṣtan-wal-í : خاوند تيا ، تولولي ؛ څښتتوالـه ، خدای پالنه ، ( پا ) دارايی ، خدا پرستی ، ( عر ) ملكيت ، تصاحب ؛ الوهيت ؛ توحيد .

**څړه گي** caṛa-gí : څړه توب ، جره توب ؛ پلیتوب ، ( پا ) مجردی ، جره گی ؛ پياده گی ، ( عر ) تجرد :

**څړه لار** caṛá-lār : پلې لار ، څړه واټ ، ( پا ) راه پياده رو ، پياده روی ، ( ان ) foot path

**څښاك** csāk : څښنه ، د څښنې وړ ، ( پا ) نوشابه ، نوشيدنی ، آشامدني ، ( عر ) مشروب ، ( ان ) drink, drinkable

**څښاك اوبه** csák-oba : د څښلو اوبه ، د څښاك اوبه ، ( پا ) آب آشاميدنی ( روغتيايي څښاك اوبه : صحي څښاك

اوبه).

**څښاکخونه** csāk-xúna : د څښاك څښنې ځای، ( پا ) مشروب فروشی، شرابخانه، ( ان ) bar

**څښاك مېز** csāk-méz : څښاك ونج، څښاك دره، ( پا ) مېز مشروبات، پیش خوان، ( ان ) bar

**څښتنولي** castan-walí : تولوالي، ( پا ) دارا بودن، ( عر ) مالکیت، تصاحب.

**څکاك** ckāk : څکونه ( د تمکو، چرسو، هیرووینو ...)، ( پا ) تنباکو کشی، ( ار ) تمباکو نوشی، سیگار کشی، ( ان ) smoking

**څڅك** cak-ák : څڅوب، څڅوبی، څڅوُن، څڅېدنه، ( پا ) تراوش، چکك، ( ع ) ترشح، تقطیر.

**څلاري** calār-í : څلور لاري، ( پا ) چهار راه، چهار راهی، چوك، چهارسو، ( ار ) چوك، ( ان ) crossroads, square

**څلڅراغ** cal-ceráɣ : ( پا ) چلچراغ، چهل چراغ، ( ان ) candelabrum, chandelier

**څلور بل** calor-bál : څلور پښیز، ( پا ) چهار پایه.

**څلور ځپیز** calor-cap-íz : څلور هجایي، څلور

سيلابه ، ( پا ) چهار هجائی ، ( ان ) quadrisyllabic

**څلور څرخه** calor-carxá : څلور اربيز سايكل يا گاډی ( پا ) چهار چرخه ، ( ان ) four wheeled, quadricycle

**څلور څنډ** calor-cánd : څلور څنډيز شكل ، ( پا ) چهار ضلعی ، ( عر ) مربع ، ( ان ) square

**څلور گوټ** calor-gwáṭ : څلور كونجه ، د څلور و گوټونو ( زاويو ) شكل ، ( پا ) چهار گوش ، چهار گوشه ، ( ان ) guadrangle

**څلور دېوالي** calor-dewāl-í : ( د كور ) څلور دېوالي ، ( پا ) چهار ديواری ( خانه و مانند آن ) .

**څلور ښځی** calor-ṣáj-ay : د څلورو ښځو خاوند ، ( پا ) چهار زنه ، شوهر چهار زن .

**څلور ښځي** calor-ṣaj-í : څلور ښځمني ، ( پا ) چهار زنی .

**څلور كړيزه** calor-kaṛ-íz-a : څلوريزه ، چار بيته ، ( پا ) چار بيتی ( پشتو ) .

**څلور لاري** calor-lār-í : څلاري ، ( پا ) چوك ، چهار راهی چهار راه ، چهار سو ، ( ان ) square

**څلور یاران** calor-yārān : څلور واړه یاران ، ( پا ) چهار یار ، خلفای راشده چهارگانه .

**څلوریځ** calor-íz : هغه دوه بیتي چې څلور واړه مسرې یې قافیې لرې ، ( عر ) مربع ( شعر ) .

**څلوریزه** calor-íz-a : دوه بیتی دوه کړییزه ، ( پا ) چهار پاره ، ( عر ) رباعی .

**څله** calá : د ژمي څله ؛ د واده څله ، ( پا ) چلهٔ زمستان ، چلهٔ انگشت یا چلهٔ عروسي .

**څله ځای** cala-jāy : د څلې ایستلو ځای ، ( پا ) خانقاه ، جای اعتکاف .

**څلېر** cler : ډنډ ، ترپل ، ترپلی ، ( پا ) برکه ، حوض آب صحرا .

**څنډ** cand : د هسك ( آسمان ) څنډه ، ( پا ) کنارهٔ آسمان ، ( عر ) افق ، ( ان ) horizon

**څنډه** canda : --> لمن ( ـ لیك ) .

**څنډیز** cand-íz : د څنډ ( افق ) اړوند اړخیز ، ( پا ) افقی ، کناری ، ( ان ) horizontal

**څنگزنی** cang-zánay : څرمه ، څرمه ییز ، په ترڅ ( ضمن ) کې راتلونکی ، ( پا ) ضمنی ، ( ان ) implicit,

implied

**څو اړخيز** co-aṛx-íz : څو اړخه، څو خوابيز، ډېر اړخيز، ( پا ) چند پهلو، چند سطحی، چند بعدی، ( عر ) کثيرالجوانب، کثيرالوجهه، کثير الابعاد، ( ان ) polyhedral, many sided, multilateral

**څوبمن** cawb-mán : شوقمن، د څوب (sawb) خاوند، ( پا ) ذوقمند، صاحب ذوق.

**څوبند** cáw-band : هڅند، هڅاند، هڅوونکی؛ شوقي، ( پا ) تشويق کننده؛ ذوقی، شوقی.

**څوپېړيز** co-peṛay-yíz : د څوپېړيو ( سديو )، ( پا ) چندين قرنه.

**څو څپيز** co-cap-íz : څو هجايي، څو سپلابه، ( پا ) چند هجائی، چند سيلابه، ( ان ) polysyllabic

**څو زر کلن** co-zar-kal-án : د څو زرو کلو ( زوړ يا پخوانی )، ( پا ) چندين هزار ساله.

**څو ژبی** co-žáb-ay : هغه څوك چې په څو ژبو يا ډېرو ژبو پوهېږي، ( پا ) چند زبانه، چند زبانی، ( ان ) polyglot (lingual), multilingual

**څو ژبي** co-žab-í : ډېر ژبي، څو ژبيوالی، ( پا ) چند

زباني ، ( ان ) polylingualism

**څو ژبيز** co-žab-íz : څو ژبي ( فرهنگ ، ډيکشنري ) ، ( پا ) چند زبانه ، چند زبانی ، متعدداللسان ، ( ان ) polylingual, polyglot, multilingual ( څو ژبيز سيند : قاموس يا ډيکشنری چند زبانه ) .

**څو غونډله ييز** co-ǰond-la-yíz : څو جمله يي ، ( پا ) چند جمله يی ( ای ) ، ( ان ) composed of several sentences

**څوکۍ** cawkáy : چوکۍ ( ناکره ) ، ( پا ) چوکی ، ( عر ) کرسی ، منصب ، ( ان ) chair, post

**څوکۍ پال** cawkay-pā́l : څوکۍ مينی ، ( پا ) چوکی پرست ، جاه طلب ،

**څوکۍ پالنه** cawkay-pālána : ( پا ) چوکی پرستی ، جاه طلبی ، ( ان ) overambition

**څوکۍ مينی** cawkay-mayánay : څوکی مين ، د څوکی ليوال ، ( پا ) جاه طلب ، طالب مقام ، ( ان ) ambitious

**څوکيوال** cawki-wā́l : پهرې ( پيرې ) والا ، څوکيدار ، کوټوال ، ( پا ) چوکيدار ، پهره دار ، پاسبان ، نگهبان ، شحنهٔ شب گرد ، ( عر ) عسس ، ( ان ) watsh man

**څوکيوالي** cawki-wālí : څوکيداري ، ( پا ) پهره داری ، چوکيداری ، پاسبانی .

**څو گرايه** co-grā́ya : څو برابره ، څو چنده ، ( پا ) چند برابر ، چند مرتبه .

**څو گوټيز** co-gwaṭ-íz : څو بعدي ، څوگوټه ( کونجه ) لرونکی ، ( پا ) چند پهلو ، چند بعدی ، ( ان ) polygon, multy dimensional

**څو گوندي** co-gwandí : څو گونديز ، ( پا ) چند حزبی ، چند حزبه .

**څو گونديز** co-gwand-íz : ---> څو گوندي .

**څو گير** caw-gír : څارو ، څاروال ، ( پا ) فرصت جو ، منتظر فرصت ، فرصت طلب ، ( عر ) مترصد .

**څو گيري** caw-gir-í : څاروالی ، ( پا ) فرصت طلبی .

**څو مخيز** co-max-íz : تر دوه مخيز زيات ( منافق ) ، ( پا ) چند سطحی چند رويه ؛ بسيار ( خيلی ) منافق . ( ان ) polyhedron

**څومره والی** cumra-wā́lay : څومروالی ، ( عر ) مقدار ، کميت ، چندی ، ( ان ) quantity

**څومره ييز** cumra-yíz : ( پا ) چندی ، ( عر ) کمی ،

( ان ) quantitative

**څومره ييز و څرنګيز**
cumra-yíz-o-ca-rang-íz : ( پا ) کمی و کیفی .

**څوولسي** co- walas-ī : څوملیتي ، ( پا ) چند ملیتی ،
( ان ) multi-national

**څوهېواديز** co-hewād-íz : څو هېوادي ، ( پا ) چند
کشوری ، چند ملتی ،

**څه د پاسه** ca-da-pấsa : څه زيات ، ( پا ) چیزی
علاوه ،

**څه نا څه** cá-nā-cá : نژدې ، لږوډېر ، ( پا ) کم و بیش ،
طور تقریبی ، طور تخمینی ، ( عر ) تقریباً تخمیناً .

**څې** ce :څ، د پښتو ابېڅې لسم توری او غږ ، ( پا ) چ پشتو ،
حرف و صدای دهم الفبای پشتو .

**څیرله** cīrla : ژبنی عبارت یا فقره ؛ ټوټه ، ( کاغذی ) پرزه
( پا ) بند ، گروه ؛ پرزه ( کاغذ ) ، ( عر ) عبارت ، فقره ، ( ان )
piece, torn; phrase

**څېره غونډ** cera-ɣwánd : د عکسونو البم ( البوم ) ،
( پا ) آلبوم عکس ، ( ان ) album

**څېره کښ** cera-káṣ : انځورګر ؛ عکس اخیستونکی ،

( پا ) چهره کش ، نگار گر ؛ ( عر ) مصور ؛ عکاسی ، ( ان ) photographer

**څېره کښي** cera-kaṣ-ī́ : څېره کښنه ، عکس ( تصویر ) اخیستنه ، ( پا ) عکاسی ، فوتوگرافی .

**څېره کول** cera-kawál : نومکښنه ، نوملیکنه ، ( پا ) چهره کردن ، نام نویسی ، ثبت نام کردن ، ( ان ) register, notarize

**څیرې گرېوان** círe-grewā́n : گرېوان څیرې ؛ ویرجن ، ( پا ) گریبان چاك ؛ سوگوار .

**څېړاند** cer-ā́nd : ( لوی ) محقق ، ( پا ) پژوهشگر ( بزرگ ) .

**څېړنپال** ceṛan-pā́l : د افغانستان د پښتو ټولنې لوړ ترین لقب چې اوس ورته «سر محقق» وایي ، ( پا ) سر محقق .

**څېړنتون** ceṛan-tún : د څېړنې ټولنه ، ( پا ) پژوهشکده ، فرهنگستان ، ( ان ) research centre, academy

**څېړندود** ceṛan-dód : د څېړنې مېتود ، د څېړنې ډول ، ( پا ) طرز تحقیق ، متدتحقیق ، ( ان ) methodology

**څېړندوی** ceṛan-dóy : ( له لاندې خوا ) د پښتو ټولنې څلورمه درجه څېړونکی ، ( پا ) پژوهشگر .

**څېړنډله** ceṛan-ḍála : تحقیقی ډله، ( پا ) گروه پژوهشی. ( ان ) research groupe

**څېړنمل** ceṛan-mál : ( له لاندې خوا ) د پښتو ټولنې دریمه درجه څېړونکی، ( پا ) پژوهشگر.

**څېړنکار** ceṛan-kấr : څېړونکی، څېړنیال، ( پا ) پژوهشگر، ( عر ) محقق ( ان ) ریسرچر.

**څېړنه او شننه** zeṛána-aw-šanána : څېړنه او څیرنه، ( پا ) پژوهش و تحلیل.

**څېړنیار** ceṛan-yấr : څېړنکار، د پښتو ټولنې دویمه درجه څېړونکی، ( پا ) پژوهشگر.

**څېړونکی** ceṛ-únkay : ( د پښتو ټولنې تر ټولو ټیټه علمي درجه )، تحقیق کوونکی، څېړنکار، ( پا ) محقق، پژوهنده.

**څیز نوم** ciz-núm : ذات اسم، ( پا ) اسم ذات ( ان ) substantivs, noun

**څیز نوم څرگندی** ciz-num-cargánd-ay : هغه ژبنی توکی ( عنصر ) چې د اسم څرگندويي کوي، ( پا ) نمایندهٔ اسم، ( ان ) noun presentative

**څیز نوم شوی** ciz-num-šáway : هغه ستاینوم یا کړ ( صفت یا فعل ) چې پر څیز نوم ( اسم ) اوښتی وي، ( پا ) تبدیل

شده به اسم ، ( ان ) substantiviized

**څیز نوم مل** ciz-mum-mál : مغه ژبنی توك چې له اسم سره ملگری کېږي ، ( جر ) Begleiter des substantives

**څیز نومیز** ciz-num-íz : نومیز ، د څیز نوم اړوند ، ( پا ) مربوط یا مربوط به اسم ذات ، اسمی ، ( ان ) substantival

**څیزوال** ciz-wắl : د څیز ( شي ) اړوند ، غیر شخصي ، ( پا ) غیر شخص ، مربوط چیز ( شی ) یا ذات ، ( ان ) substantial ، ( جر ) sachlich

# (خ)

**خامباورى** xām-bāwār-ay : بې باوره، ناويسا؛ بېډاډه؛ بدوينى، ( پا ) بى باور، بى اعتماد؛ بى اطمينان؛ بدبين، ( ان ) incredulous

**خامباوري** xām bāwar-í : بى باوري، نا ويسايي، بدويني، ( پا ) بى اعتمادى، بى باورى؛ بد بينى، ( ان ) incredulity,unbelief

**خامكارى** xām-kăr-ay : خامكار، خامچارى، ( پا ) خامكار، ( ار ) ناتجربه كار، ( ان ) a green(inexperienced) person

**خانواكي** xān-wāk-í : خانخاني ( نظام ) خاني، ( پا ) ( نظام ) اربابى، ارباب سالارى، خان سالارى.

**خاور پوهاند** xāwar-pohánd : د خاور پوهنې څانگوال ( ماهر )، ( پا ) خاكشناس، ( ار ) ارض شناس، ( ان )

pedologist

**خاور پوهنه** xāwar-pohāna : د خاورې علم، ( پا ) خاکشناسی، ( ار ) ارض شناسی، ( ان ) pedology

**خاورخوځه** xāwar-xúca : وچه تړانګه، په اوبو کې ننوتې وچه، ( پا ) خاکنا.

**خاورګاړی** xāwar-gā̋ṛay : د خاورو ګاړی یا کراچۍ، ( پا ) درشکه ( کراچی ) خاك کشی.

**خاورین ساز** xāwr-in-sā̋z : کومباړ، کولال، ( پا ) کوزه ګر، کلال.

**خبر** xabár : په جمله کې د مبتدا په وړاندې برخه، ایښونې، ( پا ) خبر، مسند، ګزاره، ( ان ) predicate

**خبرتیا** xabar-tyā̋ : ( پا ) آګاهی، آګهی، ( عر ) اطلاع، معلومات، اطلاعیه، ( خبرتیاوې: معلومات، اطلاعات ). ( ان ) information, notice

**خبرتیایي** xabartyā-yí : د خبرتیا اړوند، ( پا ) اطلاعاتی، معلوماتی، ( ان ) informative

**خبرتیایي اوښتون** : xabar-tyā-yí-awuṣt-ún ( پا ) انقلاب اطلاعاتی، ( ان ) informational revolution

**خبر ځای** xabar-jā̋y : د خبر سر چینه، ( پا ) منبع

خبر ( ی )، ( ار ) ذریعه، ( ان ) source of new ( باوري
خبر ځای : (reliable source information

**خبرلوځ** xabar-lóc : کړتو ، ډېر غږېدونکی؛ ویند، ویاند؛ معلومات ورکوونکی، ( پا ) پرگوی؛ گوینده؛ معلومات دهنده، ( ان ) talkative; speaker; informent

**خبرلوځي** xabar-loc-í : ژبوري، ژبورتیا، خولوړتیا؛ وینده گي ( ډېر غږېدونه )، ( پا ) سخنوری، نطاقی؛ پرحرفی.

**خبروال** xabar-wāl : د قاضی د دفتر لیکونکی ( محرر )، ( پا ) کاتب دفتر قضائی، ( ار ) منشی، ( عر ) محرر.

**خبرونه** xabr-a-wána : خبرتیا، ( پا ) آگهی، ( عر ) ابلاغیه، اطلاعیه.

**خبري** xabar-í : ( ۱ ) بیاني ( فعل، جمله )؛ د خبر اړوند، ( پا ) بیانی، اخباری؛ اطلاعاتی، خبررسانی ( ان ) indicative; informational

**خبري اژانس** xabarí-azāns : خبري ځانگه، ( پا ) ( آژانس ) خبر گزاری، ( ان ) news-agency,news service

**خبریال** xabar-yāl : رپوټر، اخباری نماینده، ( پا ) گزارشگر، نامه نگار، خبر گزار، خبر نگار، ( ان ) correspondent, reporter

**خبریالي** xabar-yal-í : ( پا ) گزارشگری ، خبرنگاری ، ( ار ) نامه نگاری ، ( ان ) correspondence

**خبرې سرچینې** xabare-sar-ciné : باخبرې منابع ( ناکره ) ، ( پا ) منابع با خبر ( مطلع ) .

**خبري کړ** xabar-í-kaṛ : اخباري فعل ، ( پا ) فعل اخباری ، فعل بیانی ، ( ان ) verb with indicative mood

**خپرنځی** xpaṛa-n-jáy : د خپروني ځای ، ( پا ) محل نشر یا انتشار ، محل اشاعت ، ( ان ) publishing house

**خپرندوی** xpar-an-dóy : خپروونکی ، ( پا ) پخش کننده ، انتشار دهنده ، ( عر ) ناشر ، ( ان ) publisher

**خپرنی** xpar-a-náy : خپرنیز ، د خپروني اړوند ، د خپروني وړ ، ( پا ) نشراتی ، قابل نشر .

**خپرونه** xpar-a-wána : خپرونګ ، خورونه ، ( پا ) پخش ، نشریه ، ( عر ) نشر ؛ نشریه ، مجله ، ( ان ) publication, broadcasting; magazine

**خپل اړی** xpal-áṛ-ay : خپل ګټی ؛ خپل چاری ، خپل موخی ، ( پا ) مطلب آشنا ؛ خود غرض .

**خپلپال** xpal-pál : خپل پالونکی ، ( پا ) خویشخور ، فامیلی گرا .

**خپلپالنه** xpal-pālána : ( پا ) خویش خوري ، فامیلی گرایی .

**خپل چاری** xpal-čā́r-ay : خپل کاری ؛ ځانخوښی ، خپل اړی ، ( پا ) خود کار ( اتومات ) ؛ خود کامه ، خود پسند ، خود خواه ، ( ان ) automatic; self-interested

**خپلچاري** xpal-čār-í : ځانخوښی ، ( پا ) خودکامی ، ( ان ) self-interest

**خپل خوښی کار** xpal-xwáṣ-ay-kār : د خپلې خوښې کار ، ( پا ) کار داوطلبانه .

**خپلرنگی** xpal-ráng-ay : خپل رنگ لرونکی ( لکه قلم ) ، ( پا ) خود رنگ ( قلم و امثال آن ) .

**خپلزرغونی** xpal-zar ún-ay : ځانزرغونی ، پخپله زرغون شوی ، پخپله ټوکېدلی ، ( پا ) خود رو ، خود روییده ، ( ان ) self-grown

**خپلکاری** xpal-kā́r-ay : ځانکاری ، خپلچاری ؛ میخانیکي سړی ، ( پا ) خود کار ؛ آدم میخانیکی ، ربوتر ، ( ان ) automat; automatic

**خپللاسي** xpal-lās-í : لاسي ، ( پا ) ساختگی ، ( ار ) دستکاری ، نقلی ، ( عر ) مصنوعی ، ( ان ) artificial

**خپل منځچار** xpal-manj-čā́r : خپل منځي ، خپلمنځی کار ، ( پا ) میان خودی ، کار خود مانی ، کار ذات البینی ، ( عر ) ذات البینی .

**خپل منځي** xpal-manj-í : په.خپل منځ کې ( خبرې ، اړیکي ) ، ( پا ) خود مانی ، در بین خود ، بین هم ، ( عر ) ذات البینی ، ( ار ) باهمی ، ( ان ) mutual

**خپل مخی** xpal-máx-ay : خپل اړی ، ( پا ) خود غرض ، مطلب آشنا .

**خپل موخي** xpal-mox-í : خپل اړي ، ( پا ) خود غرضی ؛ مطلب آشنایی .

**خپلواك** xpal-wā́k : ازاد ، ( پا ) خود اختیار ، آزاد ، خود مختار ، ( عر ) مستقل ، حر ( ان ) independent

**خپلواك ( غږ )** xpalwā́k(ğaẓ) : خپلغږی ، د واول اواز ( فونیم ) ، ( پا ) واکه ، حرف مصوت ، ( عر ) صائت ، حرف علت ، ( ان ) vowel

**خپلواك بېواك** xpal-wā́k-be-wā́k : پر واول اوښتي کنسوننټونه ، ( پا ) همخوانهاییکه به واکه ها مبدل شده ، ( ان ) vocalic consonants

**خپلواکپای** xpal-wak-pā́y : په خپلواك ( واول )

مختوم ، ( پا ) مختوم به واول ، ( عر ) ناقص .

**خپلواکتوك** xpalwā́k-tok : خپلواك توكى ( عنصر ) ، ( پا ) عنصر مستقل ( زبان ) ، ( ان ) independent element

**خپلواك درېڅنډ** xpal-wā́k-dre-cánḍ : په خوله کې د خپلواکو ( واولو ) د وتو ځيو ( مخرجو ) له مخې درې څنډيز يا درې گوټيز ( مثلثي ) انځور ، ( پا ) سه گوشهٔ ( مثلث ) ويلى به ارتباط مخارج توليد ويل ( واکه ) هاى مربوط ، ( جر ) vokaldreieck

**خپلواکغږونج** xpal-wā́k-γaẓ-wā́nǰ : ديگرگونى ويلى در جمله . ( ان ) hiatus

**خپلواکمنځى** xpal-wāk-mánj-ay : مغه ژبنى توك چې واول يې په منځ کې وي ، ( پا ) عنصر زبانى كه واول در بين آن قرار داشته باشد ، ( عر ) مجوف .

**خپلواكمنى** xpal-wāk-man-í : خانواکي ، خانواکمني ، ( پا ) خود مختارى ، خود اراديت .

**خپلواكه غونډله** xpal-wā́ka-γóndla : خپلواكه ( مستقله ) جمله ، ( پا ) جملهٔ مستقل ، ( ان ) independent clause

**خپلواکي** xpal-wāk-í : ازادي ، ( پا ) خود اراديت ، خود

مختاری ، آزادی ، ( عر ) حریت ، استقلال ، ( ان ) independence

**خپلواکېدنګ** xpal-wāk-ed-áng : واول کېدنه ( حوړېدنه ) ، ( پا ) واکه شدن ، ( ان ) vocalization

**خپلواکيواله** xpal-wāk-i-wāla : ځانواکيواله ، ( پا ) خود مختاری ،

**خپلوان ډله** xpalwān-ḍála : جمعیت و ګروه خویشاوندان .

**( را ) خپلول** (rā-)xpal-aw-ál : ( یو څه ) په خپل واك کې راوړل ، غوره کول ؛ اړا پټول ، ( پا ) از خود ساختن ، از آن خود ساختن ، برګزیدن ، اختیار کردن ؛ اداپت کردن ( نرم سیاست را خپلول : سیاست نرمی را در پیش کردن ، اختیار کردن ) .

**خت و پرتوګ** xát-ô-partúg : کمیز ( کمیس ) و پرتوګ ، ( پا ) کت و شلوار ، پیراهن و پای جامه .

**ختون** xat-ún : لوړتیا ، ( پا ) برتري ، ( عر ) عروج ، معراج ، ارتقاء .

**ختی** xát-ay : بنیان ، ( پا ) زیر پیراهنی ، زیر پیراهن ، ( ان ) slip, vest, undershirt

**ختیځپوه** xatij-póh : ختیځپوهاند ، ختیځ پېژاند ، ( پا )

خاورشناس ، شرقشناس ، ( عر ) مستشرق ، ( ان ) orientalist

**ختیځپوهنه** xatij-pohana : ختیځ پېژندنه ، ( پا ) خاور شناسی ، شرقشناسی ، ( ان ) orientalistics

**ختیځواله** xatij-wāla : ختیځولي ، ( پا ) خاور گرایی ، شرقیت ، ( ان ) orientalism

**ختیز** xat-íz : د ختیځ ( مشرق ) اړوند ، ( پا ) مشرقی ، خاوری ، ( ان ) eastern

**خټموښی** xaṭ-moṣ-ay : د خټگرۍ ( گلکارۍ ) یو سامان ، ( پا ) گل ماله ، دست پناه .

**خټمېل** xaṭmel : ( پا ) بشپړ ، ختم شوی ، ( پا ) آنجام شده ، تمام شده .

**خټنیو** xaṭ-níw : خټنیوی ، ( پا ) گلگیر .

خټوبی xaṭ-ob-ay : خړوبی ، ( پا ) آب گل آلود ، خت آب ، گلابه .

**خټین** xaṭ-in : خاورین ، ( پا ) گلی ، خاکی .

**خج** xaǰ : فشار ، زور ، ( پا ) فشار ، تکیه ، زور ، ( ان ) stress, accent

**خجپوهنه** xaǰ-pohána : خجپوهه ، ( پا ) فشار شناسی ( زبان ) ، ( ان ) accentology

**خجڅېړنه** xaǰ-ceṛ-a-na : د خج څېړنه ( تحقیق ) ،

( پا ) پژوهش فشار ، تحقیق در فشار شناسی ، ( ان ) reccarch of accent

**خجن** xaǰ-án : خجیز ، فشار لرونکی ( ژبنی توك ) ، ( پا ) دارای فشار ، تکیه دار،و اکبر ، ( ان ) stressed

**خجنتیا** xaǰ-an-tyá : خجنوالی ، ( پا ) فشار داشتن ، واکبری ، ( ان ) accentuation

**خجنښه** xaǰ-náṣa : د خج ( فشار ) نښه ، ( پا ) علامت فشار ( زبان ) ، ( ان ) acute accent

**خجونج** xaǰ-wánǰ : ( د ) خج بدلون ، ( پا ) تغییر فشار ،

**خجیز** xaǰ-íz : خجن ، خجي ، د خج ( فشار ) اړوند ) ( پا ) فشاری ، مربوط فشار ( تکیه ) ، ( ان ) tonic

**خدای ببښلی** xwday-baṣál-ay : خدابخښلی ، ارواښاد ، ( پا ) شاد روان ، خدا آمرز ، ( عر ) مرحوم ، مغفور ، متوفی ، ( ان ) the late, the deceased

**خدایګوټی** xwday-goṭay : دېوتا ، ( پا ) دارگونه ، الهه ( عر ) رب النوع ، الهه ، ( ان ) divinity, god of species

**خدايي خدمتګار** xwday-í-xedmat-gár : دیوه سیاسي غورځنګ ( تحریك ) نوم ، ( پا ) نام جنبش سیاسی در نیم قارهٔ هند و بعد در پاکستان ،

**خدمتګار** xedmat-gár : خذمتګار ، ( پا ) خدمتګار ،

( عر ) خادم .

**خړپړتيا** xaṛ-paṛ-tyā́ : ( داړيکو ) ويجاړتيا ، ( پا ) تېره گی ( روابط ) .

**خرپ و ترپ جنگ** xráp-o-tráp-ǰang : ( پۀ ) جنگ حمله و گريز .

**خزان ځپلی** xazán-zapál-ay : خزانوهلی ، خزانزموللی ، ( پا ) خزانزده ، خزان شده ، ( ار ) خزان گزيده .

**خزانزمولی** xazan-zmol-álay : خزانزمولی ، خزانزمول ، خزان ځپلی ، ( پا ) خزانزده ، خزان شده .

**خزدکپوه** xazdak-póh : خزدك پوهاند ، خزدك پېژاند ، ( پا ) حشره شناس ، ( ان ) entomologist

**حزدکپوهنه** xazdak-pohána : د خزدکو ( حشرو ) علم ، ( پا ) حشره شناسی ( ان ) entomology

**خسمانگر** xasmā́n-gár : خسمانوال ، پټهی ايښوونکی ، خواخوږی ، ( پا ) پرستار ، تيمار دار .

**خلباندې** xal-bā́nde : باوري ، يقيني ، ( پا ) اعتمادی ، يقينی .

**خلی** xálay : ړکی ؛ منځغړی ( عايق ) ، د برېښنا عايق ، ( پا ) چوبك ، عايق برق .

**خمتينه** xam-tina : سطرنجۍ، درۍ، ( پا ) شطرنجی .

**خنداوړ** xandā-wáṛ : خندنی ، د خنداوړ ، د خندې وړ ، ( پا ) خنده آور ، ( ار ) مضحکه خیز ، ( عر ) مضحك .

**خندنی** xand-anáy : خنداوړ ، د ټولو د خندا ( کېدل ) ، ( پا ) مورد خنده و استهزاء .

**خندور** xand-a-wár : خنداور ، خندوونکی ، ( پا ) خنده اور ، خنده دار ، ( ان ) laughable, funny

**خندي** xand-í : ( پا ) مسخره گي ، ( عر ) مضحکه ، تمسخر ، استهزاء .

**خواخوږي څرګندونه** xwā-xuẓ-i-cargand-aw-ána : د غمرازۍ ځرګندونه ، زړه خوږی ښوونه ، ( پا ) ابراز همدردی .

**خوار برخی** xwār-bárx-ay : برخه خواری ، خوار قسمت ، کم بخت ، بدمرغی ، بد مرغه ، بد قسمته ، ( پا ) بد قسمت ، بد بخت ، کمبخت ، کم طالع .

**خوار ځواکی** xwār-jwā́k-ay : بېځواکه ، کم ځواکه ، کمزوری ، ( پا ) کم طاقت ، کم توان ، بی قوت ، بی نیرو ، ناتوان ، ( عر ) ضعیف ، نحیف .

**خوار ځواکي** xwār-jwak-í : بېځواکي ، کمزوري ،

کمځواکي ، ( پا ) بی نیرو یی ، کم طاقتی ، ناتوانی .

**خواريکښ** xwari-kás : زيار کښ ، زيار ايستونکی ( پا ) زحمتکش ، محنت کش .

**خوالګر** xwal-gár : خوالو ، خواله ساتی ، ( پا ) همراز راز دار .

**خواله ساتی** xwala-sắt-ay : راز ساتونکی،خوالی ، خوالګر ، ( پا ) راز دار ، محرم راز .

**خوب خندا** xób-xandắ : ارامي ، هوسايي ، ( پا ) خواب و خنده ، کنایه از آرامش و آسوده گی .

**خوبخونه** xob-xúna : ( د ) خوب کوټه ، ( پا ) اتاق خواب ، ( ان ) bedroom

**خوب راوړونکی** xob-ra-wṛ-ùnkay : خوبور ، هغه څيز ( درمل ) چې سړي ته خوب راولي ، ( پا ) خواب آور ، ( ان ) somniferous, hypnotic, narcotic

**خوبژلی** xob-žắl-ay : وېر خوب کوونکی ، خوبجن ، ( پا ) خواب آلود ، ( ان ) drowsy, sleepy

**خوب کالي** xob-kalí : د خوب کالي ، د خوب جامې،خوب نمري ، ( پا ) خواب جامه ، کالای خواب ، لباس خواب ، ( پا ) night gown, pyjamas

**خوب نمري** xob-nmári : خوب کالي، ( پا ) لباس خواب، خواب جامه، پیجامه.

**خوبور** xob-awár : خوب راوړونکی، ( پا ) خواب آور، ( ان ) somniferous, hypnotic, narcotic

**خوبوړی** xob-wáṛ-ay : پر خوب تللی، خوبولی، ویده شوی، ( پا ) خواب برده.

**خوبولی** xob-a-wál-ay : خوبېدلی، خوب ژلی، خوبن، خوبجن؛ ویده، ( پا ) خوابیده، خفته؛ خواب آلود.

**خوبیونی** xob-yún-ay : خوب چکری، چې په خوب کې چکر وهي یا گرځي،( پا ) کسیکه در خواب قدم مېزند، ( ان ) sleepwalker

**خوځند** xwáj-and : خوځنده، خوځیز، خوځېدونکی، ( پا ) حرکت کننده، پر تحرك، جنبده، ( عر ) متحرك، ( ان ) mobile, dynamic

**خوځند خج** xwáj-and-xaǰ : زور خج، ډاینمیك فشار، ( پا ) فشار دینامیك.

**خوځنده** xwaj-anda : خوزندکه، خزدکه، ( پا ) خزنده، ( عر ) حشره، ( ان ) insect,reptile, creeping

**خوځنده پوه** xwáj-anda-póh : خوځنده پوهاند، د

خوځنده وو پوهان، ( پا ) خزنده شناس ، ( ان )
herpetologist, erpetologist

**خوځنده پوهه** xwaj-anda-poha : خوځنده پوهنه ، ( پا ) خزنده شناسی ، ( ان ) herpetology, erpetology

**خوځنده ژبپوهنه** xwájand-žab-pohána : ډاینامیکه ژبپوهنه ، ( پا ) زبانشناسی دینامیك ، ( ان ) dynamic linguistics

**خوځندی** xwaj-and-áy : لنډ خپلواك ( واول ) ، واولي حرکت ، ( پا ) حرکت ( زیر ، زبر ، پیش ) .

**خوځون** xwaj-ún : خوځښت ، ( پا ) جهش ، جنبش ، ( عر ) تحرك ، ( ان ) dynamism

**خوراړه** xor-ā́ṛa : خوړونکې ، ( پا ) خوره ای ، خوره یی ، ( عر ) برص ، جذام ، ( ان ) leprosy

**خوراړي** xor-āṛ-í : زرنی ، ( پا ) جذامی ، مبتلا به جذام ، ( عر ) ابرص ، ( ان ) leprous

**خوراکتوکي** xwarák-tóki : خوراکي توکي ( مواد ) ، ( پا ) مواد خوراکه ، مواد غذايي ، ( ار ) غذائی مواد ، اشیاء خوردنی .

**خوراك څښاك** xwarā́k-csā́k : خوراك او څښاك ،

( پا ) خورد و نوش .

**خوراکخونه** xwarāk-xúna : ړوړی خونه ، د ړوړی کوټه ، ( پا ) اتاق نانخوری ، ( ان ) dining room

**خوراکونج** xwarāk-wánǰ : خوراك ,مېز ، خوراکدړه ، ( پا ) میز غذا خوری ، ( ان ) dining table

**خورما باغ** xormā-bāj : خورمابڼ ، کجوری، ( پا ) باغ خرما ، نخلستان .

**خورمن** xwar-man : لوهه ؛ مځه ، ( ار ) لوگه ، ( عر ) اشتهاء ، میل ، تمایل ، ( ان ) appetite

**خورمنځ** xormánj : لوښه ، خوی ، رغښت ، ( پا ) خوی ، سرشت ؛ خواهش ، ( عر ) مزاج ، طبعیت ؛ طلب

**خورمن دي ښه!** xwarmán-de-ṣa : لوهه ( اشتها ) دی ښه ، ښه خورمن درته غواړم! ( پا ) اشتهای خوب! ( ان ) good appetit

**خورمنونجی** xor-man-wánǰ-ay : بې تېکه ، بې تېکاوه ، ( پا ) بی ثبات ، متلون مزاج .

**خورنیوه** xor-níwa : خورینه ، خورینگه، ( پا ) خواهر خوانده .

**خوری** xoráy : ( د روغتون ) نرسه ، ( پا ) همشیره ؛ پرستار

زن ، ( ان ) sister, nurse

**خوړنځی** xwar̥-an-jáy : خواراکخونه ، د ډوډۍ خوړلو خونه ، ډوډۍ کوټه ، ( پا ) طعامخانه ، اتاق غذا .

**خوږاروا** xoẓ-arwā́ : خوښ اروا ، ورکمانی ، وریني ، غونبښی ، ورین تندی ، پراخ تندی ، ( پا ) خوش اروا ، خوش خلق .

**خوږ ژبی** xoẓ-žáb-ay : خوږ وراشی ، د خوږې وینا خاوند ، ( پا ) شیرین زبان ، شیرین کلام ، شیرین سخن .

**خوږ ژبي** xoẓ-žab-í : خوږوراشي ، ( پا ) شیرین زبانی ، شیرین کلامی .

**خوږ غاړی** xoẓ-ɣā́r̥-ay : خوږ غږی ، خوږ اوازی ، ( پا ) خوش آواز ، خوشخوان ، خوش الحان .

**خوږ غاړي** xoẓ-ɣār̥-í : خوږ اوازي ، خوږ غږي ، ( پا ) خوش آوازی ، خوش صدایي ، خوش الحانی .

**خوږنی** xwaẓ-a-náy : د خوږې ( گوړې ، بورې ، قند ... ) لوښی ، ( پا ) قند دانی ، ( ار ) چینی دانی .

**خوږ وبی** xwaẓ-ob-áy : خوږ ځښاك ، شربت ، ( پا ) نوشابه ، شربت .

**خوږه پلور** xwaẓa-plór : خوږه پلورنه ؛ د خوږې پلورځی ، ( پا ) شیرینی فروشی .

**خوږه پلوری** xwaẓa-plor-ay : خوږه والا ، خوږه ( شیریني ) خرڅوونکی ، ( پا ) شیرینی فروش .

**خوږه ساز** xwaẓa-sāz : خوږه ( شیریني ) جوړوونکی ، متهائی جوړوونکی ، ( پا ) شیرینی ساز ، شیرینی پز ، ( ار ) حلوائی ، ( عر ) قناد .

**خوږه سازي** xwaẓa-sāz-ī : خوږه ( شیریني ) جوړونه ، ( پا ) شیرینی سازی ، شیرینی پزی ، قنادی .

**خوږه نوسی** xwaẓa-nusay : د قند راخیستو نوسی ، ( پا ) قند گیر .

**خوشال** xošāl : د خوشحال کره او منلې پښتو بڼه ، ( پا ) خوش ، خوشحال .

**خوشال خان واټ** xošāl-xān-waṭ : د کابل له محمود خان پله تر څرخي پله نومولی واټ ( سړك ) ، ( پا ) خوشال خان واث «جادهٔ خوشحال خان»،یکی از خیابان های شهر کابل از پل محمود خان به صوب پل چرخی .

**خوشال فرهنگي خونه** Xošāl-Farhangi-Xuna : ( پا ) خانهٔ فرهنگی خوشحال ( در کابل ) .

**خوشال مېنه** xošāl-mena : خوشحال مېنه ، ( پا )

خوشحال مینه، یکی از نواحی دوازده گانهٔ شهر کابل که به خوشحال خان ختك نامگذاری شده است.

**خوشیا** xoš-yā́ : وزگاري؛ رخصتي، چوټي، ( پا ) رخصتی، تعطیل. ( خوشیاوې، خوشیا ورځې : ایام تعطیل ).

**خوښ اروا** xwaṣ-arwā́ : ورکمانی، غونېښی، ورینی، ورین تندی، ( پا ) خوشخوی، خوشخویی، ( عر ) بشاش.

**خوښچارانه** xwaṣ-čār-āná : په خپله خوښه، ( پا ) رضا کارانه، داوطلبانه، ( ان ) voluntarily **خوښچاری** xwas-čar-áy : رضاکار، خپلخوښی، ( پا ) رضا کار، داوطلب، ( ان ) volunteer

**خوښچاري** xwas-čār-í : خپلخوښي، ( پا ) رضا کاری، داوطلبی، ( ان ) voluntariness

**خوښ خوشال** xwás-xašā́l : خوږ اروا، ورکمانی، ( پا ) شاد و مسرور، خوش و خوشحال.

**خوښمن** xwaṣ-mán : خوښ؛ راضي، ( پا ) خوش، شاد، راضی.

**خوښمني** xwaṣ-man-í : خوښی، ښادمني؛ راضی توب، ( پا ) خوشنودی؛ رضایت.

**خوښنه** xua ṣ-ána : د مننې ( تشکر، شکریه ) په ځواب

کې ، ( پا ) ( ابراز ) خوشی ، خواهش میکنم ! ، در پاسخ تشکر یا متشکر . ( ان ) you are welcome

**خوښوړ** xwaṣ-wáṛ : د خوښې وړ ، د رضایت وړ ، ( پا ) قابل رضایت .

**خوگلن** xuglán : خوړلن ( ناکره ) ، ( پا ) گلخن ، خریج آتش .

**خولخونده** xwal-kwánda : مېوه ، ( پا ) میوه ، بر ، ( عر ) ثمر ، ثمره ( ج : خولخوندې ) ،

**خولمنډی** xwal-mánḍay : خولغودی ، هغه ( نارینه ) چې د ښځې یا هلك په خوله کې ځان انزالوي .

**خولشاهزی** xol-šāh-záy : د تاج و تخت پا توړی ( وارث ) ، ( پا ) وارث تاج و تخت ، شهزاده ولیعهد ، ( ان ) crown prince

**خولگنډلی** xul-ganḍál-ay : خوله تړلی ، خولپټی ، سوړ سمخ ، ( پا ) دهن بسته ، به کلی خاموش ، خپ و چپ .

**خولم پلم** xwalám-plam : خول ماخول ، په وینو لژند ، په وینو لت پت ( پېت ) ، ( پا ) بسیار خون آلود .

**خولوېش** xwal-wéš : د پاتوړو ( وارثانو ) تر منځ دغلې او نورو موسمي پېبرو ( حاصلاتو ) وېش ، ( پا ) تقسیم غله و

دیگر حاصلات موسمی در بین افراد و یا فامیلهای وارث .

**خولې تشه** xwle-tása : د خولې تشه ، شخول ، ( پا ) حفرهٔ دهان ، جوف دهن ، ( غږ پوهنه ) ، ( ان ) oral chamber, oral cavity

**خوندیینه** xwandi-yana : خوندیوالی ، ( پا ) ایمنی ، ( عر ) مصؤنیت ، صیانت ، ( ار ) تحفظ ، ( ان ) immunity. inviolability, security

**خیال پال** xyal-pál : انگیرپال ، انگیروال ، واند پال ، خیال پالونکی ، ( پا ) خیال پرست ، انگار گرا ، ( ان ) idialist

**خیالمن** xyal-máu : خیالولی ، نازولی ، ( پا ) ناز دیده ، نازنین ، ناز دار ، عشوه گر ؛ مغرور .

**خیالولی** xyál-aw-ál-ay : په خیال کې ، خیالمن ، خیالي ، مست ، نازولی ، ( پا ) ناز دار ، عشوه گر ، ( عر ) طناز ؛ مغرور .

**خیر خانه مېنه** xayr-xaná-mena : د کابل ښار له دولس گونو مېنو ( ناحیو ) څخه یوه مېنه ، ( پا ) خیر خانه مینه .

**خیر سوی** xir-saway : هغه کالي ( جامې ) چې خیری یې نورنه پاکېږي ، ( پا ) چرك سوخته .

**خير ښيګڼه** xáyr-ṣegáṇa : ښهانه، ښمرو ښهانه، ښه اوښګېڼه، ( پا ) خيرو خوبی، خيرو رفاهٔ، خيرو نيکويی، ( ان ) welfare

## (د)

**دادښت** dād-áṣt **:** داده کېدنه ، قایلېدنه ، ( عر ) اعتراف ، اقرار ، ( داده:متعرف ، مقر ) .

**دادمل** dād-mál : نیاومل ، ( پا ) باعدل ، دادگر ، عدل دوست ، ( عر ) عادل .

**دارالامان واټ** dar-ol-amā́n-waṭ : دارالامان واټ ، جادهٔ دارالامان ( کابل ) .

**دارو درمل** dārú-darmál : درملنه ( تداوي ) ، ( پا ) دارو ودرمان ، چاره و علاج ، بهداری ، بهداشت ، امور صحی ،

**داستاني** dāstān-í : کیسه يي ، کیسه ییز ، ( پا ) داستانی ، قصه یی .

**داستاني غونډ** dāstān-í-ɣwanḍ : کیسه ییز غونډ ، د افسانو مجموعه ، ( پا ) مجموعهٔ داستانی .

**د افغانستان بانك** da-afghanistā́n bānk : د افغانستان دولتي ( مرکزي ) بانك ( بینك ) ، ( پا ) د افغانستان

بانك ، بانك دولتی ( مرکزی ) افغانستان، ( ان ) "de Afghanistan Bank", The state(centeral) bank of Afghanistan

**دال خور** dāl-xor : پیتي ( پیاتي ) خور ، ( پا ) دال خوار .

**د امریکا ملګرې سیمې**

da-amrikā-malgáre-sime : د امریکا متحده ایالات ، ( ار ) ریاست هائے متحدۀ امریکا ، ( ان ) The United States of America (U S A)

**داوه ګر** dāwa-gár : دنګله يي ، دعواګر ، ( پا ) دعوا کن ، دعوایی ، اهل مدافعه ، مدعی ، ( ان ) litigious

**د بچي کښنې ماشین** da-bači-kṣ-áne-māšin : د بچي ایستنې ماشین ، ( پا ) ماشین چوچه کشی .

**د بري برم** da-barí-barám : د بري پرتم ، د سوبې ( فتحې ) غرور ، ( پا ) شکوه فتح .

**د بهر نيو چارو وزارت**

da-baharanáyo-čáro-wazārat : ( د ) د باندينيو چارو وزارت ، ( پا ) وزارت امور خارجه .

**د بهر نيو چارو وزير**

da-bahar-a-náy-o-čār-o-wazir : ( د ) دباندينيو چارو

وزير ، بهرنی وزير ، خارجه وزير ، ( پا ) وزير امور خارجه ، وزير خارجه .

**د بېلګې په توګه** da-belgé-pa-tóga : د بېلګې په ډول، د ساري په توګه، د ساري په ډول، ( پا ) به طور نمونه ، به طور مثال ، به گونهٔ مثال ، ( عر ) مثلا .

**دپښتو پانګې ملګري** da-paṣtó-pānge-malgári : ديوې خپرنی ټولنې نوم چې د پښتو سيندګيو دغه اوسنی لړ يې له ړومبنيو هڅو څخه ګڼل کېږي ( پا ) «دوستان ذخيرهٔ پشتو»، که سلسلهٔ موجودهٔ فرهنگهای جيبی از نخستين تلاشهای شان به شمار ميرود .

**د پورې ورونو تر شا** da-póre-warúno-tar-šā́ : د تړليو ورو تر شا ، د تړلو دروازو تر شا ، ( پا ) پشت در های بسته .

**د پوهې او فرهنګ کور** da-póhe-aw-farháng-kor : په کابل کې د پخواني شوروي فرهنګي مرکز ، ( پا ) خانهٔ علم و فرهنگ .

**د ... په اړه** da... pa-áṛa : ( ناکره ) د ... په اړوند ، ( پا ) به ارتباط ...

**د ... په اوږدو کې** da...pa-uẓdó-ke : د ... په

امتداد کې، د ... په موده کې، ( پا ) در درازای ...، به امتداد ( مکان و زمان )، ( د لارې ـ واټن ـ مهال ـ کال... په اوږدو کې ).

**د پایلې په توگه** da-pǎyle-pa-tóga : د پایلې ( نتیجې ) په ډول، په پایلیزه توگه، ( پا ) در نتیجه، به طور نتیجه، ( عر ) نتیجة، الحاصل.

**د ... په شتوالي کې** : da... pa-šta-wǎ́l-i-ke : د ... په استوالی ( موجودیت ) کې، ( پا ) در موجودیت ...

**د پېړیو په پوړیو کې** da-peṛayo-pa-pawṛayo-ke : د پېړیو په اوږدو کې، ( پا ) در درازای سده ها، در پله های قرون.

**د تورو میلو تر شا** da-toro-milo-tar-šǎ́ : له تور میلو اخوا، د تورو میلو ( سیخو ) د ننه، تر وسپنیزو میلو اخوا، ( پا ) پشت میله های سیاه، پشت میله های آهنین.

**د ... جوړښت** da... J̌oṛ-aṣt : ( پا ) ساخت ... ( ان ) made in ...

**د چاخبره** da-čǎ-xabára : په اصطلاح، تش په نامه، ( پا ) به اصطلاح.

**د څښتن په درښتن** da-caṣtán-pa-draṣtán : د

خدای په فضل، ( پا ) به فضل خداوند .

**د خوشال فرهنگي ټولنه** : da-Xoṡā́l-Farhangí-Ṭolána ( پا ) انجمن فرهنگي خوشحال ( خان ختك ).

**د دود له مخې** da-dód-la-máxe : له دودیز پلوه، د دود دستور له مخی، د رواج له مخې ( تر مخه )، ( پا ) طور عنعنی، طور معمولی، ( عر ) عنعنوی، معمولا .

**دراویدي** dravidí : یوه ژبنۍ کورنۍ چې د هند په منځنۍ او سویلي برخه کې څه د پاسه سل میلونه ( میلنه ) ویونکي لري )، ( ان ) Dravidian

**دربړیا** darabṛyā́ : خوار، خارځپلې، جلبل، جلیا، ( پا ) زار زبون، ذلیل .

**دردمل** dard-mál : درد مند، دردمن، خوا خوږی، ( پا ) با درد، همدرد .

**دردمن** dard-man : خوږمن، ( پا ) دردمند، با درد .

**درستوال** drasta-wā́l : درستیز، وسله وال، وسله بند، یوه پوځي ( نظامی ) نومونه ( اصطلاح )، ( پا ) مسلح، اصطلاح نظامیی، یکی از عهده ها در آرتش .

**درستیز** drast-iz : درستوال، وسله وال، وسله بند، ( پا )

با سلاح ، مسلح ؛ یکی از عهده ها در آرتش .

**در غلاند** darɣl-ā́nd : درغلند ، درغلگر ، ( پا ) فریبکار ، جعلکار ، نهانکار ، ( عر ) شیاد ، متقلب ، منافق ، خیان .

**درغلکار** darɣal-kā́r : چلمار ، تګمار ، درغلي ، ( پا ) جعلکار ، فریبکار ، دغلباز .

**درغلندي** darɣal-and-í : درغلندي ، تګي ، تګماري ، تګي برګي ، چل ول ، ( پا ) فریبکاری ، جعلکاری ، ساختکاری ، ساختکاری ، شیادی ، ( عر ) غور ، منافقت ، خیانت ، جعل ، تقلب .

**درغلي** darɣal-ī́ : ناچل ، کوټه ، ( پا ) کاسد ، جعلي ، جعل شده ، تقلبي ، ساختگی ، ( ان ) counterfeit, forged

**درملبوټی** darmal-buṭ-ay : طبي بوټی ، ( پا ) بته یا نبات طبی .

**درملپوهاند** darmal-pohā́nd : درملپوهان ، درملپوه ، ( پا ) دارو شناس ( ان ) pharmacologist

**درملپوهنه** darmal-pohana : دوا پوهنه ، ( پا ) دارو شناسی ت ( عر ) علم الدوام ، علم الا دویه ، ( ان ) pharmacology

**درملتون** darmal-tún : ( وو ) درملځی ، ( پا ) دوا فروشی ، دوا خانه ، ( ان ) فارمسی ، میډیکوز ، میډیکل هال .

**درملځی** darmal-jay : لوی درملتون، د درملو ډیپو ( پا ) دیپوی دوا، دواخانهٔ بزرگ، ( ان ) drug store

**درملساز** darmal-sáz : درمل جوړوونکی، ( پا ) دارو ساز، ( ان ) pharmacist, druggist

**درملسازي** darmal-saz-í : درمل جوړونه، ( پا ) دارو سازی، ( ان ) pharmacy, pharmaceutics

**درملگر** darmal-gar : درملي، ( پا ) درمانگر، پزشك ( عر ) طبیب، معالج، ( ان ) physician

**درملگري** darmal-gar-í : درملیتوب، ( پا ) پزشکی، ( عر ) طبابت، ( ان ) medical profession, medical practice

**درملنپوه** darmalan-poh : درملنپوهان، ( پا ) درمانشناس، ( ان ) therapeutist

**درملن** darmal-an : تراپي، تریپي، ( پا ) درمان، ( ان ) therapy

**درملنپوهه** darmal-an-poha : دتراپۍ پوهنه، درمانشناسی، ( ان ) therapeutics

**درملنه** darmal-ana : درملونه، درملونگ، ( پا ) تداوی، درمان، چاره، ( عر ) علاج، معالجه، مداوا، ( ان ) healing,

treatmeut

**درملوړ** darmal-wáṛ : درملېدونکی ، د علاج وړ ، ( پا ) قابلِ علاج و تداوی ، علاج پزیر .

**درملي** darmal-ī́ : درملګر ، ( پا ) درمانګر ، پزشك ، ( عر ) طبیب ، معالج ، حکیم ، ( ان ) physician

**درمنسوز** darman-sóz : درمن ( درمند ) سوزوونکی ، ( پا ) خرمنسوز .

**درناو** dran-ā́w : درناوی ، درنښت ، ( پا ) بزرګداشت ، ګرامیداشت ، ارجګزاری ، قدر دانی ، ( پا ) احترام ، اکرام ، اعزاز ، تکریم ، تقدیر .

**درناو نوم** dranāw-núm : ددرناوي ( اعزاز ) نوم ، ستاینوم ، ( پا ) نام اعزازی ، لقب اعزازی .

**درناو وړ** dran-āw-wáṛ : د درناو ( ـ ي ) وړ ، نمنځنوړ ، نمنځوړ ، ( پا ) قابل احترام ، قابل ګرامیداشت .

**درناوی** dran-āwáy : درناو ، درنښت ، درناوي ( ناکره ) ، ( پا ) بزرګداشت ، ارجګزاری ، قدر دانی ، ګرامیداشت ، ( عر ) احترام ، اعزاز ، اکرام .

**درنګچاری** drang-cǎr-ay : کانکن ، ( پا ) معدنچی ، کارګر معدن .

**درنګه خور** dranga-xor : مړزګه خور ، ( پا ) لاشخوار .

**درنګه پرانیست** dranga-pranist : درنګه سپړنه ، مړی سپړنه ، ( پا ) کالبد ګشایی ، ( ان ) autopsy

**دروږ ( ی )** darwaz(-ay) : بلهار ، بلهاري ، واري ؛ ګروهن ، ( پا ) عقیدتمند ؛ حیوان نزری بانشانی ګوش بریده ګی ، قربان ، فدا .

**دروږ ځاروی** darwaz-carway : د قربانۍ ځاروی ، ( پا ) حیوان قربانی ، حیوان برای قربانی .

**دروږول** darwaz-a-wal : بلهارول ، قربانول ، ځارول ، ( پا ) قربان ـ قربانی کردن ، فدا ساختن .

**دروغ بادونه** droɣ-bad-aw-ana : دروغ په ښاخیو بادول ، ډېر دروغ ویله ، ( پا ) دروغبافی ، دروغ پراګنی .

**دروغونه** droɣ-aw-ana : دروغول ، دروغ کول ، ( پا ) تکذیب کردن ، رد کردن ، ( ان ) dinial, refutation

**دروګر** drog-ar : غمخور ، خوا خوږی ، زړه سواند ، اهتمام کوونکی ، ( پا ) غمخوار ، اهتمام کننده ، ( عر ) مهتمم ( لکه د چاپ ) .

**درونخوبی** drun-xob-ay : مړخوبه ، ( پا ) سنګین خواب ، ګران خواب .

**درونخوبي** drun-xob-í : مړخوبي، ( پا ) سنګين خوابی ، ګران خوابی .

**درونکښ** drun-kaṣ : ( پا ) جراثقال ، ( عر ) جرثقيل ، ( ان ) crane

**دروهګر** droh-gár : مارغيتل ، دوکه مار ، دروهجن ، غولوونکی ، ( پا ) فرېبکار ، فرېبګر ، اغواګر .

**دروېزګر** darwez-gár : دروبزه ګر ، بسپنغاړی ، سوالګر ، ( پا ) ګدا ، ( ار ) فقير .

**درې اړخيز** dre-aṛx-íz : درې لوريز ، ( پا ) سه پهلو ، سه جانبه ، سه طرفه ، ( ان ) trilinear, trilateral

**درېبل** dre-bál : درې پښيزه ، ( پا ) سه پايه ، ( ان ) tripod, trivet, stool

**درې توري** dre-tór-i : د درېغږ ښکارندويه توري ( ژبپوهنه ) ، ( پا ) تريګراف ، ترکيب سه حرف واولی که نمايانګر صدای واول واحدی ميباشد ، ( ان ) trigraph

**دريځ** dar-íz : ( پا ) منبر ، خط مشی ، ( عر ) موقع ، منبر ؛ موقعيت ، موضع ، مشئی ، ( ان ) پوزېشن ، پاليسی .

**درې څپيز** dre-cap-íz : درې سېلابه ، ( پا ) سه هجائی ، ( ان ) trisyllabic

**درېڅرخه** dre-carx-á : درې څرخې یا درې ارابه يي ( سایکل )، ( پا ) سو چرخه ، ( ان ) tricycle

**درېڅنډ** dre-canḍ : درېڅنډی، ( پا ) سه گوشه ( عر ) مثلث، ( ار ) تکون، ( ان ) traingle

**درې ژبی** dre-žab-ay : درې ژبیز ، ( پا ) سه زبانی، ( ان ) trilingual

**درېش!** dreš : درېږه، یوه پوځي بولی ( کومانده ) د درېدو لپاره، ( پا ) ایست ! قومانده ای برای ایستادن، ( ان ) stop. halt

**درېغږ** dre-ǰáẓ : له دروخپلواکو ( واولونو ) څخه جوړ شوی غږ، ( پا ) آوای مرکب از سه ویل ( آوا شناسی )، ( ان ) triphthong, proper triphthong

**درې کسیز** dre-kas-íz : ( پا ) سه نفری، سه گانه،

**درېگړی** dre-gaṛay : د ډېرگړي ( جمع ) او دوه گړی ( تثنيې ) ترمنځ گڼه ( نمبر )، ( پا ) عدد گرامری بین جمع و تثنیه ( در برخی از زبانها )، ( ان ) trial (the gram. number)

**درېگوټ** dre-gwaṭ : درې گوټه، ( پا ) سه گوشه، ( عر ) زاویه، ( ان ) angle

**دريم بريد من** drém-brid-man : ( پا ) ستوان سوم .

**دريم وګړی** drém-wagáṛay : دريم شخص ، غايب ( صرف ) ، ( پا ) شخص سوم ، غايب ( ګرامر ) ، ( ان ) third person

**درېمه** dré-ma : دريم ، دويم ، ګل ، ( پا ) دوشنبه ، ( ار ) پير .

**درې مياشتينی** dre-myāšt-in-áy : درې مياشتيزه ( مجله ) ، ( پا ) مجله سه ماهه ، ( ان ) quarterly

**دريمي خج** drem-í-xaǰ : د ځواك ( قوت ) له مخې دريم درجه خج ( فشار ) ، ( پا ) فشار سومين ، ( ان ) tertiary stress

**درېيزه** dre-yíza : درې بيتيزه ( شعر ) ، ( پا ) سه بيتی ، ( عر ) مثلث .

**د زړه له کومي** da-zṛá-la-kúmi : په واز کومي ، د زړه له تله ، په ټولو مينه ، په پوره مينه ، ( پا ) از ته دل ، از صدق دل ، از صميم قلب ، ( عر ) قلبًا ، ( ان ) from the bottome of heart, heartily, sincerrly

**د ساري په توګه** da-sā̆ri-pa-tóga : د ساري ( مثال ) په ډول ، د بېلګې په توګه ، د بېلګې په ډول ، ( پا ) به

گونهٔ مثال، به طور مثال، ( عر ) مثلا .

**دستوني تشه** da-stúni-táša : د کومي تشه ( وتوځی )، ( پا ) حفرهٔ حلق یا حلقوم ( مخرج ).

**د شپې گرځېدنې بنديز** da-špe-garj-ed-áne bandíz : ( پا ) قيود شبگردی .

**د شپې نوم** da-špé-num : ( پا ) نام شب .

**د شومه دم انگازې** da-šuma-dám-angāzé : د رېډيو افغانستان يو ادبي پروگرام، ( پا ) زمزمه های شب هنگام .

**د ښمنانه** daṣman-āná : غليمانه، په دښمنۍ سره ؛ ( پا ) دشمنانه، بدخواهانه، خصمانه .

**دښمن ماتی** das-man-mất-ay : دښمن ماتوونکی، ( پا ) دشمن شکن .

**د علامه سيد جمال الدين افغان فرهنگي ټولنه** da- Allamá-Said Jamaluddin Afγắn Farhangí-Ṭolána : ( پا ) انجمن فرهنگی علامه سيد جمال الدين افغان .

**دفاع وزارت** dafắ- wazārát : د جنگ وزارت ( پا ) وزارت دفاع، (إن) ministry of defence

**دفاع وزير** defắ-wazir : د ملي دفاع وزير، د جنگ

وزیر ، ( پا ) وزیر دفاع ( ملی ) ، وزیر حربیه .

**د کرنې پراختیا بانك**

: da-karan-í-prăx-tyȧ-bå̃nk ( پا ) بانك توسعوی زراعتی . ( ان ) a bank for agricutural development in Afghanistan

**دك و دليل** dȧk-o-dalíl : علت او دليل ، توسن او لاسوند ، ( پا ) علت و دليل .

**د كورنيو چارو وزارت**

: da-koranáyo-c̆å̄ro-wazărát د داخله چارو وزارت ، د دننيو چارو وزارت ، ( پا ) وزارت امور داخله ، وزارت كشور .

**د كورنيو چارو وزير**

: da-kor-an-ȧy-o-c̆å̄ro-wazîr د دننيو چارو وزير ، د داخله چارو وزير ، داخله وزير ، ( پا ) وزير امور داخله ، وزير داخله .

**دگوتو په شمېر** da-gwato-pa-s̆mer : د لاس گوتو په شمېر ، د يوه لاس گوتو په شمېر ، يو څو ، لږ شمېر ، ( پا ) به شمار انگشتان ، به شمار انگشتان يك دست ، يك چند ، شمار اندك .

**دلته او هلته** dȧlta-aw-hȧlta : هلې او دلې ، ( پا )

اینجا و آنجا .

**دلگی** dalgáy : ډلگی ( ۱ )، ( پا ) دلگی ، گروه ده نفری در ارتش افغانی .

**دلگی مشر** dalgay-mašər : دلس کسیزې ډلې ( دلگي ) مشر ، ( پا ) سر گروه گروه ده نفری در ارتش افغان .

**د لوښې له مخې** da-lose-la-maxe : له لوښېز پلوه ، ( پا ) از روی عادت ، مطابق عادت ، ( عر ) عادتاً ، عادة ، ( ان ) usual, habitually

**د ... له کبله** da...la-kabala : د ... له لامله ، د ... په سبب ، ( پا ) به سبب ... ، به مناسبت ...

**د لېږد چارو وزارت** da-lez-čāro-wazārat : د ترانسپورتي چارو وزارت ، د ترانسپورټ وزارت ، ( پا ) وزارت امور ترانسپورتی ، ministry of transportation

**دماغي ځواک** demāγ-i-jwāk : دماغي قوه ، فکري ځواك ، ( پا ) نیروی دماغی ، قوهٔ دماغی ، نیروی فکری ، ( ار ) دماغی صلاحیت ، ذهنی صلاحیت ، فکری صلاحیت ، ( ان ) mental faculties

**دمخه ښې کتنه** da-max-se-katana : د خدای پامانۍ کتنه ، ( پا ) ملاقات تودیعی ، ( ار ) الوداعی ملاقات

**د ملگرو ملتو سازمان** da-malgár-o-melat-ó-sazmán : د ملگرو ملتو مؤسسه ( م م م . ) ، ( پا ) سازمان ملل متحد ، ( ار ) اقوام متحده ، ( ان ) The United Nations (UN)

**دمه لوی** dama-láway : هوسا ، تازه دم ، ( پا ) تازه دم ، تازه نفس ، دم راست ( دمه لوی لښکر ، څواك . . . ) .

**د میاشتې په لومړیو کې** da-myāste-pa-lumṛ-áyo-ke : د میاشتې په لومړیو ( ړومبیو ) ورځو کې ، ( پا ) در اوایل ماه .

**د میاشتې په ورستیو کې** da-myāste-pa-wrustáyo-ke : د میاشتې په وروستیو ( شپو ) ورځو کې ( پا ) در اواخر ماه .

**د مېرمنو ټولنه** da-mermáno-ṭolána : مېرمنو ټولنه ، ( پا ) د مېرمنو تولنه ، مؤسسهٔ نسوان ، ( ار ) تنظیم نسوان ، ( ان ) a women association in Afghaniston

**د میوې سمون شرکت** da-mewé sam-ún-šerkát : په کابل کې د میوه پاکۍ دیوه شرکت ( کمپنۍ ) نوم .

**دنده یي** danda-í : دندیز ، ورهنیز ، ( پا ) کسبی ،

اکتسابی، مسلکی، حرفه یی، ( ار ) پیشه ورانه، ( ان ) professional

د نرم تالوییزوالي کړنلار da-naram-tālu-izwāli-kṛan-lār : د نرم تالوییزوالي میکانېزم، ( پا ) میکانیزم نرمکامی شدن، ( ان ) velaric mechanism

**دنگله یي** dangala-yí : لانجه یي ( سړی یا مساله )، ( پا ) دعوی جلب، لانجه یی.

**د ننني** da-nan-nay : ( پا ) درونی، داخلی، باطنی، ( ار ) اندرونی.

**دننوال** danan-wāl : د ننپال، ( پا ) درونگرا.

**د ننواله** danan-wala : دننپال، ( پا ) درونگرایی، ( ان ) introvertism

**دنه تېري تړون** da-na-teri-taṛ-ún : دتېري دنه کولو تړون، دنه برید یا نه وولې تړون، ( پا ) قرار داد عدم تجاوز یا عدم حمله.

دواړخيز، دوه خوا ییز، ( پا ) دو طرفه، دو جانبه، ( ان ) bilateral

**دواله** dwāla : دوه واله، دو واله، ( ان ) dualism

**دوبنی** dob-a-nay : اوړنی، د دوبي ( اوړي ) اړوند، ( پا )

تابستانی .

**دو پوړه** du-poṛ-a : دوه پوړه ، دو پوړيز ، دوه پوړيز ، دوه چته ، ( پا ) دو طبقه یی ، دو منزله ، دو قشری .

**دوتر توکي** dawtar-tóki : ليك توكي ، ليك اوزار ، دوتري ( دفتري ) اړتياوې ، ( پا ) قرطاسيه ( فروشی ) ، مواد و سامان دفتر ، نوشت افزار ، ( عر ) لوازم التحرير ، ( ان ) stationery

**دوتر واكي** dawtar-wak-í : دوترواله ، ميرزايي ، ميرزا بيواله ، ( پا ) ديوانسالاری ، ميرزايی ، ( ان ) bureaucracy

**دوتروالي او چاروالي**

dawtar-wal-í-aw-čar-wal-í : ( پا ) دفتر داری و اداره ، ( ان ) administration and management

**دوتنيار** dawtan-yấr : دوتنه ( پشتي ) جوړوونكی ، ( پا ) جلد ساز ، صحاف .

**دوتنيز** dawtan-íz : د دوتنې ( پشتۍ ) اړوند ، ( پا ) منسوب به پشتی ( كتاب ) ، پشتی شده ، ( عر ) مجلد .

**دو څرخه** du-carxá : لاړيس ، يوه كی ، يكی ، سايكل ، ( پا ) دو چرخه ، بايسكل ، ( ان ) bicycle

**دود** dod : چوچ ، بگر ، جال ، ( عر ) رواج ، دستور ، عنعنه ؛

قاعده ، ( ان ) tradition' regular

**دودتیا** dòd-tyắ : رواجوالی ، دود والی ، ( پا ) مروج بودن ، ( عر ) ترویج ، تداول ، ( ان ) promotion

**دود وال** dod-wắl : دود پال ، ( پا ) عنعنه پرست ، عنعنه گرا ، ( ار ) رواج پرست ، ( ان ) traditionalist

**دود واله** dod-wắl-a : دود پالنه ، ( پا ) عنعنه پسندی ، عنعنه گرایی ، ( ار ) رواج پرستی ، ( ان ) traditionalism

**دود و دوی** dód-o-dóy : دود او قانون ، ( پا ) عرف و قانون ؛ قاعده و قانون ، ( ار ) رواج و قانون .

**دود وزمه** dud-wazma : دلوگي غوندې ، ( پا ) دود آسا .

**دودیال** dod-yắl : دودیالی ، درونخویه ، فرهنگیال ، ( پا ) با کلتور ، با تهذیب ، با فرهنگ ، خوش اخلاق ، ( عر ) مهذب ، متمدن ، مدنی ، خلیق .

**دودیالیتوب** dod-yal-i-tób : دودیالي ، فرهنگیالیتوب ، ( پا ) باکلتوری ، با تهذیبی ، با فرهنگی بودن .

**دودیز** dod-íz : دود ( شوی ) ، ( پا ) رواج یافته ، عنعنی ، سنتی ، ( ار ) روایتی ، رواجی ، مسنونه ، مروج ، عنعنوی ، متداول ، ( ان ) traditional

**دورانساز** dawran-sắz : دوران جوړوونکی ، ( پا )

دورانساز ، ( ار ) تاریخ ساز .

**دورځې نوم** da-wrāje-num : ( پا ) نام روز .

**دوستانه** dost-ana : د دوستۍ په توګه ، ( پا ) دوستانه ،

( دوستانه اړیکي : روابط یا تعلقات دوستانه ) .

**دوستانه اړیکي ټینګول**

dostāná-aṛikí-ṭing-aw-ál : ( پا ) مناسبات ( روابط )

دوستانه را بر قرار ساختن .

**دولاري** do-lār-í : دولاریزه ، دوه لاریځه ، ( پا ) دوراهی .

**دوه اړخیز** dwa-aṛx-íz : دوه لوریز ، ( پا ) دو جانبه ،

( ان ) bilateral

**دوه اړخیز بډوالی** dwa-arx-íz-baḍ-wāl-ay :

دوه اړخیز تقابل ، ( پا ) تقابل دو جانبه ، ( ان ) bilateral opposition

**دوه افغانیز** dwa-afānīz : دوه افغانګي ، ( پا ) دو

افغانیګی ( پول فلزی افغانی ) .

**دوه زړي** dwa-záṛ-i : دوه زړیتوب ، ټکنیتوب ، زړغی

توب ، زړغه ، ( پا ) دودلي ، ( عر ) تردد ، تذبذب .

**دوه ژبیزوالی** dwa-žab-iz-wāl-ay : دوه ژبیوالی ،

( پا ) دو زبانی ، ( ان ) bilingnalism, bilinguality

**دوه ساه ژوند** dwa-sāh-žwand : ( پا ) زنده کی دو نفسه یا دو دمی .

**دوه کسیز** dwa-kas-íz : غبرگونی ، ( پا ) دو نفری ، دو گانه .

**دوه گرایه** dwa-graya : دوه هومره ، دوه برابره ، غبرگ ، ( پا ) دو چند ، دو برابر ، ( ان ) double

**دوه کوره** dwa-kora : ددوو کورو لرونکی ؛ ددوه برخې شوي کورخښتن ، ( پا ) دارای دو خانه ؛ صاحب خانهٔ دو قسمت شده .

**دوه گړی** dwa-garay : ( پا ) دوتایی ، ( عر تثنیه ، ( ان ) dual

**دوه گونی** dwa-gun-ay : دوه گون ، دوه گیز ، ( پا ) دویی ( بانکنوت افغانی ) .

**دوه لوریز** dwa-lor-íz : دوه خواییز ، دوه اړخه ( پا ) دو طرفه ، دو جانبه ،

**دوه مانیز** dwa-man-íz : هغه ویی ( کلمه ) چې دوې ماناوې لري ، ( پا ) دو معنایی ، ( عر ) ذوالمعنین .

**دوه میاشتینی** dwa-myašt-in-ay : دوې میاشتنۍ دوه میاشتیزه ( مجله ) ، ( پا ) ( مجلهٔ ) دو ماهنامه ( ان

bi-monthly

**دوی پوه** doy-poh : قانونپوه، حقوق پوه، ( پا ) قانوندان ، حقوق دان ، ( ان ) lawyer, jurist

**دوی پوهنه** doy-pohana : حقوقپوهنه ، قانونپوهنه ، ( پا ) حقوقشناسی ، قانونشناسی ، ( ان ) law, jura, rights

**دوی ساز** doy-sā́z : قانون جوړوونکی ، ( پا ) قانونساز ، قانونگزار ، ( عر ) مقنن ، ( ان ) lawmaker, legislator,lawgiver

**دوی ساز ځواك** doy-sā́z-jwák : قانونساز ځواك ، ( پا ) قوهٔ قانونگزار ، قوه یا نیروی مقننه .

**دوی غونډ** doy-γónḍ : دویلیك ، د قوانینو ټول ( مجموعه ) ، قانوننامه ، ( پا ) قانوننامه ، کتاب قوانین ، ( ان ) code,collection of laws

**دویم بریدمن** dwa-yám-brid-mán : دوهم بریدمن ( ناکره ) ، ( پا ) ستوان دوم .

دویم وګړی dwa-yám-wagáṛay : ( پا ) شخص دوم ، مخاطب ( گرامر ) .

**دویمه** dwa-yám-a : دوه ، یو ، ( پا ) یکشنبه ، ( ار ) اتوار .

**دویمي** dwa-yam-í : دویمنی ، ( پا ) دومی ، ( عر ) ثانی ،

ثانوی .

**دويمي خج** dwa-yam-í-xaǰ : دويم خج ( د لومړي قوی خج په وړاندې ، ( پا ) فشار دومی ، دومين فشار ، ( ان ) secondary stress

**دويمي زېږ** dwa-yam-í-zez : ( د غږونو ) دويم زېږ ( توليد ) ، ( پا ) توليد دومين ، ( ان ) secondary articulation

**دوينې ترورستي څاڅکي** da-wíne-tar-wrustí-cắcki : تر وروستي څاڅکي دوينې ، ( پا ) تا آخرين قطرهٔ خون .

**دوييز** doy-íz : قانوني ، له قانون سره سم ، ( پا ) قانونی ، مطابق قانون ، ( ان ) regular, legal,licit

**دوييزوالی** doy-iz-wắl-ay : دوييز واله ، قانوني والی ، ( پا ) قانونيت ، ( ان ) legitimacy, legality

**دوييزه** do-yíza : دو بيتي ؛ مثنوي ( شعر ) ، ( پا ) دو بيتی ؛ مثنوی .

**دې** de : دال ( د ) ، د دال ( د ) توری فونيميکي نوم ، ( پا ) نام پشتوی دال ( د ) .

**دينپال** din-pắl : ديندوست ، ديانت پال ، ( پا ) دين پرور ،

دیانت پرور ، دیندوست ، دیندار ، ( عر ) متدین .

**دینپالنه** din-pal-ána : دیندوستي ، دیانت پالنه ، ( پا ) دیانت داری ، دینداری ، دیندوستی ، دینپروری .

**دین پوهنه** din-pohána : دینپوهه ، دیني علم ، ( پا ) مذهب شناسی ، علم دین ، ( عر ) علم الادیان ، علم الدین ، الهیات ، دینیات ، ( ان ) theology

**دیندوست** din-dost : دینپال ، دین پالونکی ( پا ) دین دوست ، دیندار .

**دینښوان** din-ṣw-ān : دین ښوونکی ، دیني لارښود ؛ مجتهد ، بې سیاله ، ( پا ) معلم یا آموزگار دین ، رهنمای دین ؛ مجتهد ، بی همتا ، بی رقیب .

**دیني ژبه** din-í-žaba : مذهبي ژبه ( لکه عربي ، لاتین ... ) ، ( پا ) زبان مذهبی ، ( ان ) liturgical language

**د ېو خویه** dew-xuya : د ېو لوښي ، برمانو ( وحشي ) ، ( پا ) دیو منش ، وحشی .

**د ېو وزمه** dew-wazma : د یو ېوله ، ( پا ) دیو مانند ، دیوش .

**ذهني** zehn-í : د ذهن اړوند ، ( ار ) موضوعی ، ( پا ) ذهنی ، ( ان ) subjective

**ذهن ازمېښت** zen-azmeşt : ذهن ازمايي، ذهني ازموينه، ذهن ازماينه، ( پا ) آزمايش ذهني، مسابقهٔ ذهنی، ( ار ) ذهنی آزمائش، ( ان) mind trial, mental try(competition)

**ذهنیوال** zehni-wāl : ذهنپال، ( پا ) ذهنی گرا، ( ار ) موضعيت پسندی، ( ان ) subjectivist

**ذهنیواله** zehn-i-wāla : ذهنپالنه، ( پا ) ذهنی گرایی، ( ار ) موضوعيت ( پرستی )، ( ان ) subjectivism

# ( د )

**ډاډمن** ḍāḍ-mán : ډاډه، خواتول، ( پا ) با اطمینان، ( عر ) مطمئین .

**ډاډمني** ḍāḍ-man-í : ډاډ، ( پا ) مطمئین بودن ( عر ) اطمینان، طمانیت .

**ډار اچونه** ḍār-a:aw-ána : وېره اچونه ( پا ) دهشت افگنی، دهشتگری، ( ار ) دهشتگردی .

**ډار اچوونکی** ḍār-acaw-únk-ay : ویره اچوونکی، بوږنوړی، ( پا ) دهشت افگن، دهشتگر، ( ار ) دهشتگرد .

**ډاګپاڼه** ḍāg-pā̃na : پوستې کارډ، ( پا ) پوست کارت، کارت پستال، ( ان ) postcard ، ( فر ) carte postale

**ډاګ ټیکټ** ḍāg-tikéṭ : د ډاګ ( پوستې ) ټیکټ، پوستي ټیکټ، ( پا ) تکت پستی، تمبر پست، ( ان ) post-stamp

**ډاګخونه** ḍāg-xúna : ډاګخانه، ( پا ) داګخانه، پسته

خانه ، پستخانه ، ( ان ) post-office

**ډاګي** ḍāg-í : داګ والا ، پوسته وړونکی ؛ پوستي ، ( پا ) پسته رسان ، پست رسان ، نامه بر ؛ پستی ، ( ان ) post-boy, postal

**ډاګيزول** ḍāg-izawál : ډاګيزه کول ، په ډاګه کول ، اعلانول ، ( پا ) علنی ساختن ، اعلان داشتن .

**ډالغاړی** ḍāl-ğấṛ-ay : جنګيالی ، ( پا ) سپر دار ؛ جنګجو .

**ډالی ټپالی** ḍalay-ṭapālay : سود و سوغات ، ( پا ) سود و سوغات ، تحفه و سوغات ، ( ان ) gift, souvenir

**ډانګ پېيلی** ḍang-peyal-ay : ډاګيزه ، په زغرده ، ( پا ) اشکارا ، بدون کم و کاست ، جرئتمندانه ، ( عر ) صريحا ، صراحتا .

**ډانګسر** ḍāng-sár : ډيناسر ، ډينا سور ، هغه غټ ژوی چې ٦٥ ميلون کاله د مخه د يوکاتاڼ پر ټاپو وزمه د يوه اسماني ټوټې له لوېدو سره له منځه تللی دی ، ( پا ) دينا سور ، ( ان ) dinosaur

**ډبر** ḍabár : ډبر وژنه ، ( پا ) سنګسار ، ( عر ) رجم ، ( مصدر : ډبرول ) .

**ډبر پوهاند** ḍabar-poh-ā́nd : ډبر پوه ، ( پا ) سنګ

شناس ، ( ان ) petrologist, lithologist

**ډبر پوهنه** ḍabar-pohana : ډبر پوهه ، د کاڼو علم ، ( پا ) سنگ شناسی ، ( ان ) petrology, lithology

**ډبر توږنه** ḍabar-toẓ-ana : کاڼي تکتوب ، ( پا ) سنگتراشی .

**ډبر توږی** ḍabar-toẓ-ay : کاڼی ټك ، ډبرتراشی ، ( پا ) سنگتراش .

**ډبر چاپ** ḍabar -čap : د ډبرې چاپ ، ( پا ) چاپ سنگی ، ( ان ) lithography

**ډبر چاپی** ḍabar-čap-ay : ډبر چاپ ، ( پا ) چاپ سنگی ، ( ان ) lithographic print

**ډبر سکاره** ḍabar-skara : سکور کاڼي ، د ډبرې یا ډبرو سکاره ، ( پا ) زغال سنگ ، ( ار ) کوله ، ( ان ) coal

**ډبر غولی** ḍabar-γolay : په ډبرو فرش شوی غولی ( کور ، سړك ) ، ( پا ) سنگ فرش ، ( ان ) cobblestone, stone-pavement

**ډبر لېږد** ḍabar-leẓd : ډبر چلندې ، د کاڼو چلونه ، ( پا ) سنگ کشی ، انتقال سنگ ،

**ډبر لېږند** ḍabar-leẓ-and : ډبر چلند ، د کاڼو

چلوونکی، ( پا ) سنگکش .

**ډبرليك** ḍabar-lík : ( پا ) سنگ نبشته، ( عر ) کتيبه، ( ان ) inscription

**ډبر مهال** ḍabar-mahā́l : ډبر پېر، ( پا ) دورهٔ سنگ، ( ان ) stone age

**ډبر وزمه** ḍabar-wázma : کاڼي وزمه، ( پا ) سنکواره، ( عر ) مستحاثه، ( ان ) fossil

**ډبر وژنه** ḍabar-wažána : ډبر ويشتنه، ( پا ) سنگسار، سنگباران، ( عر ) رجم، ( ان ) stoning, lajpidation

**ډبرين** ḍabar-ín : کاڼيز، گټيز، گټين، ( پا ) سنگی، سنگڼ، ( عر ) متجر، محجر .

**ډپ** ḍap : ځای پر ځای ولاړ، بندښت، ځنډ، ( پا ) بن بست .

**ډډون** ḍaḍ-ún : ( پولی ) پړسوب، ( پا ) تورم ( پولی )، ( عر ) تورم ( ان ) inflation

**ډکره** ḍakra : پاړکی، ( پا ) قطعه ( شعر ).

**ډکه** ḍaká : وټه، شنډی ( د اوبو دمخې گرځولو لپاره )؛ لنگر ځای، ( پا ) لنگر گاه .

**ډگر** ḍagár : ميدان، ( پا ) ميدان، رشته، ( عر ) عرصه،

ساحه ، ساحت ، ( ان ) area, field

**ډگر جنرال** dagar-ǰanral : لومړی فرقه مشر ، ( پا ) سپهبد ( ان ) lieutenant-general

**ډگر څېړنه** dagar-cerana : ساحوي څېړنه ، ( پا ) پژوهش ساحه یی ، ( ان ) field nesearch

**ډگر من** dagar-man : زرمشر ، غونډ مشر ، ( پا ) سر هنگ دوم ، ( ان ) lieutenant, colonel

**ډگروال** dagar-wāl : لوامشر ، کرنیل ، ( پا ) سرهنگ ، ( ان ) colonel ، ( جر ) oberst

**ډگروالي** dagar-wal-í : لوا مشري ، ( پا ) سرهنگی ، ( ان ) colonelship

**ډلبندي** dal-band-í : ( پا ) دسته بندی ، طبقه بندی ، ( ان ) classification

**ډلپال** dal-pāl : د یوې ځانګړی ( ټولنیزی ، سیاسی ... ) ډلې یاټولنې پالونکی او اړوند ، ( پا ) گروه پرست ، محفل پرست .

**ډلپالنه** dal-pal-ana : د یوې ځانګړې ډلې پالنه او اړوندي ، ( پا ) گروه پرستی ، محفل پرستی .

**ډلگی** dal-gay : کابینه ، ( پا ) د بیرخانه ، کابینه ، ( ان ) the cabinet (council)

**ډلمشر** ḍal-mašar : د ډلې مشر ، ( پا ) سر دسته ، سر خیل ، سر گروه ، سر گروپ .

**ډلواك** ḍal-wấk : د جمهوری اړوند ، جمهوري ( ـ پال ) ، جمهوري غوښتونکی . ( پا ) جمهوری ( ـ خواه ) ، جمهوری طلب ، ( ان ) republican

**ډلواکي** ḍal-wa-kí : جمهوري ، ( پا ) جمهوری ، جمهوریت ، ( ان ) republic

**ډله ييز** ḍala-yíz : ډليز ، ( پا ) گروهی ، جمعی ، دستجمعی ، گروپی ، کتلوی .

**ډمخونه** ḍam-xúna : د نايي دوکان ، د حجامت دوکان ( پا ) اتاق سلمانی ، ( ان ) hair-cut saloon

**ډمگۍ** ḍam-gáy : نايېه ، د نايي ( ېم ) ښځه ، سينگارونکې ، ( پا ) مشاطه ، آرايشگر .

**ډنډ الۍ** ḍanḍaláy : ډنډورچي ، جار چي . ( پا ) جار چی ، پيك ، ( ان ) public crier,town crier

**ډنډگلی** ḍand-gwal-ay : ( پا ) نيلوفر .

**ډوډۍ خونه** doḍáy-xuna : خوراکخونه ، د ډوډۍ خوړلو کوټه ، ( پا ) اتاق نانخوری ، طعامخانه .

**ډوری** ḍoray : گورنهه ( پا ) د خمه ، ( ان ) crypt. tomb

**ډونډ** ḍond : جار ، څرګندونه ، ( پا ) آګهی ، ( عر ) اعلان ، اعلام ، انتشار ، اظهار ، ( ان ) advertising, advertisment, notice, declaration

**ډې** ḍe : د ډ ( ډال ) غږ او توری ، ( پا ) حرف و صدای دال پشتو ، دال بر گشته ،

**ډېر اړخيز** ḍer-aṛx-íz : څواړخيز ، ( پا ) چند سطحی ، چند بعدی ، چند جانبه ، ( عر ) کثیرالابعاد ، کثیرالجوانب ، ( ان ) polyhedron, ployhedral, multilâteral

**ډېر اړخيز روستاړی** ḍer-aṛx-íz-rustā̃ṛay : ډېر چاری ( ډېر فعالیت والا ) روستاړی ، ( پا ) پسوند چند جانبه ، ( ان ) meliorative suffix

**ډېر اړخيز والی** ḍer-aṛx- iz-wā̃l-ay : څو اړخيز والی ، څو مخيزوالی ، څو مخي ، ( پا ) چند جانبه بودن ، چند سطحی بودن ، چند بعدی بودن ،

**ډېر پازی** ḍer-pā̃z-ay : څو پازی ، ( پا ) هزار پیشه ؛ پر مسوولیت ،

**ډېر پورې ژبه** ḍer-pore-žaba : ګډوله ژبه ( لکه اردو ) ، ( پا ) زبان مخلوط ، ( ان ) hybrid language

**ډېر پوړيز** ḍer-poṛ-íz : ډېر پوړه، څو پوړيزه، څو پوړه، څو چته، ( پا ) چند قشری، چند طبقه یی، چند منزله . ( عر ) کثیر الطبقه، کثیر القشریه .

**ډېر پوړيزوالی** ḍer-poṛ-iz-wā́l-ay : ( پا ) چند طبقه یی بودن، تعداد طبقات، تعدد اقشار .

**ډېر پېښی** ḍer-péṣ-ay : ډېر پېښېدونکی، ( عر ) کثیرالوقوع، ( پا ) بسایند، ( ان ) frequent

**ډېر پېښي** ḍer-peṣ-í : بيا پېښي، بيا خلي، ( پا ) بسامد، ( ان ) frequency

**ډېر ترښتي ژبه** ḍer-taraṣt-í-ẑába : ډېر ترکيبېدونکې ژبه، هغه ژبه چې د لغوي ترکيب قدرت يې زيات وی ( عربی، المانی . . . ) . ( ان ) polysynthetic language

**ډېر تومنی** ḍer-tómn-ay : شل پلاری، ډېر پوری، گډوله، ارجل، آمېخته، ( ان ) mixed, hybrid (word)

**ډېر جوليز** ḍer-ǰawl-íz : څوجوله، څوجوليز، څوبڼی، څوبڼې لرونکی، ( پا ) چند شکلی، ( ان ) allotropy

**ډېر څانگيز** ḍer-cang-íz : ډېر څانگی، ( پا ) چند شعبه يی، چندين رشته يی، چندين مسلکه .

**ډېر څپيز** ḍer-cap-íz : څو څپيز، ( پا ) چند هجايی،

چند سیلابه ( ان ) polysyllabic

**ډېر څپيز والی** ḍer-capiz-wā́l-ay : ( پا ) چند هجايی چند سیلابی بودن ، ( ان ) polysyllable

**ډېر څښتنی** ḍer-caṣtán-ay : پر څو خدايانو گروهن ( معتقد ) ، ( پا ) معتقد به تعدد خدايان ، ( عر ) مشرك ، ( ان ) polytheist

**ډېر څښتني** ḍer-caṣtan-í : ډېر خدايي ، پر ډېرو خدايانو گروهه ، ( پا ) چند معبودی ، مشرکی ، ( عر ) شرك ، ( ان ) polytheism

**ډېرڅنډ** ḍer-cánd : ډېر څنډی ، ډېر څنډيز ، ( پا ) ضلعی ، چند پهلو ، ( عر ) كثيرالاضلاع ، ( ان ) polygon (al), multilateral

**ډېر دندی** ḍer-dánd-ay : ډېر کسبه ، ( پا ) هزار پيشه ، دارای چندين پيشه .

**ډېر رنگی** ḍer-ráng-ay : څو رنگی ، ( پا ) چند رنگ ، چندين رنگ ، ( عر ) كثير الالوان ، ( ان ) multy-colour

**ډېرزوزاتی** ḍer-zawzā́t-ay : گڼ زوزاتی ، د ډېرو بچيو خاوند ، ( عر ) كثير الاولاد .

**ډېر زېږی** ḍer-zéẓ-ay : ډېر پيدا ، ( پا ) پر توليد ،

( بسیار ) زایشی ، ( ان ) productive

**ډېر ژبی** ḍer-žáb-ay : څو ژبی ، په څو ژبو پوه ، ( پا ) چند زبانه ( شخص ) ، ( ان ) polyglot

**ډېر ژبیز** ḍer-žab-íz : څو ژبیز ، ( پا ) چند زبانه ( متن ) ، ( ان ) pllylingual

**ډېر ژبیزوالی** ḍer-žab-iz-wā́l-ay : څو ژبیزوالی ، ( پا ) چند زبانی ، ( ان ) polylinghalism

**ډېر سپېڼې ژبه** ḍer-spáṇe-žaba : ډېر تون لرونکې ژبه ، ( پا ) زبان چند نواختی ، ( ان ) polytonic language

**ډېرښت** ḍer-áṣt : ډېروالی ، ډېره کی ، ( عر ) اکثریت ، ( ان ) majority

**ډېرښتي** ḍer-aṣt-í : ډېره کیواله ، ( ار ) اکثریتی ،

**ډېرښځمنی** ḍer-ṣaj-mán-ay : څو ښځې لرونکی ، ډېر ښځی ، څو ښځمنی ، ( پا ) دارای چند زن ، چند زنه ، ( ان ) polygamous

**ډېر ښځمني** ḍer-ṣaj-man-í : څو ښځمني ، څو ښځیوالی ، ډېر ښځیوالی ، ( پا ) تعدد زوجات ، ( ان ) polygamy

**ډېر غږي** ḍer-ɣaz-í : څو غږي ، د څو غږونو يو

څايوالی، ( پا ) چند صوتی، ( ان ) polyphony

**ډېر کاری** ḍer-kā̄r-ay : ډېر کار کوونکی، زيار کښ، ( پا ) پر کار، با پشتکار .

**ډېر کسيز** ḍer-kas-íz : څو کسيز، ګڼ کسيز، ډليز، ډله ييز، ( پا ) چند نفری، گروهی، دستجمعی،

**ډېر کلن** ḍer-kal-án : ډېرمنګی، زوړ منګی، ډېر عمری، ( پا ) چندين ساله، پخته سال، سالخورده، دارای عمر طولانی، دارای کبر سن .

**ډېر ګټی** ḍer-gáṭ-ay : ( پا ) مورد استفادهٔ همگانی، ( عر ) کثيرالاستفاده، ( ان ) of multy utility

**ډېرګړی** ḍer-gáṛ-ay : ( عر ) جمع ( زبان )، ( ان ) plural

**ډېر ګوټ** ḍer-gwáṭ : ډېر ګوټی، ډېر ګوټيز، ( پا ) چند گوشه، ( عر ) کثيرالزوايا، ( ان ) many-angled, polygonal

**ډېر ګونديز** ḍer-gond-íz : ډېر ګوندي، څو ګوندي، څو ګونديز، ( پا ) چند حزبی، چندين حزبه، کثيرالحزبی .

**ډېرليکی** ḍer-lík-ay : ډېرليکونکی؛ ډېر تاليفی، ( پا ) چندين تاليفه، ( عر ) کثيرالتاليف، ( ان ) voluminous, a

voluminous writer

**ډېر مانيز** ḍer-man-íz : څو مانيز ، ( پا ) چند معنايى ، ( عر ) كثيرالمعانى ، ( ان ) polysemous, polysem, polysemantic

**ډېرمانيز والى** ḍer-man-iz-wā́l-ay : ( پا ) چندين معنى داشتن ، چندمعنايى بودن ، ( ان ) polysemy

**ډېرمانيزويى** ḍer-man-íz-wayay : څو مانيزويى ، څو مانا لرونكى ويى ، ( پا ) واژهٔ چند معنايى ، ( ان ) polysem word

**ډېر مخى** ḍer-max-ay : څو مخى ، څو مخيز ، ډېر مخيز ، ( پا ) چند رويه ، ( عر ) كثير الوجوه ، ( ان ) polyhedral

**ډېر مړوښې** ḍer-maṛ-oṣe : ډېر مېړوښې ، څو مړوښې ، ( پا ) داراى چند شوهر ، چند شوهره ، چند شوهرگير ، ( ان ) polyandrous

**ډېر مړوښي** ḍer, maṛ-oṣí : څو مړوښي ( مېړوښي ) ، ( پا ) تعدد ازواج ، چند شوهرى ، ( ان ) polyandry

**ډېرمغزى** ḍer-máγz-ay : له مانا ډك ، ( پر ) مغز ، پر معنى ، پر مايه ( ان ) meaningful

**ډېر موخی** ḍer-mox-ay : څو موخی، څو مقصدی، ( پا ) چندین هدفه، ( عر ) کثیر المقاصد، ( ان ) of multy purpose

**ډېر مېشتی** ḍer-mešt-ay : ګڼ مېشتی ( ښار ...)، ( پا ) پر نفوس، پر جمعیت،

**ډېر نومیز** ḍer-num-iź : ډېر نومی، ( پا ) دارای چند نام، ( عر ) کثیرالاسم، ( ان ) multignominal, polynomial, polyonymous

**ډېر نومیزوالی** ḍer-num-iz-wā́l-ay : ( پا ) به کار بردن چند نام برای یك چیز، کثیر الاسمی، ( ان ) polyonymy

**ډېروال** ḍer-wā́l : ډېر پال، ( پا ) کثرت گرا، ( ان ) pluralist

**ډېر واله** : ḍer-wā́la : ډېر ښتواله، ( پا ) اکثریت گرایی، ( ان ) pluralisms

**ډېر و دون** ḍer-wad-ún : ډېر ښځمني، ( پا ) تعدد زوجات، ( ان ) polygamy

**ډېرولسي** ḍer-walas-í : ګڼ ولسي، ډېر ملتي، ګڼ ملتی، ( پا ) چند ملیتی، ( ان ) multy nationality

**ډیوه وال** ḍiwa-wā́l : بلینډه وال، ( پا ) مشعلدار

# (ر)

**راتلونکې** ratl-unke : راتلونکی مهال، راتلونکی وخت، او ستر مهال، ( پا ) آینده، ( عر ) مستقبل، ( ان ) future

**راديويي څپه** radeo-yi-capa : د رېډيو څپه، ( پا ) موج راديويي، ( ان ) radio frequency, radio wave

**راکړه - ورکړه** rakra-warkra : سوداګري، پېر و پلور، مرېنه، چال چلند، ( پا ) داد و ستد، معاملهٔ تجارتی، ( ار ) لین و دین، ( ان ) transaction, business

**راکښلی اواز** ra-kṣal-ay-awaz : ( زړه ) راکښونکی اواز، راښکلی اواز، خوږ اواز، ( پا ) آواز دلکش، صدای خوش، ( ار ) دلکش آواز، دلپذير آواز، خوبصورت آواز .

**راکښو** ra-kṣ-o : راښکو ( ناکره )، ( پا ) الهٔ سیمکشی، الهٔ که سیم فلزی را به آن باریك میسازند .

**راکښون** ra-kṣ-un : راکښنه، زړه را کښون، ( پا ) ګیرایي، کشش، ربایش، ( عر ) جذابیت، جاذبه، ( ان )

attraction

**راکښون ځواك** rākṣun-jwā̆k : د راکښون قوه، ( پا ) قوهٔ جاذبه، نیروی جاذبه، نیروی جذب به مرکز، ( ار ) مرکز پزیر طاقت، ( ان ) centripetal force

**راکښونکی** rā-kṣ-únk-ay : راکښونی، زړه راکښونکی، ( پا ) گیرا، رباینده، دلچسپ، ( ار ) دلکش، دلپزیر، ( عر ) جذاب، جاذب، ( ان ) attractive

**رامخته کول** rā-max-ta-kaw-ál : رامخې ته کول، رامنځته کول، پیش کول، ( پا ) به پیش کشیدن، مطرح کردن ( موضوع، مساله ).

**راوتونکی سا بهیر** rā-wat-únkay-sā-bahír : د راوتونکې سا ( هوا ) جریان، ( پا ) جریان هوای باز دمی، ( ان ) egressive pulmonic air-stream

**رایه** rā̆ya : رای ( رأی )، سند sand ( جمع : رایې، رای وې )، ( اچول، ورکول ) ( رای ورکوونکی : voter ) ( عر ) رأی، ( ار ) رائے ( آرا ).

**رای اخیستنه** rāy-axist-ána : سند اخیستنه، ( پا ) رأی گیری، ( ان ) vote taking

**رای ورکړه** ráy-wárkṛa : سند ورکړه، ووټ ورکړه، ( پا ) رأی دادن، ( ار ) رائے دهندگی، ( ان ) to vote

**راوړنه** : ( له بهره ) راوړنه، واردونه، ( پا ) وارد کردن کالا، تورید کالایی، ( عر ) تورید، ( ار ) در آمد، ( ج : راوړنې واردات ). ( ان ) import

**ربځ** rabáj : رېبځ جارو، بهری؛ زېږوکی، ( پا ) جاروب؛ برس، بروس، ماهوت پاك كن، كفش پاك كن و امثال آنها، ( ان ) broom, brush

**ربځول** rabaj-aw-ál : جارو کول، ( پا ) جاروب کردن، روفتن.

**ربړن** rabṛ-án : ستونزمن؛ ربړي ( ارتجاعي )، ( پا ) کشدار، الستیکی، الاستیکی.

**ربړه** rábṛa : ستونزه، زوك، كشاله، بوخته، ماشوړه، ( پا ) كشاله، پيچيده گی، ( عر ) مسأله، معضله، مشكله، ( ار ) مسئله، قضيه، پيچيدگی، جنجال، ( ان ) problem ( ناكره : لبړه ).

**ربړيالی** rabṛ-yál-áy : زيار كښ، خواريكښ، ( ار ) محنت كش، ( پا ) سختكوش، زحمتكش، رنجبر.

**ربړيجن** rabṛ-i-ǰan : ربړوونكی، ربړنده، خورنده،

خوروونکی، ( پا ) مزاحمت کننده، ( عر ) مزاحم، ( ان ) troublesome

**ربړيز** rabṛ-íz : ربړنده، جنجالي، پیچلی، ( پا ) پیچیده، بغرنج، ( عر ) لاینحل، ( ان ) problematic

**ربلاند** rabl-ā́nd : رېلگر، لوراند، ( پا ) روا دار، مهربان.

**رپ** rap : سترگو رپ؛ ثانیه، ( پا ) چشم بهم زدن، پلك زدن؛ ثانیه، ( عر ) ثانیه، ( ان ) twinkling of the eye; second

**رپا** rapā́ : رپېدا، لړزه، رېږدا، ( پا ) لرز، لرزش، لرزه، ( عر ) ارتعاش، رمتزاز، ( ان ) vibration (phonology)

**رپاند** rap-ā́nd : رپېدونکی، رپند، رېږدېدونکی، لړزان، ( پا ) لرزان، در حالت اهتزاز ( درفش، پرچم )؛ غلطان، چند ضربه یی ( آوا، فونیم )، ( ان ) thrill; rolled (thrill)

**رپند ببواك** ráp-and-be-wák : مغه بېواك ( کنسوننټ ) چې له وینگ ( تلفظ ) سره یې د ژبې څوکه یا ژبې رپېږي ( ر )، ( پا ) همخوان اهتزازی، ( ان ) vibrant consonant

**رپی** rapáy : بیرغ، توغ، ( پا ) بیرق، درفش، پرچم، ( عر ) علم، ( ان ) flag, banner

**رټلی او پېټلی** raṭál-ay-aw-peṭál-ay : رټلی

پېټلی ، خدای شرمولی رسول ځغلولی ، ( پا ) توبیخ شده و لعنت زده ، رانده و ملعون ( ار ) لعنت .

**رحمان ادبي جرگه** Rahmā́n-Adab-ī-J̌argá: د یوې ادبي ټولنې ( جرگې ) نوم ، ( پا ) نام یکی از انجمن های ادبی در پشاور .

**رحمان مېنه** rahmā́n-mena : د کابل ښار له مېنو ( ناحیو ) څخه ، ( پا ) رحمن مېنه ، یکی از نواحی شهر کابل .

**رخن** rax-án : کینه کښ ، رخی ، رخور ، کینه ور ، گرجمن ، ورزوند ، ( پا ) کینه توز ؛ رشك انگیز ، رشك آور ، ( عر ) حاسد ، حسود .

**رخور** raxa-wár : کینه ناك ، کینه کښ ، کینه ور ، گرجمن ، رخن ، ( پا ) رشك کن ، کینه توز ، غبطه خور ، ( عر ) حاسد ، حسود .

**رخه او سخه** ráxa-aw-sáxa : گرج او کینه ، ( پا ) بغض و حسد ، رشك و عناد ، حسد و عناد ، بغض و عناد ، کینه و حسد .

**رزمنوال** razman-wā́l : رزمنه وال ، نفقه رسوونکی ؛ تنخوا خور ، ( پا ) نفقه رسان ، روزی رسان ، متکفل نفقه ؛ معاش خور .

**رزمنه** raz-mana : نفقه؛ تنخوا ، ( پا ) وزی ، نفقه؛ معاش .

**رزم و بزم** razm-o-bazam : د يوه شعری غونډ ( مجموعې ) نوم ، ( پا ) رزم و بزم ، نام مجموعه يی شعری .

**رسليك** ras-lik : ( پا ) رسيد ، قبض ، ( ان ) receipt

**رسنۍ** ras-anay : رسندۍ ( ناکره ) ، ( پا ) رسانه ها ، ( ار ) ذرائع ، ( ان ) media

**رش چای** raš-čāy : پېروي چای ، تورې چائی ، ( پا ) قيماق چای ، ( ار ) ملائی چائے .

**رشلری** raš-lar-ay : خيری صفا کوونکی ، ( پا ) کيسه مال حمام ( گرمابه ) ، ( ار ) مالشی .

**رښتوندود** rast-un-dod : اصلي يا حقيقي ( خبري ) اړخ ، ( پا ) وجهٔ حقيقی يا خبری ( فعل ) ، ( ار ) اصلی وجه ، ( ان ) indicative, (fact) mood

**رښتيا پال** rastyā-pāl : ( پا ) حقيقت جو ، حقيقت پرور ، راستجو .

**رښتيا پالنه** rastyā-pal-ana : ( پا ) حقيقت جويی ، راستجويی ، ( ار ) حقيقت پروری ، راست بازی .

**رښتيا مل** rastya-mal : رښتين ، رښتينی ، رښتونی ،

( پا ) حقيقت دوست ، راستكار ، ( ار ) حقيقت پرور ، حق پرور ، راست پرور .

**رښتيا وين** raṣtya-wín : ( پا ) واقعبين ، ( ار ) حقيقت بين ، حقيقت شناس .

**رښتياينه** raṣtya-yána : رښتينوالی ، رښتيني كونه ، ( پا ) تحقق بخشيدن ، عملی كردن ، ( عر ) تحقق ، تحليل ، ( ان ) realization, fulfilment

**رښتينوال** raṣtin-wā́l : واقعيت پالونكی ، ( پا ) واقعگرا ، واقعيت گرا ، واقعبين ، ( ار ) حقيقت پسند ، ( ان ) realist

**رښوال** raṣ-wā́l : مربا خر څوونكی ، مربا جوړوونكی ، ( پا ) مربا فروش ، مربا ساز ، ( عر ) عصار .

**رغاوگر** raɣ-āw-gar : رغاوه گر ، ( پا ) صنعتگر ، صنعتكار ، ( عر ) صانع ، ( ان ) industrial

**رغاونواله** raɣ-āwan-wā́la : ( د ژبپوهنې اصطلاح ) ، ( پا ) اصالت نظم و ساختمان در زبان ، ( ان ) structuralism

**رغاونه** raɣ-āw-ána : رغاو ، رغاوی ، رغونه ، رغښت ، جوړښت ، ودانونه ، ( پا ) ساختمان ، ساختار ، آبادی ، ( عر ) اعمار ، تعمير ، عمران ، ( ان ) construction

**رغاوني** raγawan-í : رغنده، رغاونیز ، ( پا ) سازنده، تعمیری ، عمرانی ، ساختمانی ، ساختاری ، ( ان ) constructive

**رغاوني پښويه** raγāw-an-í-pṣóya : رغاونیزه ( ساختمانی ) گرایمر ، ( پا ) د ستور ساختمانی ، ( ان ) structural grammar

**رغاوني ژبپوهنه**

raγ-awan-i-ž̌ab-pohana : رغاونیز ( ساختمانی ) ژبپوهنه ، ( پا ) زبانشناسی ساختمانی ، ( ان ) structural linguistics

**رغاوني غونډال** raγawan-í-γondal : رغاوني ( ساختماني ) سیسټم ، ( پا ) دستگاه ( جهاز ) ساختمانی ، ( ان ) structural system

**رغاوه** raγawa : ورهنه ، ( عر ) صنعت ، صناعت ، ( ان ) industry

**رغاویز** raγaw-íz : ( پا ) صنعتی ، صناعتی ، ( ان ) industrial

**رغاویز اوښتون** raγ-aw-iz-awuṣt-un : صنعتي انقلاب ، ( پا ) انقلاب صنعتی ، ( ان ) Industrial Revolution

**رغښت** raγ-áṣt : جوړښت ، پیدایښت ، پیداوښت ( پا ) سرشت ، نهاد ، ( عر ) خلقت ، ماهیت ، فطرت ، ( ار ) ساوې

**رغښتي** raɣast-í : جوړښتي، بنستيز، ( پا ) سرشتی، ( عر ) ماهيوی، فطری، جبلی.

**رغښتي** rɣast-í : رغښتونکی، رغړېدونکی، غلطان، لرزشی، ( آوا شناسی ).

**رغندوی** raɣ-andoy : رغنده، رغوونکی، ( پا ) شفأبخش، صحت بخش، ( عر ) مشفی؛ مصلح.

**رغنده** ráɣ-anda : رغاوني، رغوونکی، جوړوونکی، ( پا ) تعمیری، اصلاحی، سازا، سازنده.

**رغنوال** raɣ-an-wấl : ترمیموونکی، مرمت کار، مرمت کوونکی، ( پا ) ترمیم کننده، مرمتکار، جبران کننده.

**رغنده ټوك** ráɣanda-ṭuk : رغوونکی ټوك ( جزء )، ( پا ) جزء متشکله، عنصر سازنده، ( ج : رغنده ټوکونه ، ( پا ) اجزای متشکله ). ( ان ) the component elements

**رغنه** raɣ-ána : مرمتکاری سکینده، ( پا ) مرمت کاری جبران، جبیره، اصلاح.

**رغون** raɣ-ún : رغښت، جوړښت، سوله، روغه، ( پا ) آشتی، ساخت؛ ترمیم، مصالحه، صلاح، تعدیل.

رغوونی raɣ-aw-ún-ay : <---- رغنده.

**رگ الوتنه** rag-alut-ána : ( د زړه ) درزا، ( پا )

حرکت نبض ، تپش ، ( عر ) ضربان ( قلب ) ، نبض .

**رگ وپلې** rág-o-plé : پلې او وژې ، پلې او رگونه ، ( پا ) رگ و پی ، ( ار ) رگ و عضلات ، رگ و پٹھے ، ( ان ) veins and muscles

رگپوهنه rag-poh-ana : رگپوهنه ، ( پا ) رگ شناسی ، ( ان ) angiology

**رگ وهل** rag-wahál : ستن وهل ؛ متل ، تشې متيازې کول ، ( پا ) رگ زدن ، پيشاب کردن ، شاشيدن .

رگوهنه rag-wah-ana : ستنې وهنه ، ( پا ) رگ زنی ، ( ان ) phlebotomy, bloodletting

**رگوهونی** rag-wah-ún-áy : رگ وهونکی ، ستن وهونکی ، ستتبه ، ( پا ) رگ زدن ، ( عر ) فاصد ، فصاد ، ( ان ) bloodletter, phlebotomist

**رنجکانی** ranǰ-kā́ṇay : درنجو کانی ، درنجو ډبره ( کان ) ، ( پا ) سنگ سرمه ( معدن ) .

**رنجنی** ranǰanay : د رنجو اړوند ، درنجو غوندې ، ( پا ) سرمه یی .

**رنځور يار** ranj-ur-yā́r : رنځورمل ، د رنځور ( مريض ) يار ( لنډ نوم ) ، ( پا ) بيمار يار ( تخلص ) ، ( ار )

تیمار دار .

**رنځپوهنه** ranj-pohána : د رنځونو یا ناروغیو علم ، ( پا ) آسیب شناسی ، مرض شناسی ، ( عر ) علم الامراض ، ( ان ) pathology

**رنځوونکی** : ranj-aw-únk-ay ربړوونکی ، ځورونکی ، ( پا ) رنج آور ، آزار دهنده .

**رنګین ټال** rangín-ṭāl : ( د ) بوډۍ ټال ، سره زرغونه ، سره و زرغونه ، سره و شنه ، ( پا ) رنګین کمان ، کمان رستم ، ( عر ) قوس قزح ، ( ان ) rainbow

**رڼا غر** raṇa-ǧár : جبل السراج ( په پروان کې د برېښنا مرکز ) ، ( پا ) جبل السراج ، جبل سراج .

**رڼوب** raṇ-óh : رڼوبی ، ( پا ) آب زلال ، آب شفاف .

**روان - سپړیز** rawan-spṛíz : روحیاتی تحلیل یا شننه ، ( پا ) روانکاوی ، ( ان ) psycho-analytic

**روتون** raw-tún : تیخور تون ، شود و خور ، ( پا ) شیر خوارګاه ، ( ان ) nursery

**روزنپوهاند** roz-an-poh-ánd : روزنپوه ، د روزنې ( تربیې ) عالم ، ( پا ) عالم پرورش ، آموزګار ، مربی ، ( ان ) educator, trainer, teacher, pedagogue

**روزنپوهنه** rozan-pohana : ( پا ) علم پرورش ( عر ) علم التربيه ، ( ان ) education, pedagogy

**روزنتون** rozan-tun : روزنځی ، پالنځی ، ( پا ) پرورشگاه .

**روزنځی** rozan-jay : روزنتون ، پالنځی ، ( پا ) پرورشگاه ، تربيه خانه ، ( عر ) دارالتاديب .

**روزند** roz-and : روزاند ، روزونکی ، ( پا ) پرورش دهنده ، پرورنده ، مربی .

**روزنډله** rozan-ḍala : تربيوي ډله ، تربيتي ډله ، ( پا ) جمعيت تربيوی ، گروه پرورشی .

**روزنگړی** roz-an-gaṛ-ay : روزونکی ، ( پا ) آموزگار ، پرورش کننده ، پروردگار .

**روزنيز** roz-an-iz : د روزنې ( تربيې ) اړوند ، ( پا ) پرورشی ، ( عر ) تربيوی ، تعيلمی ، ( ان ) educational

**روږدتيا** ruẓd-tyā : روږديوالی ( پا ) خوگيری ، معتاد شدن ، معتادی ، ( عر ) اعتياد ، عادت ، ( ان ) addiction, habit, use

**روږدی** ruẓd-ay : ( پا ) عادی ، آموخته ؛ اهلی ، خوگير ، ( عر ) معتاد ، ( ان ) addict, addicted, habituated

**رورډدي** ruẓd-í : رورډدني،( پا ) اعتيادي ( فعل ) .

**رورډدېدل** ruẓd-ed-ál : عادي کېدل ، معتادېدل ؛ اهلی کېدل ، عادتېدل ، ( پا ) عادی شدن ، معتاد شدن ، آموخته شدن ؛ اهلی شدن ( معتدی : اورډدول ) .

**رورډدېدنه** roẓd-ed-ána : عادتېدنه ، عادي کېدنه ، معتادېدنه ؛ اهلي کېدنه ، ( پا ) عادی شدن ، معتاد شدن ؛ اهلی شدن .

**روستاړی** rust-ā́ṛ-ay : شاوندی ، ( پا ) پسوند ، ( عر ) لاحقه ، ( ان ) saffix

**روښانتيا** roṣ-an-tyā́ : روښانونه ، ( پا ) روشن سازی ، روشنگری ، ( عر ) تنویر .

**روښانتيايي** roṣān-tyā-yí : روښانيز ، ( پا ) تنویری .

**روښانتيايي پېر** roṣan-tyā-yí-per : ( په افغانستان کې له ۱۹۰۰ ـ ۱۹۳۰ ) سياسی ـ فرهنګي پېر ( دور ) .

**روښاند ( ی )** roṣā́nd (-ay) : روښانفکره ، رونفکره ، رونهاندی ، ( ار ) روشن خيال ، ( پا ) روشنفکر ، روشنگر ، ( ان ) intellectual, enlightened, bright-minded

**روښاندانه** roṣ-ānd-āná : روښانفکرانه ، ( پا ) روشنفکرانه ، روشنگرانه .

**روښان مېنه** roṣā̃n-mena : د جلال آباد له ښار مېنو ( ناحيو ) څخه، ( پا ) روشان مېنه، يکی از نواحی شهری جلال آباد ( افغانستان ).

**روښاندي** roṣānd-í : روښانفکري، رونهاندي، ( ار ) روشن خيالی، ( پا ) روشنفکری، روشنگری، ( ان ) enlightenmeut

**روښه وال** roṣa-wā́l : روښي، ( ناکره ) ورېښه وال، ( پا ) حلوايی، حلوا فروش.

**روغ ارتاو** roɣ-art-ā́w : ( پا ) چتر، ( ان ) parachute

**روغ ارتاوی** roɣ-art-ā̃w-ay : ( پا ) چتر باز، ( ان ) paratrooper, parachutist

**روغتون** roɣ-tún : ( پا ) بيمارستان، شفا خانه، ( ان ) hospital

**روغتوني** roɣ-tun-i : د روغتون اړوند، ( پا ) بيمارستانی.

**روغتياپال** roɣtya-pā́l : ( پا ) مفتش صحی، ( ان ) health inspector

**روغتيا پوهنه** roɣ-tyā-pohána : صحي پوهنه، ( پا ) بهداشت شناسی، ( ار ) حفظان صحت، ( ان ) hygiene

**روغتیا ساتنه** roɣ-tya-sat-ana : د روغتیا ساتنه، ( پا ) بهداشت، ( عر ) حفظ الصحه، ( ان ) health care, sanitation

**روغتیا مل** roɣtya-mal : د روغتیا ( صحت ) ملګرى ( لنډ نوم )، ( پا ) بهداشتیار ( تخلص ).

**روغتیا وال** roɣ-tya-wā́l : ( پا ) سر طبیب، سر پزشك، ( ان ) head physician, medical officer

**روغتیایي** roɣ-tya-yi : د روغتیا ( صحت ) اړوند، ( پا ) بهداشتی، صحی، ( ار ) متعلق به حفظان صحت، ( ان ) hygienic

**روغتیایي څښاك اوبه** roɣtya-yí-cṣak-obá : د څښلو پاکې اوبه، ( پا ) آب نوشیدنی صحی، ( ان ) (healthy) drinking water

**روغلیك** roɣ-lík : روغه لیك، ( پا ) سازشنامه، صلحنامه، موافقه نامه، ( ار ) معاهده امن، امن معاهده، ( ان ) peace pact, agreement

**روغ نیتی** roɣ-nyát-ay : پاك زړى، ( پا ) داراى نیت پاك، پاك نیت، نیکخواه، خیر اندیش.

**روغ نیتي** roɣ-nyat-í : روغ نیتی، پاك نیتي، ( پا )

پاك نيتي ، نيكخواهي ، بهخواهي ، خيرانديشي .

**روغوال** roǥa-wāl : د روغې منځګړی ، پخلا كوونكى ، ( پا ) آشتي دهنده ، ( عر ) مصلح .

**روغه جوړه** róǥa-jóra : پخلاينه ، سوله ، ( پا ) آشتي و مصالحه .

**روغه سوله** roǥa-sola : سوله بوله ، سوله ستاړه ، ( پا ) صلح و سلم ، صلح و صفا .

**روغه ييز** roǥa-yíz : سوله ييز ، په سوله ( صلح ) ، ( پا ) مسالمت آميز ، صلح آميز ، صلحجويانه ، ( عر ) مصلحانه .

**روك** rwak : د ملي شتمنى غلا ، ( پا ) اختلاس ، ربايش ، ( عر ) اختلاس ، رشوة ، ( ار ) بد عنواني ، ( ان ) embezzlement, corruption

**روك گر** rwak-gar : اختلاس كوونكى ، ( پا ) اختلاسگر ، ( عر ) مختلس ، ( ار ) فراډ كرني والا ، ( ان ) corrupt. embezzler

**روڼاندى** ruṇ-ánd-ay : روښاندى ، روښان خياله ، روڼ ذهنى ، ( پا ) روشنفكر ، روشنگر ، ( ان ) enlightened, intellectual

**روڼ گهيځ** rúṇ-gahíź : روڼ سبا ( صبا ) ، سباوون ،

وايي، لوايي، ( پا ) صبح صادق، ( ان ) the true dawn

**روڼ خپلواك** ruṇ-xpal-wā́k : مختنی خپلواك، د خولې تشې په مختنی برخه کې ادا کېدونکی واول، ( پا ) واکهٔ قدامی، ( ان ) bright (front) vowel

**رې** re : ر، د پښتو آبېڅې ديارلسم توری، ( پا ) راء ( ر ).

**رېب ليکه** reb-líka : مايل خط، رېبه ( مايله ) کرښه، ( پا ) خط مايل، خط اريب، ( هندسه )، ( ان ) filted line

**رېز** rez : راشی، دواورې ښويېدل، ( پا ) برف کوچ، توفان برف، کولاك برف، ( ان ) snow storm

**رېږدلمن** reẓd-lamán : د ( غږ ) رېږدا پراختيا، ( پا ) دامنهٔ ارتعاش ( آوا شناسی )، ( ان ) amplitude

**رېږدله** réẓd-la : ځمکرېږدله، ( پا ) زمين لرزه، ( عر ) زلزله، ( ان ) earthquake

**رېږدله ځپلی** reẓd-la-japál-ay : زلزله ځپلی، ( پا ) زلزله زده.

**رېږدله مېچ** reẓd-la-mec : د زلزلې د مېچ اله، ( پا ) زلزله سنج، زلزله نگار، ( ار ) زلزله پيما، ( ان ) seismometer

**رېگبومه** reg-bóma : شگلنه ځمکه، ( پا ) زمين ريگی،

## ( ړ )

**ړپند ببواك** ṛap-and-be-wāk : اوبلن ړپند او غبرګژ بيز ببواك ( ړ )، ( پا ) آواى مائع اهتزازى و بر ګشته، مثلا ( ړ ) پشتو يا هندى .

**ړندتيا** ṛand-tyā : ړوندتيا، ړندون، ړندتوب، ړندوالى، ړوندوالى، ( پا ) نابينايي، كورى .

**ړندې پېښې** ṛande-peṣé : د ړ ندو سترګو پېښې، د ړندو پېښې، ړوند تقليد، ( پا ) تقليد كور، تقليد كور كورانه ؛ ( ان blind imitation )

**ړنګ** ṛang : نوړ وران، ويجاړ ؛ له كاره ايستلى ( پارلمېنټ )، ( پا ) ويران ؛ منحل ( پارلمان، مجلس شورا ) .

**ړنګتيا** ṛang-tyā : ړنګوالى، ويجاړتيا، ورانى ؛ نړونه

( ویې پوهنه)، ( پا ) ویرانی، ( عر ) تخریب، انهدام؛ انحلال ( حکومت، پارلمېنټ)؛ انهدام ( در واژه گان)، ( ان ) destruction; dissolution; dispersion (lex.)

**ړومبزیز** ṛumba-zíz : ړومبی زېږېدلی؛ نوزېږی، ( پا ) نو زاد ( ـ ی)، ( ار ) نوزائیده، نو نهال.

**ړومبنی خج** ṛumb-an-ay-xaǰ : لومړنی خج، د زور ( طاقت) له مخې لومړی درجه فشار، ( پا ) تکیهٔ نخستین، ( ان ) primary stress (accent)

**ړومبنی زېږ** ṛumb-an-ay-zez : ( د غړونو ) لومړنی زېږ ( تولید )، ( پا ) تولید نخستین، ( ان ) primary articulation

**ړومبی** ṛumbay : وړومبی، خالي، اوته، ( پا ) هفته، شنبه، ( ان ) saturday

**ړوند تروریزم** ṛund-terorísm : ړنده دهشت گردي، ( پا ) تروریزم کور، وحشت افگنی کور کورانه، ( ان ) blind terrorism

**ړوند توغندی** ṛund-toɣandáy : بی موخې ( بې هدفه) راکټ، ( پا ) راکټ کور، موشك کور ( جمع: ړانده توغندي).

**ړوند کوڼ** ruńd-kuṇ : ړندوکی ، بی سترګو اوبی غوږو ، ډېر ساده ، ( پا ) کور و کر ، ساده دل ، کور دليل .

**ړې** re : ړ ، د پښتو آبېڅې څوارلسم توری ، ( پا ) رای برگشتهٔ پشتو .

# (ز)

**زار و زهير** zā̆r-o-zahír : خوار و زار، ځارځپلی، ( پا ) زار و زهير، زار و زبون، زار و نزار، ( ار ) نحيف و نزار، خوار و زار.

**زاړه پلوری** zaṛa-plór-ay : کباړ خرڅوونکی، ليلامي خرڅوونکی، کباړي، ( پا ) کهنه فروش، کهنه زريکوب، ليلامی فروش.

**زباتند** zbā̆t-and : زباتګر، زباتوونکی، ثابتوونکی، ( پا ) ثابت کننده.

**زبر ځواک** zabar-jwā̆k : ستر ځواک، لوی ځواک، ( پا ) آبر قدرت، ( ان ) super power

**زبر وګړ** zábar-wágaṛ : سترمېړه، لوی سړی، زبره و ګړه، ( پا ) ابر مرد، مرد بزرګ، شخصيت بزرګ، ( ار ) قد آوار شخص، قد آور شخصيت ( ان ) superman

**زبېښاک** zbeṣ-ā̆k : ( عر ) استثمار، ځبېښاك، ( ار )

استحصال ( پا ) بهره کشی ، بهره برداری ، ( ان ) exploitation

**زخن شعر** zaxan-šer : زخه لرونکی شعر ، سکته لرونکی شعر ، غوڅن شعر ، ( پا ) شعر سکته ، شعری دارای سکته گی .

**زدلاندې** zad-lānde : تراغبړ لاندې ، اغبړمنی ، اغبړمن ، ( پا ) زیر تاثیر ، ( عر ) تحت التاثیر ، متأثر .

**زده کړوتی** zda-kṛ-ot-ay : ( پا ) دانش آموخته ، ( عر ) فارغ التحصیل ، ( ار ) ډگری یافته ، ( ان ) graduate, absolvent

**زده کړوځی** zda-kṛo-jay : د زده کړې کورس ، ( پا ) کورس آموزشي ، مرکز تعلیمی ( ژبنی زده کړوځی : کورس لسان ) .

**زده کړه** zda-kṛa : زده کړنه ، لیك لوست ، ( پا ) آموزش ، ( عر ) تعلیم ، تحصیل ، ( ار ) تحصیل علم ، ( ان ) learning, education, study

**زده کړه وال** zdakṛa-wāl : د زده کړې والا ، د زده کړې خاوند ، ( پا ) تعلیمیافته ، تحصیل کرده ، ( ان ) educated

**زده کړی** zda-kṛay : زده کوونکی ، زده کړیال ، شاگرد ، ( پا ) شاگرد ، دانش آموز ، دانشجو ، ( عر ) متعلم ، تلمیذ ، محصل ، طالب العلم ، ( ان ) pupil, student

**زده کړیال** zda-kryāl : زده کوونکی ، شاگرد ، پوهنپال

( پوهنتوني )، ( پا ) دانشجو ، ( عر ) محصل ، ( ان ) student

**زده کوونکی** zda-kaw-únkay : زده کړی ، د شوونځی شاګرد ، ( پا ) دانش آموز ، ( عر ) متعلم ، تلميذ ،

**زرپاڼه** zar-pā̃ṇa : زرينه پاڼه ، زرورق کاغذ ، ( پا ) برگ زرين ، زرورق ،

**زرپښ** zar-paṣ : زرګر ، ( پا ) زرگر ، نقره کار ، نقره گر ، نقره ساز ، ( ان ) silversmith

**زرپېرلی** zar-perálay : په پيسو اخيستل شوی ، ( پا ) زر خريد ( غلام )، ( زر پېرلی مريی : غلام زر خريد )، ( ان ) bondsman, slave

**زرتله** zar-tala : کنډه ، ( پا ) ترازوی طلايی ، مثقال ترازو ، ترازوی حساس ،

**زر ټوکی** zar-ṭúkay : زرين ټوکر ( رخت )، ( پا ) پارچۀ زرين ، زربفت ، زربافت ، ( ان ) brocade, gold cloth

**زرچاڼ** zar-čā̃n : زرولن ، ( پا ) زر شويی ، طلا شويی ، خاکشويی ، ( ان ) gold-washing

**زرڅانګه** zar-cā̃nga : زرينه څانګه ، ( پا ) شاخ زرين ،

**زرڅانی** zar-cán-ay : زرڅاندی ، زرولونی ، ( پا ) زر شو ، طلا شو ( ـ ی ) ،

**زرغون پوښ** zarɣun-poṣ : زرغون نمری ، ( پا ) سبز پوش .

زرغون څراغ ǵarɣun-ceraɣ : ټریفیکي زرغون څراغ چې دويمه مانایې «اجازه» او «مثبت ځواب» دی ، ( پا ) چراغ سبز ترافیکی ، مجازاً به معنی «اجازه» و «جواب مثبت» .

**زرغونه میدان** zarǵuná-maydān : ( پا ) زرغونه میدان ، یکی از خیابانهای شهر کابل .

**زرغونیز** zarǵun-íz : زرغونېدونکی ، ټوکېدونکی ، شین کېدونکی ، ( پا ) رستنی ، روییدنی .

**زرکاڼی** zar-kāṇay : کره کاڼی ، کرووټی ، ( پا ) سنگ محك ، سنگ زر ، ( ار ) سنگ پارس .

**زرکلیزه** zar-kal-íza : زرمه کلیزه ، ( پا ) هزار مین سالگرد ، ( ان ) millenium, millenial

**زرگنډی** zar-gán-ḍay : هغه ټوکی چې زر پکې گنډل شوی ، ( پا ) زردوز ، سیم دوز .

**زرگونی** zar-gún-ay : زرگون ، زرگیز ، زری ، ( پا ) هزاری ( بانکنوت افغانی ) .

**زرلښته** zar-laṣta : د زرولښته ( ځانگړی نوم ) ، ( پا ) شاخچهٔ زرین .

**زرناوی** zar-nā́w-ay : زرناو ، ( پا ) هزارناو ، منطقه یا کوهیکه هزار ناو ( رود ) دارد .

**زرندی** zarandáy : ځمکلاندې ، ( پا ) ته کاوی ، زېرزمینی .

**زروبی** zar-óbay : له زرو لوبدل شوی ، زرین ټوکی ، ( پا ) زربفت .

**زرو زور** zár-o-zór : هم زر او هم زور ، شتمني او ځواکمني ، ( پا ) زر و زور ، پول و قدرت ، دارایی و قدرت .

**زری** zar-áy : زریز ، زرگون ، د زرو ( افغانیو ) بانکنوټ ( ، بېنکنوټ ) ، ( پا ) هزاری ( بانکنوت ) .

**زری** zaráy : زریزه زرمه ، زرکلني ، زرکاله ، ( پا ) هزاره ، هزار سال ، ( ان ) millenial, millenium

**زری ځبله** zari-jábla : د خوراکي توکو ( ارزاقو ) شرکت ( کمپنۍ ) ، ( پا ) شرکت ارزاق ، ( ار ) شرکت غله جات ، کمپنی اجناس .

**زړبوډي** zaṛ-buḍ-i : زړښت ، بوډا توب ، بوډا ینه ( پا ) پیري .

**زړغی** zaṛ-ɣáy : ټکنی ، دوه زړی ، اړنگمن ، ( پا ) دودله ، ( عر ) متردد ، مذبذب .

**زړغی او ټکنی** zaṛɣáy-aw-ṭakan-áy : دوه زړی او

تکنی، ( پا ) دو دله و متردد .

**زړوېز** zar-wiz : زوړويي، زوړ لغت، ( پا ) واژهٔ قديمی، لغت کهنه، ( ان ) ارکايېزم archaism

**زړه او ځيګر** zṛa-aw-jiga، : زړه او ينه، ډېر ګران، ( پا ) دل و جګر، کنايه از فرط علاقمندی ( به کسی )، ( زړه او ځيګرمې له تا ځار : دل و جګرم از تو قربان، ته مې زړه او ځيګر يې : تو به من خيلی عزيزی ! ).

**زړه او ذهن** zṛa-aw-zehan : ذهن و زړه، ( پا ) قلب و ذهن، دل و ذهن، دل و دماغ ( زما په زړه او ذهن کې ژوندی يې : در دل و ذهن من زنده يی )،

**زړه برم** zṛa-brām : د زړه زور، د زړه ځواک، ( پا ) شکوه دل، کنايه از قوت دل و دلېری .

**( په ) زړه پورې** (pa-) zṛa-pore : زړه راکښلی، زړه راکښونی، زړه وړونکی، زړه وړونی، زړه راښکونکی، ( پا ) دلچسپ، دلکش، دلبند، دلربا .

**زړه پوه** zṛa-poh : زړه پوهاند، د زړه د ناروغيو ځانګوال ( ماهر ) او طبيب، ( پا ) قلب شناس، ( ان ) cardiologist

**زړه پوهه** zṛa-poha : دزړه د ناروغيو پوهنه ( علم )،

( پا ) قلب شناسی ، ( ان ) cardiology

**زړه توری او خوا توری** zṛa-tòr-ay-aw-xwā-tòr-ay : زړه تورن او خوا تورن ، بېزار ، ( پا ) دلزده و دل سیاه ، بکلی بیزار .

**زړه ټکی** zṛa-ṭákay : موخه ، مقصد ، ( عر ) مطلب ، مطلوب ، مافی الضمیر ، ( پا ) راز دل ، مطلب دل .

**زړه خور** zṛa-xór : دبل یا خپل زړه خوړونکی ، زړه خوری ، ځان خوری ، زړه خوړینی ، ( پا ) دلخور ؛ جگر خوار ، غم درون .

**زړه خوري** zṛa-xor-í : ( خپل یا د بل ) زړه خوړنه ، زړه خوړیني ، زړه خوړینوالی ؛ ( پا ) دلخوری .

**زړه راکښلی** zṛa-rā-kṣál-ay : زړه را کښونکی ، زړه راکښونی ، راکښلی ( راښکلی ) ، ( پا ) دِلکش ، دلچسپ ، دلپزیر ، ( عر ) جذاب .

**زړه راکښون** zṛa-rākṣún : زړه راښکون ، راکښون ، ( پا ) دلکشی ، دلپذیری ، دلربایی ، ( عر ) جذب ، جذابیت .

**زړه راکښونی** zṛa-rā-kṣ-ún-ay : زړه راکښلی ، زړه راکښونکی ، ( پا ) دلچسپ ، دلکش ، دلربا ، دلپذیر .

**زړه ستړی** zṛa-stáṛay : ستړی ستومان ، ( پا ) خسته

دل .

**زړه سواند** zṛa-swā́nd : زړه سواندی ، خواخوږی ، غمخور ، ( پا ) دلسوز ، همدرد ، غمخوار .

**زړه سواندي** zṛa-swānd-í : زړه سواندی ، زړه سوی ، خوا خوږي ، ( پا ) دلسوزی ، همدردی ، ( ار ) غم خوری .

**زړه غټاوی** zṛa-ɣaṭāwáy : ډاډ ، تسل ، زغمزیاتونه ، زغمزیاتی ، ( پا ) دلپری ، تسلیت ، آرامش قلبی ؛ حوصله آفزایی .

**زړه وړونی** zṛa-wṛ-ún-ay : زړه وړونکی ، زړه راکښونکی ، زړه پورې ، ( پا ) دلچسپ ، دلکش ، دلبند ، دلربا .

**زړه وړی** zṛa-wáṛ-ay : زړه وړونی ، زړه وړونکی ، زړه راکښونکی ، مینه وړی ، ( پا ) دلفریب ، دلکش ، دلبر ، دلجو .

**زړه ییز** zṛa-yíz : زړه نی ، د زړه اړوند ( مربوط ) ، ( پا ) قلبی .

**زړی** záṛay : مندکه ؛ دکك ( ذرې ) يو رغنده ټوك ، ( پا ) هسته ، ( ار ) مرکزه ، ( ان ) nucleus

**زړییز** zaṛ-a-yíz : زړی ییز ، ( پا ) هستوی ، ( ار ) نیوکلیائی ، مرکزی ، ( ان ) nuclear

**زږه غاړه** zaẓá-ɣā́ra : زیږه غاړه ، زیږگړدود ، ( پا ) لحن شدید ، لهجه سخت .

**زغر پوښ** zǥar-póṣ : زغرگاډی، ( پا ) زره پوش ( عراده )، ( ان ) armo (u) red, armo(u) r-clad

**زغر ټټرى** zǥar-ṭaṭar-áy : د زغرواسکټ، ( پا ) زره سینه، ( ان ) breastplate

**زغرد** zǥard : غوځ، ډاگیز، ( پا ) اشکارا، قاطع، صریح و آشکار، ( عر ) قاطع، صریح.

**زغردتیا** zǥard-tyấ : زړورتیا، ځرگندتیا، غوځه، غوځاوی، ( پا ) دلیری، بی غشی، صراحت و قاطعیت، ( عر ) جرئت، صلاحیت، قاطعیت.

**زغر ساز** zǥar-sǻj : زغر جوړوونکی، ( پا ) زره ساز، ( ان ) armorer

**زغر گاډى** zǥar-gấḍay : زغرور گاډی، زغر پوښ گاډی، ( پا ) موتر ( ماشین ) زره پوش.

**زغر ماتى** zǥar-mất-ay : زغر ماتوونکی، ( پا ) زره شکن، ( ان ) armo(u)r-piercing

**زغروال ځواکونه** zǥar-wǻl-jwākúna : زغرور یا زغریال ځواکونه، ( پا ) نیرو های زره دار، قوای زره دار.

**زغروبى** zǥaróbay : مغه سپی چې هر چا ته خوله اچوی، هر مغه څوك چې ورته خوی ولري، ( پا ) شخص اذیت کننده و

متعارض ، ( ان ) agressive

**زغريال** zγar-yā́l : زغرور ، زغروال ، ( پا ) زره پوش ، زره دار .

**زغريز** zγar-íz : زغرور ، ( پا ) زرهی ، ( ان ) armo(u)red

**زغريز ګاډی** zγar-íz-gā́ḍay : زغرلرونکی ګاډی ( موټر ) ، ( پا ) خودرو ( اتومبيل ) زره پوش ، ( ان ) armo(u)red car

**زماني واټن** zamān-í-waṭán : مهالي واټن ، زمانی فاصله ، ( پښ ) ذاصلهٔ زمانی .

**زمرك** zmar-ák : زمرګوټی ، د ځارندوی هلك ، ( پا ) شير بچه ( كودك پيش ادنګ ) ، ( ان ) boy scout

**زمر لای** zmar-lā́y : سرتېری ، عسكر ، ( پا ) سر باز ، ( ار ) فوجی .

**زمر ماتی** zmar-mā́t-ay : زمری ( ازمری ) ماتوونكی ، زړور ، ( پا ) شير آفګن ، دلير .

**زمری** zmaráy : ( ناكره ) ازمری او مزری ؛ د افغاني كليز ( كيلېنډر ) پنځمه مياشت ، ( پا ) شير ؛ اسد ، مرداد ( ماه ) .

**زمريالی** zmar-yal-áy : زمريال ، زړور ، ( پا ) شير

صفت ، شیر بچه ، دلاور ، دلیر ، شیر مرد ، بچهٔ شیر .

**زمنی** zmán-ay : پازپېژاند ، ( پا ) وظیفه شناس ، ( ار ) فرض شناس ، ( ان ) dutiful

**زمول** zmol : زموللی ، زمولی ، مړاوی ، غړند ، خازه ، کیاځه ، کومړ ، ژنګ ، مړه غون؛ بېځواکه ، بې مترې ، ( پا ) پژمرده ، پژمان ؛ ناتوان ، بې شیمه .

**زمولګر** zmol-gár : زمولونکی ، مړاوی ( ترمې ترمې ) کوونکی ؛ ځپونکی ، ( پا ) پژمرنده ، پژمرده ساز ، کوبنده .

**زنځیر خپور!** zanjir-xpór : پوځي بولې ( کمان ) د خپرېدو ( خورېدو ) لپاره ، ( پا ) «زنجیر تیت» ، حکم یا قوماندهٔ از هم پاشیدن .

**زنځیري اوازونه** zanjir-ī-awāzúna : عادي اوازونه ( فونیمونه ) چې دګړهار په بهیر کې لکه د زنځیر کړی پرله پسې راځي ( د خج ، آهنګ ... په وړاندې ) ، ( پا ) واجهای زنجیری ، ( ان ) linear phonemes, segmental phonemes

**زنځیري یوونونه**

zanjir-í-yaw-un-úna : ( ژبني ) زنځیري ( ځنځیري ) واحدونه ، زنځیري اوازونه ، ( پا ) واحد های زنجیری ( زبانی ) ،

linear units, linear phonemes ( ان )

**زنداني نغمې** zandan-í-naγme : ديوه شعري غونډ ( مجموعې ) نوم ، ( پا ) «نغمه های زندانی» ، نام مجموعه یی شعری .

**زنګون بند** zangun-bánd : زنګنی ، ( پا ) زانو بند .

**زنګون کېښ!** záng un-kés : پوځي بولۍ ( کمان ) ، ( پا ) زنګون کیش !

**زورازمايل** zor-azmayál : زور ښوول ، زور ازمويل ، ( پا ) زور آزمودن .

**زور ازمايي** zor-azma-yí : زور ازماينه ، ( پا ) زور آزمایی .

**زور ازمېښت** zor-azmést : زورازمايي ، زور ازماينه ، ( پا ) زور آزمایی .

**زور ځپلی** zor-jap-al-ay : ځورولی ، ځورېدلی ، ستم ځپلی ، ( پا ) ستمکش ، ستمدیده .

**زور خج** zor-xaǰ : خوځند خج ، ديناميك ( ډاينميك ) فشار ، ( پا ) فشار دیناميك ، ( ان ) dynamic accent

**زورکی** zwar-ak-ay : زوره کی (a) ، ( پا ) زبرك ( واول مخصوص پشتو ) ، ( ان ) neutral vowel, shwa(a)

**زورمټی** zor-maṭ-ay : قوی متی؛ زور ور ، ظالم ، ( پا ) زبردست ، با بازوان قوی؛ ستمگر ، ظالم .

**زورمند** zor-mand : زورور ، زورمن ، زورواك ، د زور خاوند ، سرزور ، ( پا ) زورمند ، با بازوان نیرومند ، زور آور .

**زور واك** zor-wăk : زور واکی ، خپلسری واکمن ، ( پا ) خود سر ، فرمانروای مطلق ، ( عر ) مطلق العنان ، ( ان ) autocrat, dictator

**زور واکي** zor-wak-í : خپلسرواکي ، ( پا ) مطلق العنانی ، دیکتاتوری ، ( ان ) autocracy, dictatorship

**زور و ځواك** zor-o-jwak : زور و توان ، ( پا ) زور و قوت ، تاب و توان ، تاب و طاقت .

**زور ورکول** zor-war-k-aw-al : ( پریو شه ) زور( فشار ) اچول ، زور راوړل ، ( پا ) فشار آوردن .

**زوروري** zor-a-war-í : سر زوري ، په زور تپنه ، ( پا ) زور گویی .

**زور زیاتی** zor-zyat-ay : زور و تېری ، زور و ظلم ، ( پا ) زور و تجاوز ، زور و ظلم .

**زور نومځری** zor-num-jaray : غښتلی نومځری ( ضمیر ) ، منفصل ضمیر ، ( پا ) ضمیر منفصل ، ( ان ) (strong)

pronoun

**زور و کمزور** zor-o-kam-zor : زور ور او کمزوری ، ( پا ) قوی و ضعیف ، توانا و ناتوان .

**زوړ پال** zoṛ-pā́l : زوړ خوښی ، زوړ چاری ، ( پا ) کهنه پرست ، کهنه پیخ ، قدامت پسند .

**زوړ چاری** zoṛ-čā̆r-ay : زوړ پال ، ( پا ) کهنه کار ، کهنه پرست ؛ قدامت پسند ، ( ار ) قدامت پرست .

**زوړ ځپلی** zoṛ-japál-ay : کهپدلی ، کهی ، بېرزوړ ، ( پا ) فرسوده ، ( عر ) مندرس .

**زوړ هڅی** zoṛ-hác-ay : شاتگ هڅی ، زوړ خوښی ، شاتگپال ، ( پا ) کهنه پرست ، عقبگرا .

**زوزات** zaw-zā̃t : زوزاد ، زهوزاد ، زات و زویات ، چوچ و بوچ ، کړاخي ، بچی ، ( پا ) بچه ها ، فرزندان ، ( عر ) اولاد ، ( ان ) children, descendants

**زوږ سوران** zwáẓ-surā̃n : چغې سوران ، ناري سوري ، ( پا ) ناله و فریاد ، جزع و فزع .

**زوږنده** zwáẓ-andə : زوږور ، له شور و زوږه ډك ، انگازور ، ( پا ) پر جوش و خروش ، جوشان و خروشان ، ( ار ) هنگامه خیز ،

**زوړور** - zwaẓ-a-wár : زوړنده، انگازور، ( پا ) پر شور، هنگامه ساز، پر طنین، طنین انداز .

**زوړ و زوړ** zwáẓ-o-zúẓ : غږ و غوږ، شورما شور، شور بگت، ( پا ) سر و صدا، هارت و هورت، شارت و شورت، ( ان ) fuss, bluster, hubbub

**زوکړه اوزده کړه** zókṛa-aw-zdákṛa : زېږېدنه او زده کړه، زېږون او تعلیم، ( پا ) تولد و تعلیم، تولد و تحصیل،

**زولاندي** zu-lặnde : ترستم لاندې، ( پا ) ستمکش، ستمدیده، ( عر ) مظلوم .

**زومبك بمونه** zumbák-bamúna : وړین یا وړیز بمونه، ( پا ) بمب های خوشه یی، ( ان ) cluster bombs

**زومنه** zómna : زېمنه ( ناکره )، انډی، بنوروا، ( پا ) شوربا، آشامه، آبگوشت، سوپ، ( ان ) soup, broth

**زون** zaw-án : زولن، زوي لرونکی، زوي کوونکی، ( پا ) ریمناك، ریم آلود .

**زونی** zowa-náy : د زوی اړوند، دزوی متعلق، ( پا ) پسرانه، فرزندانه .

**زوی نیو** zoy-níw : دینی زوی، ( پا ) پسر خوانده، فرزندی، ( ان ) adopted son

**زهرجن** zahar-ǰán : زهرژلی، ( پا ) زهر آلود، زهر آگین، زهردار، سمی، ( ار ) زهریلا ،

**زهر خندا ،** záhar-xandā́ : خندي، ملنډې، ترخه خندا، ( پا ) زهر خند، پوزخند، نیشخند، ( ار ) رشخند، تمسخر، ( ان ) snicker,sneer

**زهر خور** záhar-xór : لوچك، بدماش، ( پا ) عیاش و فحاشی، خوشگذران.

**زهر ژلی** zahar-žálay : زهر جن، زهر لړلی، گنډېرن، ( پا ) زهر آگین، زهر آلود، سمی.

**زهر شیندنه** zahar-šind-ána : زهر پاشنه، زهر پاشي، ( پا ) زهر پراگنی.

**زهر مړی** záhar-maṛ-ay : په زهرو مړشوی ( وژل شوی )، زار مړی، ( پا ) مرده بازهر ( عر ) مسموم.

**زهروب** zahr-ób : د زهرو اوبه، ( پا ) زهرابه، ( ان ) toxin

**زهیر مه شه!** zahir-máša : مهربانه شه! مهرباني ( وکړه )! ( پا ) دست تان درد نکند! ( عر ) لطفاً! تفضل! ( ان ) please!

**زې** ze : ز، د پښتو آبېڅې پنځلسم توری، ( پا ) زاء ( ز ).

**زیاتره** zyāt-ára : ( پا ) زیادتر ، بیشتر ، بیشترینه ، ( ار ) اکثر .

**زیات نه زیات** zyắt-na-zyắt : زیاترین ، تر ټولو زیات ، ډېر نه ډېر ، ډېر ترین ، ( پا ) بیشترینه ، اعظمی .

**زیاتون** zyāt-ún : زیاتوب ، زیاتوالی ، ډېروالی ، ( پا ) فزونی ، آفزایش ، ( ار ) اضافه ، ( عر ) تزئید ، اضافت .

**زیاتېدن** zyāt-ed-án : زیاتون ، ( پا ) آفزایش ( آوا شناسی ) ، ( ان ) addition

**زیارکښ** zyār-káṣ : زیارن ، زیارمن ، متیال ، خواریکښ ، زیارایستونکی ، ( پا ) زحمتکش ، ( ار ) محنت کش .

**زیار کښي** zyār-kaṣ-ī : خواریکښي ، زیار و زحمت ، ( پا ) سختکوشی ، رنجبری ، زحمتکشی ، پشتکار .

**زیار مل** zyār-mál : زیارن ، زیارمن ، زیار دوست ، ( پا ) طرفدار کوشش و زحمت ، کوشش دوست .

**زیارمن** zyār-mán : زیارن ، زیارکښ ، ( پا ) زحمت کش ، کوشا ، کوشان ، کوششی .

**زیارن** zyār-án : زیارکښ ، خواریکښ ، ( پا ) زحمت کش ، کوشان ، ( ار ) محنت کش .

**زیار و زوك** zyár-o-zúk : زیارو زحمت ، هاندو هڅه ،

ماندوزیار ، ( پا ) سعی و کوشش ، سعی و تلاش ، محنت و زحمت .

**زیر و بمي خج** zɨr-o-bam-í-xaǰ : مغه خج ( فشار ) چې زیر و بم ترې پیداکېږي ، ( پا ) تکیهٔ زیر و بمی ، ( ان ) accent stress

**زېر زوري** zer-zwar-i : زېراو زور یا ټکی لرونکی ( توری ) ، ( پا ) نشانه ( حرف ) زیر و زبری ، ( ان ) diacritic

**زېرمتون** zerma-tún : لوی زېرمځی ( تحویلخانه ) ، د افغان دفاع وزارت لوجستیك ریاست ، ( پا ) ریاست خوار و بار وزارت دفاع افغانستان ، ذخیره گاه

**زېرمه ټولی** zerm-ṭól-ay : زېرمه ( ثروت ) ټولوونکی ، ( پا ) ثروت اندوز .

**زېرمه ټولي** zerma-ṭol-í : زېرمه ټولونه ، ( پا ) ثروت اندوزی .

**زېرمه ( يي )** zér-ma(yí) : سپمولی ، سپمايي ، ( پا ) ذخیروی ، ( ار ) کفایت شعارانه ، ( ان ) economical austere

**زېرمه سات** zerma-sất : زیرمه ساتونکی ؛ د لوجستیك پلټونکی ( معاینه کار ) ،

**زېرمه کار** zerma-kấr : وټندوی ، زېرمه وال ، سپماگر ، پانگوال ، ( پا ) صرفجو ؛ سرمایه دار ، سرمایه کار .

**زېرمه وال** zerma-wā́l : زېرموال ، د لوجيستيك رئيس ، د زېرمې خاوند ؛ ( پا ) تحويلدار ، صاحب ذخيره ؛ رئيس لوژستيك ( افغانستان ) .

**زير و بمي** zə́r-o-bam-í : زېر و بم ، لوړ و ځوړ ، ختون و كېوتون ، ( پا ) زير و بمی ( در جمله ) .

**زېريگر** zeri-gár : زېري گرندی ، ( پا ) مژده رسان ، ( عر ) مبشر ، بشير .

**زېړ ځپلی** zéṛ-japálay : زېړ ځبېښلی ، زيړ و رنځور ، رنځور غاړی ، خوار و زار ، ( پا ) زرد و لاغر ، خوار و زار ، خوار و خسته .

**زېړزبېښلی** zéṛ-zbeṣ-ál-ay : زير و رنځور ، زېړ ( ژړ ) او رنځېدلی ، زېړ ځپلی ، ( پا ) زرد و لاغر ، خوار و زار ، خوار و خسته .

**زېړی تبه** zeṛ-áy-tába : ژيړی تبه ، ژړه تبه ، ( پا ) تب ملريا ، تب زرد ، ( ان ) yellow fever

**زېږ( د )** zeẓ(-d) : زېږېدنه ، زېږونه ، زېږدا ، ( پا ) زايش ، ( عر ) تولد ، توليد ، ( ان ) birth; articulation

**زېږاړيكي** zeẓ-aṛikí : توليدي مناسبات ، ( پا ) مناسبات توليدی .

**زېږ تالو** ziẓ́-tālú : د نرم تالو بر، کلك تالو ( و توځی )، ( پا ) کام سخت ( مخرج )، ( ان ) hard palate

**زېږ تالوییز** ziẓ-tālu-yíz : کلك تالوییز، په کلك تالو ادا کېدونکی غږ، ( پا ) آوای که در قسمت کام سخت ادا میگردد، ( ان ) alveolo-palatal

**زېږ توګه** zeẓ-tóga : زېږ ډول، تولیدی ډول، ( پا ) شیوهٔ تولید .

**زېږ ځواك** zeẓ-jwā́k : تولیدی ځواك، ( پا ) قوهٔ تولید، قوهٔ مولد ( ج : زېږ ځواکونه ـ قوای مولده ) .

**زېږ ځی** zeẓ-jáy : زېږنځی، زېږ ځای، زېږون ځای، د زېږېدنې ځای، ( پا ) زادگاه، محل تولد جای تولد، جایگاه تولید ( آوا شناسی )، ( عر ) مولد، ( ان ) birthplace, place of articulation

**زېږد** zeẓ-d : زېږېدنه، زېږ، زېږندويي، پنځون، پنځونه، پیدایښت، ( پا ) زایش؛ آفرینش، ایجاد گری، ( عر ) تولید؛ تولید؛ تخلیق، ایجاد .

**زېږد ځی** zeẓd-jáy : د غږ زېږ ځی، د غږ د وینګ یا پیدایښت ځای، هماغه ځای چې د غږیزو غړو په نا خوځندو برخو اړه لري، ( پا ) بخش هایې از اعضای صوتی که در هنگام

تولید صوت ارتجاعیت و حرکت کم داشته باشد. ( ان) place of articulation

**زېږدي** zeẓd-i : ( پا ) میلادی. ( ان) (of) the christian era

**زېږدي نېټه** zeẓd-í-neṭá : ( پا ) تاریخ میلادی ( عیسوی )، ( ان) the christian era

**زېږ ډول** zeẓ-ḍáwal : غږ زېږ ډول، د یوه غږ د تولید یا پیدایښت ډول، وینګ ډول، ( پا ) شیوه یا طرز تولید یك آوا ( صوت )، شیوهٔ تولید، ( ان) manner of articulation

**زېږږی** zeẓ-áṛ-ay : زږږی، زېږنده، زېږېدونکی، زېږېدلی، ( پا ) زاده، زاینده.

**زېږښت** zeẓ-áṣ̌t : زېږ، پیدایښت، ( پا ) زایش، فر آوری، فر آورده، ( عر ) تولید، مولود، ( ان) prodaction,producing, product

**زيږ غاړی** ziẓ-ǰáṛ-ay : زیږګړدوی، ( پا ) با لحن شدید، ( عر ) شدیداللحن.

**زېږ غړي** zeẓ-ɣáṛi : غږ زېږ غړي، ژبني غړي، وینا غړي، ( پا ) اندامهای تولید، اندامهای واکساز، ( ان) organs of articulation, phonatory organs

**زېږ کاليزه** zeẓ-kāl-íza : د زېږېدنې کاليزه، زېږدې کاليزه، ( پا ) سالگرد تولد .

**زېږنتون** zeẓ-an-tún : د زېږېدنې ( لنگوال ) ځاى، ( پا ) زايشگاه، ( ان ) maternity hospital

**زېږند** zéẓ-and : زېږندوى، زېږونکى، زېږوونکى، ( پا ) زايشى، زاينده، توليد کننده، ايجاد گر ( عر ) مولد، خلاق .

**زېږندويانه** zeẓ-andoy-āná : ( پا ) ايجاد گرانه، آفرينشگرانه .

**زېږنى** zeẓ-an-áy : زېږدې، د زېږ ( تولد، توليد ) اړوند، ( پا ) زايشى، تولدى، توليدى .

**زېږ نېټه** zeẓ-neṭá : د زوکړې نېټه، د زېږېدنې نېټه، د زېږون نېټه، ( پا ) تاريخ تولد، زاد روز، ( ان ) birthday, date of birth

**زيلانځ** zi-lā̃n-j : زيلان، گېنى، خوږ ځان، ( پا ) زهدان، ( عر ) رحم، ( ار ) بچه دانى، ( ان ) womb, uterus, utricle

**زين ساز** zin-sā̃z : زينگر، ( پا ) زين ساز .

# (ژ)

**ژاميز** žām-íz : د ژامې اړوند ، د ژامې په مرسته ادا کيدونکی اواز ( فونيم ) ، ( پا ) ارواره يی ، الاشه يی .

**ژباتلس** žab-atlás : ژبنی اتلس ، د ژبپوهنې اتلس ، ( پا ) اتلس زبانشناسی ، ( ان ) the atlas of linguistics

**ژباد بپوهنه** žáb-adab-pohána : د ژبپوهنې مغه څانگه چې زاړه ( لرغوني ) ادبي متون تر ژبنی څېړنې لاندې نيسي ، ( عر ) فقه اللغته ، ( ان ) philology

**ژباړن** žbāṛ-án : ژباړونکی ، ژباړون ، ( پا ) برگردانننده ، ( عر ) مترجم ؛ ترجمان ، ( ان ) translator, interpreter

**ژباړه** žbā̆ṛa : ژب اړونه ، رااړونه ، ( پا ) بر گردان ، ( عر ) ترجمه ، ( ان ) translation

**ژباړيکي** žáb-aṛikí : ژبني اړيکي ، ( پا ) وابستگی زبانی ، 2( ان ) linguistic relations

**ژب اوښتون** žab-awuṣt-ún : ژبونج ، ژببدلون ، لساني

، بدلون، ( پا ) دیگر گونی زبان، ( جر ) sprachwandel ، ( ان ) linguistic change

**ژببرید** žab-bríd : ژبنی برید ( سرحد )، ( پا ) مرز زبانی، ( ار ) لسانی سرحد، ( ان ) language boundary

**ژببندیز** žab-band-íz : ( د اقلیت ) پر ژبه لگیدلی بندیز، ( پا ) زبان بندی، قیود زبانی، ( ان ) language barrierre

**ژبپانگه** žab-pănga : ویي لیکلړ، ویي پانگه، لغوي زېرمه؛ لیکلي اثار ( ذخیره )، ( پا ) واژه نامه، واژه گان؛ آثار کتبی، ( ار ) ذخیره الفاظ، ( ان ) vocabulary

**ژبپرتله** žab-partalá : ژبنۍ پرتله، د دو ويا څو ژبو پرتله ( مقایسه، مقابله )، ( پا ) مقایسهٔ زبانی، ( ان ) linguistic comparison

**ژبپردیوالی** žab-pradi-wắl-ay : له ژبې څخه پردیوالی؛ ژبپردیکېدنګ، ژبه پردۍ کېدل، ( پا ) بیگانه شدن از زبان؛ بیگانه شدن زبان، ( ار ) لسانی اجنبیت .

**ژبپرمختیا** žab-par-max-tyă : د ژبې پرمختیا، ژبنۍ پرمختیا، ( پا ) انکشاف زبان، ( ار ) ترقی زبان، ( ان ) language development

**ژبپوروونه** žab-por-aw-ána : د ژبې راپوروونه ( قرضونه )، ( پا ) عاریه گیری زبان، ( ار ) لسانی قرض .

**ژبپوهنه** žab-poh-ána : ( ناکره ) ژبپوهه، ژبپېژندنه، د ژبې علم، ( پا ) زبانشناسی، دانش زبان، ( ان ) linguistics

**ژبپوهاند** žab-poh-ánd : ژبپوه، د ژبپوهنې ماهر، ( پا ) زبانشناس، ( ار ) ماهر لسانیات، ( ان ) linguist

**ژبپوهنیز** žab-pohan-íz : د ژبپوهنې اړوند ( متعلق )، ( پا ) مربوط و منسوب، زبانشناسی، زبانشناختی، ( ار ) لسانیاتی، ( ان ) linguistic

**ژبپوهنیزه ځمکپوهنه**

žab-pohan-íza-zmak-pohána : ژبپوهنیزه جغرافیا، ژبنی جغرافیا، ( پا ) جغرافیای زبانشناختی، ( ان ) linguistic geography

**ژبپوهنیز دود** žab-pohan-íz-dod : د ژبپوهنې دود ( قاعده )، ژبدود، ( پا ) قاعدهٔ زبانی، ( ان ) linguistic rule

**ژبپېر** žab-pér : ژبنی پېر ( دور، دوره )، ( ار ) لسانی دور، ( پا ) دورهٔ ( تاریخی ) یك زبان، ( ان ) language period

**ژبپېژاند** žab-pež-ánd : د ژبپوهنې ماهر او څېړونکی،

( پا ) پژوهشگریا متخصص زبانشناسی ، ( ان ) linguistician

**ژبټاپو** žab-ṭapú : ژبنی ټاپو ، ( پا ) جزیرهٔ زبانی ، ( ار ) لسانی جزیره ، ( ان ) speech-island, isolate dialect

**ژبټولنپوهنه** žab-ṭolan-poháná : ژبنی ټولنپوهنه ، د ژبپوهنې هغه څانگه چې په ټولنپوهنه اړه لري ، ( پا ) جامعه شناسی زبانی ، ( ار ) سماجی لسانیات ، لسانی سماجیات ، ( ان ) socio-linguistics

**ژبټولنه** žab-ṭolána : ژبنۍ ټولنه ؛ په یوه ژبه غږېدونکې ټولنه ، ( پا ) جامعهٔ زبانی ، ( ان ) speech-community

**ژبځېل** žab-jél : ژبنی ټیپ ( ټایپ ) ، ( پا ) نوع زبان ، لسانی ټائپ ( نوع ) ، ( ان ) language type

**ژبځېلپوهه** žab-jel-póha : ژبنی ډلبندي ، ( پا ) دسته بندی زبانها ، ( ار ) لسانی درجه بندی ، ( ان ) linguistic typology

**ژبځټ** žab-cát : ژبشا ، د ژبې شا یا څټ ، ( پا ) پشت زبان ، پس زبان ، عقب زبان ( زبانشناسی ) .

**ژب څټيز** žab-cat-íz : د ژبې پرشا ادا کېدونکی غږ (sonnd) ، ( پا ) پشت زبانی ، پس زبانی ( آوا ) ، ( ار ) پشت زبان آواز .

**ژبڅوك ـ اووريز** žab-cuk-owr-íz : مغه غږ چې په اوورېو باندې د ژبې د څوکې په لگېدو سره ويل کېږي، ( پا ) نوك زبانى ـ لثوى. ( ان ) alveolar

**ژبڅوکه** žab-cúka : د ژبې سر، ( پا ) نوك زبان، تيغهٔ زبان، سر زبان، ( مخرج ).

**ژبڅوکيز** žab-cuk-íz : د ژبې په سر ( څوکه ) ادا کيدونکى غږ، ( پا ) نوك زبانى، ( ان ) apical

**ژبڅېړونکى** žab-ceṛ-únkay : د ژبې يا ژبپوهنې څېړونکى ( محقق )، ( پا ) پژوهشگر زبان، زبان پژوه، ( ار ) لسانى محقق، ( ان ) language researcher

**ژبڅېړنه** žab-ceṛána : ژبنۍ څېړنه، ( پا ) پژوهش زبانى، ( ار ) لسانى تحقيق، ( ان ) research of the language

**ژبخپلوي** žab-xpal-wí : ژبنۍ خپلوي، ( پا ) خويشاوندى زبانى، ( ار ) لسانى رشته ( تعلق )، ( ان ) linguistic relationship

**ژبدود** žab-dód : د ژبې قاعده، ژبنۍ قاعده، ژبپوهنيز دود، ( پا ) قاعده زبانى، ( ار ) لسانى قاعده، ( ان ) rule (regularity) of language

**ژبدویونه** žab-doy-úna : ژبني قوانین ( قاعدې )، ( پا ) قانونهای زبانی، ( ار ) لسانی قوانین، ( ان ) linguistic rules

**ژبډګرالواك** žáb-ḍagar-alwắk : ( پا ) نظریهٔ میدان زبانی، ( ار ) نظریهٔ لسانی میدان، ( ان ) lingnistic fietd theory

**ژبډګرونه** žab-ḍagar-úna : یوه ژبنۍ نومونه ( اصطلاح )، ( پا ) میدانهای زبانی، ( ان ) linguistic areas

**ژبډله** žab-ḍála : ژبنۍ ډله، ( پا ) گروه زبانی، ( لسانی گروه، ( ان ) linguistic group

**ژبرغاونه** žab-raǧaw-ána : ژبنۍ رغاونه ( جوړښت )، ( پا ) ساختمان یا ساختار زبانی، ( ار ) لسانی بناوټ، ( ان ) language structure

**ژبزده کړوځی** žab-zda-kṛo-jay : د ژبې د زده کولو کورس، ( پا ) کورس زبان، ( ار ) لسانی کورس، ( ان ) language course

**ژبزده کړه** žab-zdá-kṛa : د ژبې زده کړه، ( پا ) زبان آموزي.

**ژبزده کړی** žab-zdá-kṛ-ay : د ژبې زده کوونکی

( شاگرد )، ( پا ) زبان آموز ، شاگرد زبان آموزی .

**ژبساپوهنه** žab-sa-poh-ana : ژباروپوهنه ، رواني ژبپوهنه ، ژبنی ساپوهنه ( سایکالوجي )، ( ار ) نفسیاتی ، لسانیات ، ( پا ) روانشناسی زبانی ، ( ان ) psycho-linguistics

**ژبسپړنه** žab-spaṛ-ana : د ژبې سپړنه ( تشریح )، ( پا ) تشریح زبانی ، شرح زبانی ، توصیف زبانی ، ( ار ) لسانی تشریح ، ( ان ) language description

**ژبسپما** žab-spama : ژبنۍ سپما ( اقتصاد )، ( پا ) صرفه جویی زبانی ، ( ان ) linguistic economy

**ژبسپېڅاند** žab-spec-and : د ژبې سپېڅلوونکی ( د نورو ژبو له اغېزو )، ( پا ) تصفیه کننده زبان ، ( ان ) purist

**ژبسپېڅلتیا** žab-specal-tya : د ژبې سپېڅلتیا ، ژبنۍ سپېڅلتیا ، ژبسوچوالی ، ژبنی نږه والی ( پا ) تصفیهٔ زبانی ، ( ار ) لسانی صفائی ، ( ان ) purism

**ژبشننه** žab-šan-ana : د ژبې شننه ( تحلیل ، تجزیه )، ( پا ) تحلیل زبانی ، تجزیه ، زبانی ، ( ار ) لسانی تجزیه ، ( ان ) linguintic analysis

**ژبښود** žab-ṣod : د ژبې لارښود ، ( پا ) رهنمای زبان

( آموزی)، خود آموز زبان، ( ار ) رهنمائے لسان، ( ان )
self-teaching of the language

**ژبښوونکی** žab-ṣow-únkay : د ژبې ښوونکی، ( پا )
معلم زبان، آموزگار زبان، ( ان ) language-master

**ژبښوونه** žab-ṣow-ána : ( ناکره ) ژب ښودنه،
ژبلوست، د ژبې تدريس، ( پا ) تدريس زبان.

**ژبغړاند** žab-ɣaṛ-ánd : تړن، تړتړی، تړژبی، ( پا )
تتله، ( عر ) الكن، ( ان ) stutterer

**ژبغړاندي** žab-ɣaṛ-ánd-i : تړنتوب، ژب بندښت، ( پا )
تتله گی ( عر ) لکنت.

**ژبغونډال** žab-ɣonḍ-ál : ژبنی غونډال ( سيستم )، ( پا )
دستگاه زبانی، سستم زبانی، ( ار ) لسان نظام، ( ان )
language system

**ژبفلسفه** žab-falsafa : ژبپلسپه، فلسفه، ( پا ) فلسفهٔ
زبانی، ( ار ) لسانی فلسفه، فلسفه لسانيات، ( ان )
philosophical linguistics

**ژبکهول** žab-kahul : ژبنی کورنی، د ژبو کورنی، ( پا )
خانوادهٔ زبانی، خانوادهٔ زبانها، ( ار ) لسانی خاندان، ( ان )
family of languages

**ژبگوزن** žab-guzán : د ژبې گوزن ( پا ) فلج زبان، ( ار ) لسانی فالج، ( ان) glossoplegia

**ژبلوړه** žab-lwáṛa : د ژبې لوړتيا، ( ان) tongue height

**ژبلوست** žab-lwást : د ژبې تدريس، د ژبې درس، د ژبې مطالعه يا قرائت، ( پا ) تدريس زبان، درس زبان؛ قرائت ( زبان)، ( ار ) لسانی تدريس؛ لسانی مطالعه، ( ان) teaching-learning of language

**ژبمړينه** žab-mṛína : د ژبې مړينه، د ژبې مرگ، ( پا ) مرگ زبان، مرگ زبانی، ( ان) death of language

**ژبمنځ** žab-mánj : د ژبې منځ، ( پا ) ميان زبان، ( ان) center of tongue

**ژبمنځی** žab-manjáy : د ژبې منځی ( مرکز )، ( پا ) مرکز ( آموزش ) زبان، ( ار ) لسانی مرکز، ( ان) speech-centre, language centre

**ژبن** žab-án : ژمن، ( پا ) وعده دار، تعهد کننده، ضمانت کننده ( عر ) متعهد، ضامن.

**ژبنښه** žab-náṣa : ژبنی سمبول ( علامت )، ( پا ) علامهٔ زبانی، نشانهٔ زبانی، سمبول زبانی، ( ار ) لسانی علامت ( ان)

language symbol

**ژب ننګېرنه** žab-nanger-ana : ژبنۍ ننګېرنه ( احساس )، ( پا ) احساس زبانی ، ( ار ) لسانی احساس ، ( جر ) sprachgefühl ، ( ان ) feeling for a language

**ژبنی** žab-an-ay : د ژبې اړوند ، ژبیز ، ( پا ) زبانی ، لسانی .

**ژبنی اتلس** žab-anay-atlas : ژباتلس ، د ژبې اتلس ، د ژبپوهنې اتلس چې د یوې ژبې اړوندې سیمې ( علاقې ) له ژبنیو تحولاتو سره پکې ښوول کېږي ، ( پا ) اتلس زبانشناسی ، ( ان ) linguistic atlas

**ژبنۍ بڼه** žab-anay-baṇa : ژببڼه ، ژبنۍ جوله ( شکل )، مانا لرونکی ژبنی توك ، ( پا ) شکل زبانی ، عنصر با معنای زبان ، ( ان ) linguistic form

**ژبنۍ جغرافیا** žab-anay-joγrafiā : خمکژ بپوهنه ، جغرافیایي ژبپوهنه ، ( ار ) لسانی جغرافیه ، ( ان ) linguistic geography

**ژبني غړي** žab-an-í-γaṛi : د ژبې غړیزغړي ، زېږنده ( مولده ) غړي ، ژبني غړي ، وینا غړي ، ( پا ) اعضای صوتی ، اندامهای تولید ( گفتار )، ( ار ) لسانی اعضاء ، صوتی اعضاء ،

organs of articulation, organs of speech ( ان )

**ژبنى كورنى** žab-a-náy-kor-a-náy : ژبكهول ، د ژبو كورنى ، ( پا ) خانوادۀ زبانى ، خانوادۀ زبانها ، ( ار ) لسانى خانواده ، ( ان ) family of languages

**ژبنى لږه كى** žab-nay-lażak-áý : ژبنى لږښت ، ژبنى لږواله ( پا ) اقليت زبانى ، ( ار ) لسانى اقليت ، ( ان ) linguistic minority

**ژبور** žab-a-wár : خولور ، جرلوځ ، وېند ، وېندوى ، وياند ، د ښې او روانې ژبې څښتن ، ( پا ) فصيح و بليغ ، روان ، غرا ( ان ) eloquent, fluent, glibl, clear language

**ژبورتيا** žab-awar-tyā́ : ژبوروالى ، خولورتيا ، خبر لوځي ، ( پا ) زبان آورى ، سخنورى ، فصاحت زبانى ، ( ان ) eloguence, fluency

**ژبوړتيا** žab-waṛ-tyā́ : ژبنى وړتيا ( قابليت ) ، ( پا ) قابليت زبانى ، ( ار ) لسانى قابليت ، زبانى قابليت ، صلاحيت ، ( ان ) language ablity

**ژبوګړپوهنه** žáb-wagaṛ-poháṇa : د ژبپوهنې او وګړپوهنې ګډه پوهنه ( مشترك علم ) ، ( پا ) بشر شناسى زبانى ( ار ) نسلى سانيات ، ( ان ) ethno-linguistics

**ژبونج** žab-wánǰ : ژببدلون ، ژب اوښتون ، ( پا ) دیگر گونی زبان ، ( ار ) تبدیل زبان ، ( جر ) sprachwandêl ، ( ان ) change of language

**ژبوهنه** žab-wahána : شمېر وهنه ، ( پا ) ضرب ( زبانی ) ، ( ان ) multiplication

**ژبیز** žab-íz : ژبنی ، د ژبې اړوند ، ( پا ) زبانی ، لسانی ( یو ژبیز ، دوه ژبیز ... سیند : قاموس یك زبانه ، دو زبانه ... ) .

**ژب یوون** žab-yaw-ún : ژبنی یوون ( واحد ) ، ( پا ) واحد زبانی ، لسانی یونټ ، ( ان ) lingnguistic-unit

**ژبی ییز** žabay-yíz : نرم تالوییز ، د ( وړې ) ژبې اړوند ، یا د ژبې په مرسته ادا کېدونکی اواز ، ( پا ) نرمکامی ، ملازی ، مربوط زبان کوچك ، ( کوچوکك ) ، ( ان ) uvular

**ژرباوری** žar-bawar-ay : ژر باور ( یقین ) کوونکی ؛ ساده ، ( ار ) سریع الاعتقاد ، ( پا ) زود باور ، ساده دل .

**ژر باوري** žar-bawar-í : ژر باورونه ؛ ساده گی ، ( پا ) زود باوری ؛ ساده گی ، ساده دلی ، ( ار ) سریع الاعتقادی .

**ژر پرغزی** žar-parǰáj-ay : ژرقهرېدونکی ، ژرپاری ( پا ) زود خشم ، زود غضب ، ( ار ) گرم مزاج ، ( ان ) quick-tempered

**ژرپوخی** žar-pȯx-ay : ژرپخېدونکی، ژر رسی، ( میوه، خوراکي څیزونه)، ( پا ) زود پخت، زود رس .

**ژرپوهی** žar-pȯh-ay : ژر پوهېدونکی، تېزذهنی، ( پا ) زود فهم، تېز ذهن، تیز فهم .

**ژرتېری** žar-tėr-ay : ژرتېر، ژرتېرېدونکی، ( پا ) زود گذر، فانی .

**ژرځوابی** žar-jwa̅b-ay : حاضر ځوابه ( جوابه )؛ غوځ ځوابی، ( پا ) حاضر جواب، زود جواب؛ با جواب قاطع .

**ژر ځوابي** žar-jwa̅b-í : حاضر ځوابي؛ غوځ خوابي، لنډ ځوابی، ( پا ) حاضر جوابی، قاطع جوابی .

**ژر رسی** žar-ras-ay : ژر رسېدونکی ( د مېوې او وخت په اړه )، ( پا ) زود رس ( میوه و امثال آن ) .

**ژر سهی** žar-sah-ay : ژر ( زر ) هضمی، ( پا ) زود هضم، ( عر ) سریع الهضم .

**ژر موندی** žar-mund-ay : ژر موندل ( میندل ) کېدونکی، ژر لاسته راتلونکی، ( پا ) زود یاب، ( عر ) سهل الحصول، ( ان ) easily obtained, easily found

**ژرنده ـ جومات** žranda-ǰuma̅t : ژرنده او جومات ( سره نه توپیرول، ښه اوبدسره یو راز گڼل )، ( پا ) آسیاب و

مسجد ، کنایه از زشت و زیبا .

**ژرندې غاښ** žrande-ğāṣ : د ژامې غاښ یا غاښونه ، ( پا ) دندانهای آسیاب ، دندانهای طواحن .

**ژر هڅی** žar-hac-ay : ژر بریدی ، ژر اقدامی ، ( پا ) زود اقدام ، سریع الاقدام .

**ژرییبری** žar-yebr-ay : ژر حاصلی ، ( پا ) زود بار ، زود حاصل ، ( عر ) سریع الثمر .

**ژغور** žğor : ژغورنه ، ژغورون ، ژغورا ، ژغورتیا ، خلاصی ، ( پا ) رهایی ، ( عر ) نجات .

**ژغوراند** žğor-ānd : ژغورند ، ژغورندوی ، ژغوری ، ( پا ) رهاییبخش ، نجاتبخش ، نجات دهنده ، ( عر ) ناجی ، منجی .

**ژغور بېړی** žğor-beṛay : د ژغور ( ژغورنې ) بېړی ( کښتی ) ، ( پا ) کشتی نجات ، کشتی رهایی ، سفینهٔ نجات ، ( ان ) lifeboat

**ژغورتیایي** žğor-tyā-yī : د ژغور یا ژغورتیا ( نجات ) اړوند ، ژغورنده ، ( پا ) نجات بخش ، رهایی بخش .

**ژغور چارې** žğor-čāre : د ژغورنې چارې ، ژغورتیایي چارې ( کارونه ) ، ( پا ) فعالیتهای نجات .

**ژغور ځای** žğor-jāy : ژغورځی ، پنا ځای ، ( پا ) جای

نجات ، پناه گاه .

**ژغورځی** žǥor-jáy : ---> ژغور ځای .

**ژغورخپلخوښی** žǥór-xpal-xwaṣ-áy : ( پا ) رضا کار نجات .

**ژغور ډله** žǥor-ḍála : د ژغور ټیم ، ( پا ) تیم نجات ، ( ان ) rescue party

**ژغور گاډی** žǥor-gā́ḍay : ایمبولانس ، امبولانس ، ( پا ) امبولانس ( ان ) ambulance

**ژغورنگر** žǥor-langár : د ژغورنې لپاره بنگر ( اچول ) ، ( پا ) لنگر برای نجات ، ( ان ) sheet-anchor

**ژغور ملاوستنی** žǥór-mlāwastánay : د ژغور ( نجات ) کمر بند ، ( پا ) کمر بند یا حلقهٔ نجات ، ( ان ) lifebell, lifebuoy

**ژغورند** žǥór-and : ژغورنده ، ژغوری ، ژغورونکی ، ( پا ) نجات دهنده ، رهاینده .

**ژغورندوی** žǥor-and-óy : ژغورند ، ژغوراند ، ژغوری ، ژغورونکی ، ( پا ) نجاتبخش ، نجات دهنده ، پیشتیبان ، نگهبان ، ( عر ) ناجی ، منجی .

**ژغورندهٔ غورځنگ** žǥór-anda-ǥorjáng : ( ازادیپال ) غورځنگ

( تحريك )، ( پا ) ( جنبش ) ازادیبخش یا نجاتبخش .

**ژغوروزله** žɣor-wázla : د ژغور وسیله، ( پا ) وسیله یا الهٔ نجات، ( ان ) life-saving equipment

**ژغورهڅه** žɣor-háca : د ژغورلو هڅه ( کوښښ )، ( پا ) تلاش برای نجات، ( ان ) rescue attempt

**ژغوری** žɣór-ay : ږغرونکی، ساتندوی، ملاتړ ملاتړی، پلوي، ( پا ) نگهبان، حمایت کننده، پشتیبان، ( ان ) backer, supporter

**ژغی** žaɣáy : تسکره، د ناروغ د لېږد ( انتقال ) تخته، ( پا ) تسکره، ( ان ) stretcher

**ژمگوری** žam-gór-ay : ژنگوره، د ژمي استوګنځی، ( پا ) ایلاق، اقامتگاه زمستانی، ( عر ) شتایه، ( ار ) سرمائی مکان،

**ژمن** žman : وعده دار؛ پازوال، ذمه وار، ( پا ) وعده دار؛ تعهد کننده، تضمین کننده ( ضامن )، ( ار ) ضمنی .

**ژمنتیا** žman-tyá : ژمنواله، ژمنه، ( پا ) تعهد، تضمین .

ژمنځای žman-jáy : وعده ځای، د ژمنې ځای، ( پا ) وعده گاه، میعادگاه، ( ان ) rendezvous

**ژمنلیك** žman-lík : ضمانت لیك ، ( پا ) ضمانت نامه ، ( ان ) surety bond, guaranty

**ژمنماتی** žman-mắt-ay : ژمنه ( وعده ) ماتوونکی ، بې ژمنې ، بد ژمنی ، ( پا ) وعده شکن ، عهد شکن ، پیمان شکن ، وعده خلاف ، بد قول .

**ژمنماتی** žman-māt-áy : بې ژمنې ، بد ژمنې ، وعده ماتونه ، ( پا ) وعده خلافی ، بد قولی ، پیمان شکنی .

**ژمنی** žamaṅ-áý : ژمگنی ، ( پا ) زمستانی ، ( ار ) سرمائی .

**ژمنه** žmȧna ; ژبه ( کول ) ، پازه ، ( عر ) وعهده ، عهد ، قول ؛ تضمین ، تعهد .

**ژمنه ځای** žmana-jắy : ژمنځای ، د وعدې ځای ، ( پا ) محل وعده ، وعده گاه ، میعادگاه ، ( عر ) میعاد ، ( ان ) rendezvous

**ژمنی خوب** žam-an-áy-xob : د ژویو ژمنی خوب ، ( پا ) زمستانخوابی ، ( ان ) hibernation

**ژندره ساز** žandra-sắz : کولپ جوړوونکی ، ( پا ) قفل ساز ، ( ان ) locksmith

**ژرنده سازي** žandra-sāz-í : کولپ جوړونه ، ( پا ) قفل سازی ، ( ان ) locksmithy, locksmithing

**ژواك** žwāk : ژوند ، ژوندون ؛ مځوب ( کلچر ) ، ( پا ) زنده گی ، زیښت ، زنده گانی ؛ فرهنګ ، کلتور .

**ژوبلور** žobl-awār : جنګیال ، جنګیالی ، جګړیال ؛ سرتېری ، ژوبلوری ، ( پا ) رزمنده رزمجو ، جنګاور ، جنګجو .

**ژوبله وژله** žobla-wažla : مرګ و ژوبله ، ( پا ) کشت و خون ، قتل و جرح .

**ژوبڼ** žo-bāṇ : ځناور باغ ، ځناور کور ، ( پا ) باغ وحش ، ( ار ) چړیاګر ، ( ان ) zoo garden,zoo

**ژو پوهنه** žo-pohāna : د حیواناتو علم ، ( پا ) جانور شناسی ، ( عر ) علم الحیوان ، ( ان ) zoology

**ژور اندی** žawar-ānd-ay : ژورخیاله ، ژور فکری ، ( پا ) ژرف اندیش ، صاحب اندیشهٔ ژرف ( عمیق ) ، ژرف نګر .

**ژور بنسټه** žawar-bansāṭa : ژور ببخی ، ( پا ) ژرف بنیاد ، با پایهٔ ژرف ، دارای پایهٔ های عمیق ، ( ان ) deep-rooted

**ژور خپلواك** žawār-xpal-wāk : تیاره خپلواك ، دستوني خواته ادا کېدونکی خپلواك ( واول ) ، ( پا ) واکهٔ پسین ، ویل پسین ، ( ان ) deep vowel

**ژورمیچ** žawar-meč : د ژورتیا د کچ و مبج اِله

( سامان )، ( پا ) اسفنديل ، مقياس عمق ، ژرفاسنج ، ( ان )
bathometer

**ژور مېچنه** žawar-meč-ána : د ژورتيا د مېچلو ( اندازه کولو ) ځانگه ، ( پا ) ژرفاسنجی ، ( ان ) batho metry

**ژوروين** žawar-wín : ژورليدی ، ځيرك ، ( پا ) ژرف بين ، ژرفنگر ، زيرك ،

**ژوند بخره** žwand-báxra : د ژوند حق ، ( پا ) حق زنده گی ، حق زيست ،

**ژوند پنځپوهه** žwánd-panj-póha : بايوفزيكس ، پنځ ژوند پوهه ، ( پا ) زيست فيزيك ، ( ان ) biophysics

**ژوند پوهاند** žwand-poh-ánd : ژوند پوه ، د ژوند پوهنې ( بيا لوجی ) ماهر ، ( پا ) زيست شناس ، ( ان )
biologist

**ژوند پوهنه** žwand-poh-ána : ژوند پوهه ، ( پا ) زيست شناسی ، بيولوژی ، ( عر ) علم الحيات ، ( ان ) biology

**ژوند پېښې** žwand-péṣe : د خپل ځان ژوند پېښې ، ځانپېښې ، ( پا ) سوانح عمری ، زنده گينامۀ شخصی خود ، ( ان )
autobiography

**ژوند توگه** žwand-tóga : ژوند ېول ، ژوند و ژواك ،

ژواك ، ژوند دود ، ( پا ) زیست و روزگار ، طرز زنده گی ، ( ان ) lifestyle

**ژوند جګړه** žwand-ǰagṛa : د ژوند لپاره جګړه ( جد و جهد ) ، ( پا ) مبارزه برای زنده گی ، ( عر ) تنازع البقاء .

**ژوند چاپېریال** žwand-čaperyāl : چاپېریال ، ( پا ) محیط زیست ، ( ار ) ماحول زند گی ، ( ان ) envirnoment, eco-

**ژوند ځای** žwand-jāy : استوګنځای ، ( پا ) محل زیست ، محل زنده گی .

**ژوند دود** žwand-dod : ژوند توګه ، ژوند ډول ، ( پا ) طرز زیست ، طرز زنده گی ، شیوهٔ زیست ، ( ان ) lift style

**ژوند زیږی** žwand-zeẓ-ay : ژوند زېږوونکی ، ژوند مستوونکی ، ( پا ) زنده گی آفرین ، زنده گی بخش .

**ژوند! ژوند! ژوند!** žwand!žwand!žwand! : د پوځي بولی یا سلام په ځواب کې (یا) در جواب ستړي مشئ ( خوش آمدید ) در اصطلاحات نظامی .

**ژوند ژبپوهنه** žwand-žab-pohana : د ژبپوهنې هغه برخه چې په ژوند پوهنې ( بیالوجی ) اړه لري ، لکه د غږو تولید او اړوند غږي ، ( پا ) زیست شناسی زبانشناسی ، ( ار )

حیاتی لسانیات ، ( ان ) biolinguistics

**ژوند ساز** žwand-sāz : ژوند جوړوونکې ، ژوند سموونکی ، ( پا ) زنده گی ساز .

**ژوند کچه** žwand-kača : د ژوند کچه ( سویه ) ، ( پا ) سویه ( سطح ) زنده گی ، ( ار ) سطح ( معیار ) زندگی ، ( ان ) life standard, life level

**ژوند کیمیا** žwand-kem-yā : کیمایی ژوند پوهنه ، بیو کېمېستري ، ( پا ) بیوشیمی ، زیست شیمي ، ( ان ) biochemy

**ژوند مېچنه** žwand-meč-ana : د ژوند مېچ اخیستنه ، ( پا ) زیست سنجی ، ( ان ) biometry .

**ژوندنی** žwand-an-ay : ژونی ، ( پا ) حیاتی ، مربوط زنده گی ، ( ان ) vital

**ژوندوبه** žwand-oba : ژوندون اوبه ، ( پا ) آب حیات .

**ژوند و چاپېریال** žwand-o-čaperyāl : ژوند او ماحول ( پا ) زیست و محیط ، ( ار ) زندگی اور ماحول ، ( ان ) life and environment

**ژوندو ژواك** žwand-o-žwāk : ژوند توگه ، ( پا ) زیست و روز گار ، روش زنده گی ، ( ان ) life style

**ژوندی ژبه** žwanday-žaba : د یوه هېواد یا ولس د ورځني چال چلند ژبه، او مړه ژبه هغه ده چې ویونکي یې لږ پاتې وي یا هیڅ پاتې نه وي او یا خو له پامه او عام استعماله لویدلې وي، ( پا ) زبان زنده، ( ان ) living language

**ژوندینکه** žwand-i-naka : کوره کی، ( پا ) حجره، سلول، ( ان ) cell

**ژونی** žow-a-nay : د ژویو اړوند ( پا ) جانوری ( عر ) حیوانی،

**ژوه!** žo-wa : ژوندی اوسې! ( پا ) زنده باد!

**ژویال** žo-yāl : د ژویو ( ساکښو ) یو پر بل اړوند نظام؛ ژوند چاپېریال، ( پا ) نظام جانور شناختی؛ محیط زیست، ( ان ) environment: ecosystem

**ژویالپوهنه** žo-yal-poh-ana : د ژوند چاپېریال ( ماحول ) علم، ( پا ) علم مربوط محیط زیست، محیط شناسی ( ان ) ecology

**ژې** že : د ژې توری ( ژ )، د پښتو شپاړسم توری او عږ، ( پا ) ( حرف ) ژای فارسی،

**ژېړ خراغ** žer-cerāǧ : ټرېفیکي ژېړ ( زیړ ) څراغ دویمه مانایې «تمه او انتظار» یا د مثبت و منفيّ دواړو کېدون،

( پا ) چراغ زرد ترافیکی ؛ مجازاً ، توقع و انتظار ، و یا احتمال مثبت و منفی در عین حال ، ( ار ) زرد سگنل .

**ژېړين** žer-ín : ژړین ، له ژیړو ( زېړو ) جوړ ، له پیتلو جوړ ، ( پا ) برنجي ( فلز ) ، ( ان ) brazen, brassy

# ( ږ )

**ږغ** zaẓ : -----> غږ .

**ږغپوهنه** : -----> غږ پوهنه .

**ږغیږ** : -----> غږ یز .

**ږغږیزه الفباء** : -----> ږغیزه آبېڅې .

**ږلی ځپلی** ẓalay-japal-ay : ږلی وهلی ، ( پا ) ژاله زده .

**ږمنځی** ẓmanj-ay : د جولا د تنستې ږمنځ ، ( ربخ ) ، د سر ربځ ( برش ) ، ( پا ) شانهٔ جولا ( بافنده ) .

**ږوی** ẓáway : لووی ، ( پا ) گواه ، ( عر ) شاهد ، ( ان ) witness

**ږې** ẓe : د ږې توری ( ږ ) ، د پښتو آبېڅې ( الفبېټ ) اوولسم توری ، ( پا ) ژای زبان پشتو .

**ږیرخرېلی** zir-xrayál-ay : ږیرگلی ، چچ ، ( پا ) باریش تراشیده ،

**ږیرې ماشین** zíre-mášín : د ږیرې خرینې ماشین ، ( پا ) ماشین ریش ( تراشی ) ، ( ان ) (electric) shaver

# ( س )

**سا اخیستنه** sa-axist-ána : ( پا ) دم فرو بردن،
breathing-in, inspiration ( ان )

**سابنده چوپتیا** sa-bánda-čoptyā : سا بندوونکې
چوپتیا ( چپتیا )، ( پا ) خاموشی نفس گیر، خاموشی ضیق
النفس . ( ان ) suffocating silence

**سابنی** sab-an-áy : سابه والا، سابه ( ساگ ) پلورونکی
( خرڅوونکی )، ( پا ) سبزی فروش، ترکاری فروش .

**سابني** saba-ní : سابه پلور .

**سابنی** sa-banáy : د پښ ( آهنگر ) د پو کولو بنی،
( پا ) دم آهنگر .

**سابه باب** saba-bāb : سوزیانې، ترکودې، ( پا )
سبزیجات، ( ان ) vegetables

**سابه پلور** saba-plór : سابني، سابه خرڅونه، د
سبو پلورلو دوکان ( پا ) ترکاری فروشی، سبزی فروشی .

**سابه پلوری** sába-plór-ay : سابنی.

**سابه کار** sába-kā́r : سابه کاری، سابه کرونکی، د سبو ( ساگو ) کروندگر، ( پا ) سبزیکار.

**سابهیر** sā-bahír : د ساهوابهیر، ( پا ) جریان هوا ( هنگام تنفس )، ( ان ) air-stream

**ساپوهاند** sā-poh-ā́nd : ساپوه، اروا پوهاند، اروا پوه، ( پا ) روانشناس، ( ان ) psychologist

**ساپوهنه** sā-poh-āna : اروا پوهنه، ( پا ) روانشناسی، ( عر ) علم الروح، روحیات، ( ار ) نفسیات، ( ان ) psychology

**ساتم ژبې** sā́tam-žabe : دهندو اروپايي کورنۍ هغه ژبې چې د اوستا sātam ( سل ) په استازی یې «سل» په ( س - ) پیل کېږي ( لکه هندواریاني، بالتو- سلاويك، الباني، ارمني )، په وړاندې یې کېنتوم centum ( سل ) والا ژبې راځي، ( ان ) satem languages

**ساتنمل** sāt-an-mal : د څارندوی ( پولیسو ) کوچنی ترین افسر ( د نظامي د «بریدګي» انډول )، ( پا ) کوچکترین افسر پولیس ( معادل «بریدگی» در نظامی ).

**ساتنمن** sāt-an-man : ترساتنمل پورته د څارندوی

( پوليسو ) افسر ، ( پا ) افسر پوليس بالاتر از ساتنمل ( افغانستان ) .

**ساتنه او څارنه** satána-aw-carána : ( پا ) حفظ و مراقبت ، ( ان ) protection und control

**سادر ملګر** sā́-darmal-gár : ---> سادر ملي .

**سادرملګري** sā́-darmal-gar-í : ( پا ) روان پزشکی ، ( ان ) psychiatry

**سادرملنه** sā-darmal-āna : روحي تداوی ، ( پا ) تداوی روحی ، روان درمانی ، ( ان ) psychotherapy

**سادرملي** sā-darmal-í : رواني درملي ( طبيب ) ، سادرملګر ، ( پا ) روان پزشك ، ( ان ) psychiatrist

**سازښت** sāz-áṣt : جوړښت ؛ جوړ جاړی ، ( پا ) سازش ، مدارا ؛ ساخت و باخت ، ( ان ) agreement; compromise; collusion

**سازښتګرانه** sāz-aṣt-gar-āná : سازښتي ، ( پا ) سازشكارانه ، مصلحت آميزانه .

**سازښتي** sāz-aṣt-ī : ( پا ) سازشكارانه ، سازشی .

**سازمان** sāz-mā́n : ټولنه ، ( پا ) سازمان ، ( ار ) تنظيم ، ( عر ) مؤسسه ، ( ان ) organisation

**سازمانول** sāz-mān-aw-ál : سازمان ورکول، تنظيمول، منظم کول، ( پا ) سازمان دان، سازمان بخشيدن، ( ان ) to organise

**سازنونه** sāz-mān-aw-ána : سازمانونګ، ( پا ) سازماندهی.

**سازماني** sāz-mān-í : د سازمان ( ټولنې ) اړوند، ( پا ) سازمانی.

**سازي** sāz-í : ساز غږوونکی، سازوالا، ( پا ) سازی، ساز زن، سازنده، ( ان ) instrumentalist, musician ( ج : سازيان ).

**ساشننه** sā-šan-ána : ارواشننه، روان شننه، ( پا ) روانکاوی، ( ار ) تحليل نفسی، ( ان ) psychoanalysis

**ساشناند** sā-šan-ā́nd : ساشنونکی، ( پا ) روانکاو، ( ار ) ماهر تحليل نفس، ( ان ) psychoanalyst

**ساکښ** sā-kāṣ : ساوالا، سا اخيستونکی، ( پا ) جاندار، ( عر ) ذيروح.

**( بيا ) ساکښنه** (byā-) sā-kṣ-ána : ( بيا ) سا ايستنه، ( پا ) باز دم، ( ان ) expiration, breathing-out

**سالنډی** sā-lánḍ-ay : هغه چې سالنډي لري، ( عر ) ضيق

النفس ، ( پا ) کسیکه نفس تنگی دارد ، ( ار ) مریض دمه ، ( ان ) asthmatic

**سالنډي** saland-í : سالنډی ، ( پا ) نفس تنگی ، ضیق النفسی ، ( ار ) دمه ، ( ان ) asthma

**سامېچ** sa-meć : د سا او سږو د مېچلواله ، ( پا ) دم سنج ، ( ان ) spirometer

**ساند بولنې** sand-bolane : ساندويي ، ستاينې ، هغه ساندې او ستاينې چې شيعه گان يې په محرم کې بولي ، ( پا ) نوحه خوانيها ، سوزخوانيهای مذهبی ( بويژه در اهل تشيع ) ، ( ار ) منقبتيں ، نوحے ، ( ان ) mournings

**ساندو** sand-u : ساندبول ، ساندې ويونکی ، ژړاند ، ويرکوونکی ، ( پا ) نوحه گر ، مويه گر ، سوزخوان ، ( ان ) hired mourer

**ساوالا** sā-wala : ساکښ ، سا اخيستونکی ، ( پا ) جاندار ، ( عر ) ذيروح ، ذيحيه ،

**ساييز** sa-yiz : هغه غږ چې په وينگ کې يې سابيزوالی راځي، لکه په هندي کنسوننتو ( kh, bh ) کې ، ( پا ) دميده ، ( ان ) aspirate, aspirated

**ساييز غږي** sayíz-ɣaṛi : تنفسي غړي ، ( پا ) اندامهای

تنفسی ، ( ان ) resperatory organs

**ساییز غونډال** sa-yiz-ɣonḍ-al : تنفسي سیستم ، ( پا ) جهاز تنفسی ، دستګاه تنفس ، ( ان ) respiratory system

**ساییزوالی** sa-yiz-wal-ay : تنفسي والی ، ( پا ) دمش ، ( ان ) aspiration (ling.)

**سباوون** saba-wún : سهار ، سبا ، سهار نسبا ، ګهیځ ، وایي ، ( پا ) سحر ګاه ، سحر ګاهان ، بامداد ، بامدادان ، ( ار ) پوپهټے ، ( ان ) dawn

**سپاربښتلیك** spar-aṣt-lík : ( پا ) سفارشنامه ، نامهٔ سفارشی ، ( ان ) recommendation

**سپاربښتي** spar-aṣt-í : د سپاربښت وړ ، ( پا ) سفارشی ، توصیوی .

**سپرلو بېړۍ** sparló-beṛay : سپرلی وړونکې بېړۍ، ( پا ) کشتی مسافربری ، ( ان ) launch, passenger boat

**سپرلی** sparláy : ---> پسرلی .

**سپره لار** spará-lār : د اربه بابو لار ، سړك ، ( پا ) راه موتر رو ، ( ان ) road

**سپړنه** spaṛ-ana : کېندنه ؛ کېنستنه ؛ شننه ، ( پا ) کاوش ،

شرح و بیان ، ( عر ) شرح ، ( ان ) digging; description

**سپړنیزه ژبپوهنه** spaṛan-íza-žab-pohána : تشریحی ژبپوهنه ، ( پا ) زبانشناسی توصیفی ( تشریحی ) ، ( ان ) descriptive linguistics

**سپما** spamā́ : گوټکه ، پاسره ، زېرمه ، ( ار ) بچت ،( پا ) پس انداز ، ( ان ) saving austerity, economy

**سپمايي** spamā-yí : د سپما اړوند ، پاسره يي ، ( پا ) صرفجویانه ، اقتصادی ، مربوط و منسوب پس انداز ، ( ان ) (saving), economising auster,

**سپڼ** spáṇ : ساده غږ ، ( پا ) آوای ساده ، صدای ساده ، صدای حفیف ، ( ان ) a simplesound, phone, tone, low voice

**سپڼسکی** spaṇs-ákay : د هډوکو تر منځ مفصلي پله ، ( پا ) رباط مفاصل ( بین دو استخوان ) ، پیوند ، و تر ، ( ان ) ligament, tendon

**سپڼسین** spaṇs-ín : تارین ، ( پا ) تاری ، نخی ، ( ان ) cotton

**سپور پوځ** spór-pawǯ : سپور لښکر ، ( پا ) سواره

نظام، ( ان ) cavalry

**سپوږمۍ پښتی** spoẓmay-páşt-ay : د سپوږمۍ گرومن ( معتقد )، سپوږمۍ گروهی، ( پا ) ماهپرست، مهپرست، ( ار ) چاند پرست، ( ان ) moon worshipper

**سپوږمۍ تندره** spoẓmay-tándra : سپوږمۍ نیونه، ( پا ) مهتاب گرفته گی، ( عر ) خسوف، ( ان ) lunar eclipse

**سپوږمیز** spoẓm-íz : د سپوږمۍ اړوند، سپوږمنی، ( پا ) مهتابی، قمری، ( ان ) lunar, lunary

**سپوږمیز کال** spoẓm-íz-kāl : شمسي ( هجري ) کال ( سنه )، ( پا ) سال یا سنهٔ قمری ( هجری )، ( ان ) Hejira (Moslem era) computed according to a lunar calendar

**سپوږمۍ مخې** spoẓ-may-máxe : د سپوږمۍ په څېر پیمخې، ښکلې، ( پا ) مهرو، مهوش، ماه پیکر .

**سپوږ وزمه** spoẓ-wázma : سپوږمکی، سپوږمۍ ته ورته، د سپوږمۍ غوندې، ( پا ) ماهواره، قمر مصنوعی، ( ان ) satellite

**سپېڅاند** spec-ănd : پاکساز، پاککاری، ( پا ) پاکساز، ( ار ) خالص پسند، ( ان ) refiner, purist

**سپېڅلځای** specal-jáy : پاك او مقدس ځای ، ( پا ) جای مقدس ، ( سپېڅلځایونه : اماکن مقدسه ) . ( ان ) sacred place

**سپېڅلی** spec-álay : پاك ؛ سوچه ؛ مقدس ، ( پا ) متبرك ، ( ان ) sacred saint, holy

**سپېڅلې نا پوهي** specále-nā-poh-í : سپېڅلی ( مقدس ) جهالت ، ساده ناپوهي ، ( پا ) جهالت مقدس .

**سپېڅلی یووالی** specalay-yaw-wálay : یوه سیاسي نومونه ( اصطلاح ) ، مقدس یو والی ( اتحاد ) ، ( پا ) اتحاد مقدس ، ( ان ) holy alliance

**سپېڅنه** spec-ána : پاککاري ، پاکي ، چاڼونه ، ( پا ) پاك کاری ، پاکسازی ، ( عر ) تصفیه ، نظافت ، ( ار ) صفایی ، ( ار ) خالص پسندی ، ( ان ) clearance refinement, purism

**سپېدې چاود** spede- čáwd : سپیدې ، سپیده داغ ، سباوون ، وایي ، لوایي ، ( پا ) سپیده داغ ، سپیده دم ، سپیده ها ، ( ان ) dawn,daybreak

**سپي لوبه** spi-lóba : سګواني ، سپي جنګونه ، ( پا ) سګ بازی ، ( ان ) dog fight

**سپي لوبی** spi-lób-ay : سګوان ، سپی جنګوونکی ،

( پا ) سگ باز ، ( ان ) dog-fancieer, dog rainer

**سپي لوښی** spi-lóṣ-ay : سپي مخی ، سپك ورك ، ( پا ) سگ صفت ، سگ منش ، سگ سرشت .

**سپي لوښي** spi-loṣ-í : سپيتانه ، سپيتوب ، ( پا ) سگ صفتی ، سگ منشی .

**سپين اندامی** spin-andámay : د سپينو اندامو لرونكی ، ښكلی ، ( پا ) سپيد اندام ، ( ان ) handsome

**سپيناوو** spin-āw-ú : پاككاری ؛ پرېكړه كوونكی ، فيصله كوونكی ، ورمندگر ، ( پا ) فيصله كن داور ؛ تصفيه كننده ، ( عر ) منصف ، حكم ؛ فاصل ، ( ان ) arbiter

**سپيناوی** spin-āw-áy : رڼاوی ، سپينتان ، سپينی ؛ پرېكړه ؛ داوری ، ( عر ) تصفيه ؛ محاسبه ؛ فيصله ، ( ار ) احتساب ؛ سچ پركهته ، ( ان ) settlement, solution

**سپين زر** spin-zar : په دويمه مانا پومبه ، په افغانستان كې د پومبې د شركت ( كمپنی او اړوندو ځانگو او هوټلو نوم ، ( پا ) نقره ، مجازاً پنبه ، شركت مربوط آن با تمام تاسيسات نيز به همين نام ( سپين زر ) ناميده ميشود .

**سپين زرين** spin-zar-ín : له سپينو زرو جوړ ، د سپينو زرو غوندې ، ( پا ) نقره يي ، نقره فام ، نقره گون ، ( ان )

silvery, argentous

**سپین سپېڅلی** spín-specálay : پاك او پاكيزه، ډېر پاك، ( پا ) پاك و صفا، پاك و صاف، خیلی پاك ؛ مبارك .

**سپین کټ** spín-kat : ( پا ) تباشیر، ( ان ) chalk

**سپینکی** spin-káy : پټه دانه، پټه تیکه، ( پا ) رودهٔ پر کرده سختورودهٔ که از ریزگی گوشت پر کرده شده باشد، ساسج، ( تورکی ) دولمه، ( ان ) sausage

**سپین لمی** spin-lám-ay : ( پا ) آس، ( عر ) قاقم، ( ان ) ermine

**سپین نمری** spin-nmáray : سپین کالی، سپین جامه، ( پا ) سفید جامه، سفید پوش، با لباس سفید، ( ان ) wite collard

**سپینه ماڼی** spína-maṇáy : سپینه کوټی، ( د امریکا ) جمهوري ماڼۍ، ( پا ) قصر سفید، کاخ سفید، ( عر ) قصر الابیض، ( ان ) white house

**سپین ورږی** spin-warẓ-ay : هغه آس چې سپین ورږ ( یال ) لري، ( پا ) آسپ سپید یال .

**ستانه** staná : روحاني شخصیت، د برخې خاوند، زبرګ، ( پا ) شخصیت روحانی ؛ روحانیون، بزرگ ، ولی، سادات، ( ان )

holyl, the clergy

**ستایلی** stāy-ál-ay : ستایل شوی، د صفت موصوف ( گریمر )، ( پا ) تعریف شده، وصف شده، ستایش شده، ( عر ) موصوف، متصف، ( ان ) qualified, a word qualified by an adjective

**ستاینلیك** stāyan lík : ( پا ) سپاسنامه، ( ان ) merit-certificate

**ستاینوړ** stāy-an-wáṛ : د ستاینې وړ، ( پا ) درخور ستایش .

**ستاینوم** stāy-núm : صفت نوم ( ژبه )، ( پا ) نام صفت، اسم صفت، ( عر ) صفت، لقب، ( ان ) adjective,predicate, attribute

**ستاینومتړنگ** stāy-núm- taṛáng : توصیفي تړنگ ( ترکیب )، ( پا ) توصیف ترکیبی، ( ان ) attributive compound

**ستای نومیز** stāy-num-íz : د ستاینوم ( صفت اسم ) اړوند، ( پا ) مربوط و منسوب به اسم صفت .

**ستایوال** stāy-wā́l : ستایونکی؛ خطبه ویونکی، ( پا ) ستایشگر؛ خطابه دهنده، ( عر ) مداح؛ خطیب .

**ستایویی** stāy-wāyáy : ستاینوم ، ( پا ) واژهٔ توصیفی ، ( ان ) attribute .

**سترتوب** stār-tób : مشرتوب ، مشري ، اداره ، ریاست ، سروالي ، ( پا ) بزرگی ، کلانی ، اداره ، ریاست ، ( ان ) bigness, administration, presidency, directorate

**ستر جنرال** stār-ǰanrā́l : سپه سالار ، ( پا ) سپه سالار ، ( پا ) سپهبد ، ( ان ) full-general

**ستر چاری** star-čā́r-ay : لوی چاری ؛ شاخمن ( مغرور ) ، ( پا ) بزرگمرد ، کلانکار .

**ستر چاري** star-čār-í : لوی چاري ؛ شاخمني ، ( مغروریت ) ، ( پا ) بزرگمردی ، کلانکاري ، غرور بیجا .

**ستر کوکو** stár-kokó : خوړچ ، سپنېږ ، ( پا ) نسترن .

**سترگ ارتاو** starg-art-ā́w : لیدارتاو ، ( پا ) چشم انداز ، ( ان ) outlook

**سترگبندي** starg-band-í : ګوړې ، کوږګري ، ( پا ) چشمبندی ، شعبده بازی ، ( ان ) jugglery, sleight of hand, juggling

**سترگرپ** starg-ráp : د ستر گورپ ، رپ ، ځمبا ، لنړه شېبه ، ( پا ) چشم بهم زدن ، ( عر ) طرفة العین ، ثانیه ، لمحه .

**سترګليد** starg-líd : سترګلين؛ سترګلينه؛ دستر ګوليد ( ديد )، ( پا ) چشمديد ؛ نګاه؛ نظر بازى؛ ديد چشم .

**سترګلين** starg-lín : سترګلينه الواك ، ليد ( نظر )، ( پا ) ديد ، نګاه ، ( عر ) نظر .

**سترګلينه** starg-lína : بديا شوم نظر ، ( پا ) نظر بازى .

**سترګڼ کوکو** starg-an-koko : نرګس ، ( پا ) نرګس .

**سترګو ليدلي** stargo-lidal-i : څه چې په سترګو ليدل شوي ، ( پا ) چشمديد ، ( ان ) eye-witness

**سترګۍ** stargáy : چشمکې ، چشمې ، عينکې ، ( پا ) عينك ، ( ان ) spectacles, glasses

**سترګۍ والا** stargáy-wālā́ : سترګۍ ( چشمې ) خرڅوونکى؛ سترګى اېښوونکى ، ( پا ) عينك فروش ؛ عينك پوش ، عينکى .

**سترګې پرلار** starge-par-lár : څارو ، څارونکى ، ( پا ) چشم براه ، ( عر ) منتظر .

**ستر مېړه** stár-mera : ښه ځوان ، زبر وګړه ، ( پا ) ابر مرد ، بزرګ مرد ، شخصيت بزرګ ، ( ار ) عظيم انسان ، ( ان ) superman

**ستروی** star-wáy : لویي ؛ کبرجنې ، پېس ، برم ، پرتم ؛ ( پا ) بزرگی ؛ کلانکاری ، تبختر ، شکوهمندی ، ( عر ) عظمت ؛ تکبر ، تبختر ؛ حشمت .

**ستغلېږدی** sta-lézd-ay : ستغیونی ، ( پا ) راه دشوار ( صعب المرور ) ، ( عر ) صعب المرور ، صعب العبور ، ( ان ) arduous(road)

**ستغیونی** sta-yún-ay : ستغلېږدی ؛ د ستغې لارې لاروی ، ( پا ) راه صعب المرور ، راهرو راه دشوار .

**ستګ** stag : ستنکی ، ( پا ) سنجاق .

**ستنبه** stan-bá : ستنوهونکی ، رګوهونکی ، ( پا ) پیچکاری کننده ، خالکوب ، رګزن ، ( ان ) phlebotomist, bleeder

**ستنځی** stan-jáy : اړځی ، اړتون ، پولیسي توقیفځی ، ( پا ) توقیف خانه ، بازداشتګاه ، ( ار ) حوالات ، ( ان ) a house of detention

**ستنکی** stan-káy : ستګ ، ( پا ) سنجاق ، ( ان ) pin,brooch, hairpin

**ستن وهنه** stan-wah-ána : پیچکاري ، ( پا ) پیچکاری ، خالکوبی ، ابله کوبی ، ( عر ) تزریق ، ( ان ) injection tattooing,

**ستور بېړۍ** stor-beṛáy : تشیال بېړۍ ، فضایي بېړۍ ، سپوږ وږمه ، سپوږمکۍ ، ( پا ) سفینۀ کیهانی ، مهواره ، قمر مصنوعی ، ( ار ) مصنوعی سیاره ، ( ان ) satellite

**ستور پوهاند** stor-poh-ā́nd : ستور پوه ، ( پا ) ستاره شناس ، هیئت دان ، اختر شناس ، ( عر ) منجم ، ( ان ) astrologist, astronomer

**ستور پوهنه** stor-poṛhána : دستور و پوهنه ، د نجوم علم ، ( پا ) ستاره شناسی ، اختر شناسی ، هیئت ، ( عر ) علم النجوم ، ( ان ) astrology, astronomy

**ستورڅك** stor-cák : آسمان څك ، تر ستورو یا اسمانه رسېدونکی ، ( پا ) آسمانخراش ، ( ان ) sky-scrapper

**ستور گوزاری** stor-guzár-ay : ستوري ویشتونکی ، ( پا ) ستاره زن .

**ستورگی** stor-gáy : وړوکی ستوری ، یوه اټکلي ( فرضي ) ستوري بوله ( * ) لیك نښه ، ( پا ) ستاره گك ، ( ان ) asterisk (*)

**ستوروڼا** stor-uṇā́ : د ستورو ښکاري ، ( پا ) شکاری ستاره ها .

**ستوروین** stor-wín : ستوري لیدونکی ، نجومي ، پالي ،

( پا ) ستاره بين ، نجومى ، فالبين ، ( ان ) astrologer

**ستوروين پوهه** stor-win-póha : نجوم پوهه ، دپال ( فال ) ليدنې پوهنه ، ( پا ) نجوم بينى ، طالع بينى ، ( ان ) astrology

**ستوريانى** stor-yán-áy : ستورين ، ستوريز ؛ ( فېلمي ) ستورى ، ( پا ) ستاره يى ، ستاره مانند ؛ ستارۀ فلمى .

**ستورين** storín : د ستوري اړوند ، ستوزيز ، ستوريانى ، ( پا ) ستاره يي ، سياروى .

**ستورين وږى** stor-ín-waẓay : زومبك ستوري ، پرېونې ، ( پا ) پروين ، خوشۀ پروين .

**ستور يونى** stor-yúnay : ستور مزلى ، تشيال يونى ، كيهان يونى ، كيهانگرځى ، ( پا ) كيهان نورد ، ستاره پيما ، ( ان ) cosmonaut, astronaut

**ستونځ** stunj : دغره څوكه ، د غره سر ؛ لوړ ، لوړتيا ، ( پا ) قله كوه ، سيتغ ، چكاد ؛ بلندا ، ( عر ) قله ؛ زروه ؛ اوج .

**ستونز اوارى** stonẓ-awā́r-ay : ستونزهوارى ، د ستونزى ( مشكل ) او اروونكى ، ( پا ) حلال مشكل ، حلال مشكلات ، مشكل كشا .

**ستونزاوارى** stonẓ-awār-áy : د ستونزې ( ستونزو )

موارى ، ( پا ) مشكل كشايى ، حل مشكل .

**ستونزمن** stonz-mán : ستومانوونكى ، ربړوونكى ، ربړن ، ( پا ) دشوار ، تكليف ده ، خسته گى آور ،

**ستونزه** stónza(o=u) : سخته ، گراني ، ستوماني ؛ ربړه ، ( پا ) دشوارى ، سختى ؛ ستوه ، خسته گى ؛ مسأله ، ( عر ) مشكل ، مشكله ، مسأله ، معضله ، ( ان ) difficutty, harassment, problem

**ستونز هڅى** stonz-hác-ay : ستونز خوښى ، ستونزپېرى ، ( پا ) مشكل پسند ؛ مشكلتراش .

**ستونزي** stonz-í : گرانخوښى ، ( پا ) مشكل پسند ؛ مشكلتراش ، ( ان ) fastidious

**ستون ليكنه** setun-lik-ána : كالم ليكنه ، مقاله ليكنه ، ( پا ) ستون نگارى ، مقاله نويسى ، ( ار ) كالم نگارى ، ( ان ) column-writing

**ستون ليكونكى** setun-lik-únkay : ( پا ) ستون نگار ، ( ار ) كالم نگار .

**ستوه** satáwa : بوغده ، پيش كوزه ، ( پا ) پيش قبض .

**سټ وټ** saṭ-wáṭ : پوپناه ، ( پا ) تباه و برباد ، نيست و نابود .

**ستهه** saṭa : له ولې او تړګړ څخه ( د تړ خپلواك ) رغېدلی نوموال یا ګړوال بنسټ ، ( پا ) ستاك ، تته ، ( ان ) stem (base)

**ستهه تړنګ** saṭ-taṛang : مغه تړنګ ( ترکیب ) چې له یوه خپلواك ویي او یوې ستهې څخه رغېدلی وي ، ( پا ) ترځیبی از یك واژهٔ مستقل وستاك ، ( ان ) stem-compound

**ستهه خپلواك** saṭa-xpal-wak : د ستهې ( تتې ) واول ، ( پا ) واکهٔ تته ( ستاك ) ، ( ان ) stem-vowel

**سخت درملی** saxt-darmal-ay : ګران درملی ، په سختی رغېدونکی ، نارغېدونی ، نارغېدونکی ، ( عر ) صعب العلاج ، ( ان ) refractory, incurable

**سخت دریځی** saxt-darīj-ay : د سخت ( سیاسی ) دریځ ( موقف ) خاوند ، توندلاری ، ( پا ) دارای موقف سر سختانه ، تندرو .

**سخور** sax-a-war : بختور ، نېکمرغه ، ښه مرغی ، ( پا ) بختیار ، خوشبخت ، ( ار ) خوشقسمت .

**سراسري** sar-a-sar-ī : یو مخیز ، ( پا ) سراسری ، سراسر ، یکسره ( ار ) همه ګیر ، ( ان ) all over, throughout

**سرانښ** sraṣ : سرانښند ، توسند ، توسن ، نغلاند ، اسوېلاند ، وړسولی ، وړسترګی ، وړی ، ارسناك ، ( پا ) ګرسنه چشم ، آزمند ،

( عر ) حریص .

**سرامنې** sra-máne : سرامنې ( سرې ) او بنکې ، سروب ، ( پا ) خوناب .

**سرایستلی** sar-istálay : وتلی ، پېژندلی ، مخور ، نومور ( نوموړی ) ، ( پا ) سر آمد ، برازنده .

**سرای وال** sráy-wā́l : سرای والا ، ( پا ) سرایدار ، صاحب سرای .

**سربانده** sar-bā́nde : سرباري ؛ له عادي حالته پورته ، ( پا ) بالاتر از حالت عادی ، ( عر ) فوق العاده ، ماوراء ، ( ان ) extraordinary, extra

**سربانده ژبپوهنه** sar-bā́nde-žab-pohána : په نورو څانگو اړونده ژبپوهنه ، ( پا ) ماورای زبانشناسی ، ( ان ) metalinguistics, exolinguistics

**سربل** sar-bál : مخینه ، ( پا ) پیشینه ( ان ) pre-position

**سربنا** sar-benā́ : مخبنا ، ( پا ) روبنا ، ( ان ) infra-structure

**سرپټی** sar-páṭ-ay : سرپټ ، ( پا ) سر پوشیده .

**سر پټې او مخپټې**

sar-paṭ-e-aw-maẋ-paṭe : ( مغه ) بڅه ) چپ سر و مخ پټوي ، ( پا ) سر پت و روی پت ( کابلی ) .

**سرپرانتی لیك** sar-pranat-ay-lik : سر پرانیستی لیك ، پرانتی ( پرانیستی ) لیك ، سر خلاصی لیك ، ( پا ) نامهٔ گشاده .

**سر پښتی** sar-paṣtay : سر بپښت ، د سینې سر ، ( پا ) سر سینه ، ( ان ) cephalothorax

**سرپین** srap-in : د سر پو اړوند ، لکه سرپ ، له سر پوجوړ ، ( پا ) سربی .

**سر تر پای** sar-tar-pay : سر تر پایه ، یو مخیز ، یو مخ ، له یوې مخې ، ( پا ) سر تا پا ، از اول تا آخر .

**سر تړنی** sar-taṛ-an-ay : سر تړونی ، ( پا ) سر بند .

**سر توره** sar-tura : بنسټیز دوی ( قانون ) ، اساسي قانون ، ( پا ) قانون اساسی ، ( ان ) constitution

**سر تېر خونه** sar-ter-xuna : لښکر خونه ، ( پا ) سر باز خانه ، ( ان ) barrack

**سر تېر نیونه** sar-ter-niw-ana : عسکر نیونه ، ( پا ) سر باز گیری ، ( ان ) conscription, recruitment

**سر تېره** sar-ter-a : پر سر تېر شوي ، ( پا ) سر

گذشت، ( ان ) adventures, incidents

**سر تېرى** sar-tér-ay : سر تېر، له سره تېر؛ زمرلاى، عسگر، توركښ، ( پا ) سر باز، عسكر، ( ار ) فوجى، ( ان ) soldier

**سر تېري** sar-ter-i : بلهاري؛ عسكري، ( پا ) جانبازى؛ سر بازى، عسكرى ( د سر تېرى پازه : خدمت سر بازى )، ( ان ) soldierliness

**سر تېرى او ځانتېرى** sar-tér-ay-aw-jān-teray : له سر و ځانه تېر، ځانتيرى او سر تېرى، ( پا ) از سر و مال گذشته.

**سر ټولنه** sár-ṭolána : ستره غونډه، لوى كنفرانس ( كانفرانس ) گرد همآيى بزرگ، كنفرانس عالى.

**سرچينه** sar- čina : پيلامه، پيليځ، ږومبى چينه؛ ( پا ) سر چشمه، ( عر ) منبع، منشاء، مبداء ( ان ) source, fountainhead, headspring

**سر ځوړى** sar-jwáṛ-ay : سر ځوړ، ځوړ، ځوړى، ( پا ) سرا شيبى، نشيب، نشيبى، سرازيرى.

**سر څارن** sár-cār-án : د څارندوى ( پوليس ) افسر ( د نظامي تورن انډول )، ( پا ) افسر پوليس افغانى معادل رتبهٔ

کالخوای، ( پا ) رئیس خانواده.

**کورمېرمن** kór-merman : د کور مېرمن، کور واکې؛ هغه مېرمن ( ښځه ) چې بهرکارنه کوي او پر کور وي، ( پا ) خانم خانه.

**کور ناست** kor-nást : کور ناستی ( - nắstay )، تقاعدي، ( پا ) باز نشسته، تقاعدی، ( عر ) متقاعد، ( ان ) retired

**کور ناستی** kor-nást-áy : کور ناسته، ( پا ) باز نشسته گی، تقاعد، خانه نیشنی، ( ان ) retirement

**کورنی ژوند** koran-áy-žwand : د رېډیو افغانستان د یوه پروګرام نوم، ( پا ) کورنی ژوند ( زنده گی خانواده )، ( ار ) گهریلو زندگی، ( ان ) family life

**کورنی جنګ** kor-a-náy-ǰang : کورنۍ جګړه، د اخلي جنګ، ( پا ) جنګ داخلی، خانه جنګی، ( ان ) civil war

**کورواکی** Kor-wắk-ay : هغه چې په کورنیو چارو کې ازاد وي، ( پا ) خود ګردان، ( ان ) autonomous

**کور واکي** kor-wák-í : ځانواکي، په کورنیو چارو کې خپلواکي، ( پا ) خود ګردانی، خود اختیاری، خود مختاری ( در امور داخلی )، استقلال داخلی، ( ان ) autonomy

**کوره کی** kor-ak-áy : کورگی، ( پا ) حجره، سلول، ( ان ) cell

**کوره کیز** kor-ak-íz : د کوره کي ( حجرې ) اړوند، ( پا ) سلولی، ( عر ) حجروی، ( ان ) cellular

**کوژدن څله** koždán-cála :د کوژدنې گوته، ( پا ) چلهٔ نامزادی، ( ان ) engagement ring

**کوږ اندی** kóẓ-ánd-ay :بد اندی، ( پا ) بد اندیش : کج اندیش، ( ان ) devious

**کوږ اوړون** kóẓ-awṛ-ún :بېدوده گردان، ( پا ) گردان بیقاعده.

**کوږ ورېب** kóẓ-o-réb : کوږ ووږ، ( پا ) کج و مایل، کج وج.

**کوغالی** ku-ǧā́l-ay : کوږ غالی، کوړخل ( مرغانچه )؛ کوړله، جونگړه، ( پا ) مرغانچه؛ خانهٔ محقر.

**کوکنی** kok-an-áy : کونړاله، گلادانۍ، ( پا ) گلدان.

**کوکیالی** kok-yál-áy : گلالی، گلرنگی، گلوزمه، ښیالی، ړولي، ( پا ) گلفام، گلگون، گلرنگ، قشنگ.

**کولپ و کونجي** kólp-o-konǯí : کولپ و کیلي، جندره او چاپي، ( پا ) قفل و کلید.

**کولتوري ژبه** koltur-í-žába : ---> کره ژبه .

**کومکي** komak-í : مرستندوي ، تعاون کوونکی ، ( پا ) کمکی ، ( عر ) معاون ، ( ان ) helping, auxiliary, assisting

**کومکي و توځی** komak-í-wat-ózay : مغه وتوځی ( مخرج ) چې په څرمه او ضمني توگه د غړونو په زېږد یا جوړښت کې برخه اخلي لکه خوله او پزه چې «خوله ییز» او «پزیز» بېواك ورپورې اړه لري ، ( پا ) مخرج کمکی .

**کوندوز ښاروال** kondóz-ṣar-wál : د کوندوز کندز ) ، کندوز ) ښاروال ، ( پا ) کندوز شاروال ، شهر دار شهر کندز ( قندز ) .

**کونگ وزمه** kwang-wázma : کونگ ( گونگي ) ورته ، لکه کونگ ( گونگی ) ، ( پا ) جغد مانند .

**کېڅ ډبره** kec-ḍabára : ښاځه ، شناخته ، ( پا ) شناخته ، سنگ گور ، سنگ مزار ، ( ان ) gravestone, tombstone

**کېڅکن** kec-kán : کېڅ ( قبر ) کښونکی ، ( پا ) قبر کن ، ( ار ) گور کن ، ( ان ) gravedigger

**کېڅکني** kec-kan-í : کېڅ کښنه ، قبرایستنه ، ( پا ) قبر کنی ، گور کنی ، ( ان ) grave-digging

**کېڅلیك** kec-lík : د کېڅ ( قبر ) ډبر لیك ، ( پا ) سنگ نبشتهٔ مزار ،

**کېدون** ked-ún : شونتیا ( ناکره ) ، ( پا ) امکان ( پذیری ) ، ( عر ) امکان ، ( ان ) possiblity

**کېدونی** ked-ún-ay : شونی ، ( پا ) امکان پزیر ، شونده ، شدنی ، ( ان ) possible

**کېکوړی** ke-kúṛay : چاکلیټ ، ( پا ) چاکلیت ، شکلات ، ( ان ) choclate

**کېندنې** kend-áne : کننې ، ( پا ) کاوشگریها ، ( عر ) حفریات ، ( ان ) diggings, excavations

**کیڼ اړخی** kiṇ-áṛx-ay : کیڼ لاسی ، چپی ، ( پا ) دارای جناح چپ ، دست چپی ،

**کیڼ ځرخ!** kin-cárx : عسکري ټولگي ته د تګ ( مارش ) پر وخت کیڼې ( گڅې ) خوا ته د ځرخېدو بولی ( کمان ) ، ( پا ) قوماندهٔ گشتن ( چرخ خوردن ) به طرف چپ ( در حالت رفتار قطعهٔ نظامی ) . ( ان ) left turn!

**کیڼ گرځ!** kin-garj : کیڼ گرځ ، کین گرځ ، قوماندهٔ گشتن به طرف چپ ( در حالت توقف ) ، ( ان ) left furn!

**کيڼ لاسی** kiṇ-lā̃s-ay : کيڼ اړخی، چپی، ( پا ) چپی، دارای جناح چپ، دست چپ، ( ان ) leftist

**کېوتون** kewat-ún : ورشکسته گی، کښېوتون، لاندېوالی، غورځېدنه، ( پا ) سير نزولی، برگشت، ( عر ) تنزل، نزول، رکود، انحطاط، ( ان ) decline, retrosrdation

**کيهانګرځی** kayhān-gárj-ay : ستوريونی، ( پا ) کيهان نورد، ( ار ) خلا نورد، ( ان ) cosmonaut, astronaut

**کيهاني** kayhān-í : تشيالي، ( پا ) کيهانی، فضايی، ( ار ) کائناتی، ( ان ) cosmic, universal

**کيهاني بېړی** kayhān-í-beṛáy :تشيال بېړی، تشيالي بېړی، فضايي بېړی، ( پا ) سفينهٔ فضايی يا کيهانی، ( ان ) spaceship, spacecraft

# (گ)

**گاډی** gā̊ḍay : گاړی ، ( پا ) موټر ، ماشین ، گادی ، واګن اړابه ، ( ان ) auto, car, waggon

**گاډی** gāḍáy : بګی ، ټانګه ، ( پا ) گادی ، بگی ، کالسکه ، درشکه ، ( ان ) coach, chariot

**گاډي اډه** gā̆ḍi-aḍá : د گاډواډه ، دگاډو لوی تمځی ، ( پا ) ایستگاه ( عرادهٔ جات ) ، ( ان ) (bud) station

**گاډي پلور** gā̆ḍi-plor : گاډي پلورنه ، گاډي پلورنځی ، ( پا ) موټر فروشی ، اتومبیل فروشی .

**گاډي پلوری** gā̆ḍi-plor-ay : گاډي پلوروونکی یا خرڅوونکی ، ( پا ) موټر فروش ، اتومبیل فروش ، ماشین فروش .

**گاډی چلوونکی** gā̆ḍay-čal-aw-únkay : موټروان ، ( پا ) راننده ، گاریچی ، ( ان ) driver

**ګاډیوان** gāḍi-wấn : بګیوان، ګاډۍ چلوونکی، ټانګه والا، کوچوان، ( پا ) ګادی ران، ګادیوان، کالسکه چی، ( ان ) coachman

**ګاڼه وال** gāṇa-wấl : د ګاڼې ( ګروۍ ) خاوند، ګرویدار، ( پا ) ګروګیر، ( عر ) مرتهن، ( ان ) mortgagee

**ګام پر ګام** gấm-par-gấm :پرله پسې؛ پله پر پله، قدم پر قدم، ( پا ) ګام به ګام، پیهم، ( ان ) step by step

**ګاڼه ورۍ** gāṇa-wáṛ-ay : ګاڼه ( ګروي ) ورکوونکی، ( پا ) ګروګزار، ( عر ) راهن، ( ان ) mortgagor

**ګاڼه ییزه** gāṇa-yíza : ګاڼه ( شوې ) ځمکه یا بله هره شتمني، ( پا ) چیزی ګرو شده و مرهون، درګرو، ( ان ) obliged, pledged

**ګاوز** gāwáz : غرنی غویی، غرڅه، ښکروره هوسۍ، ( پا ) ګوزن، آهو ( ان ) elk, caribou, deer

**ګبین ژاوله** gabin-žấwla : د ګبینو ( شاتو ) پاتې شوني، موم، ( پا ) موم و یا دُرد انګبین ( شهد ).

**ګچ بټۍ** gač-baṭáy :د ګچو جوړولو یا پخولو بټۍ، ( پا ) کورهٔ ګچ پزی.

**ګدۍ ناستی** gaday-nāst-ay : پرګدۍ ( مسند )

ناست ، ( پا ) مسند نشین ، بالا نشین .

**گډامی** gaḍāmáy : د نرو او ښځو یوراز ګډ اتڼ یا ګډه نڅا ، ( پا ) رقص مشترك زنان و مردان . ( ان ) dance

**گډ اندی** gaḍ-ánd-ay : هماندی ، یو اندی ، همسوچی ، مجاجه ، همخیاله ، ( پا ) هم اندیشه ، همفکر .

**گډ اندي** gaḍ-and-í : همفکري ، همسوچي ، همخيالي ، ( پا ) همفکری ، هم اندیشه گی .

**گډ اندیز** gaḍ-and-íz : همفکرانه ، ( پا ) هم اندیشانه .

**گډسوله ییز ژوند** gáḍ-sola-yíz-žwand : یو له بله گډ سوله ییز ژوند ، ( پا ) زیست باهمی مسالمت آمیز .

**گډلی ایښونی** gaḍ-ăl-ay-iṣ-ún-ay : مرکب مسند ( خبر ) ، تړښتي کړ لرونکی خبر ، ( پا ) مسند مرکب ، گزاره ، ( ان ) compound predicate

**گډلې غونډله** gaḍ-ále-ɣónḍ-la : مختلطه جمله ، ( پا ) جملۀ مختلط .

**گډوډواله** gaḍ-waḍ-wăla :اړ دوړ ، ( پا ) هرج و مرج گرایی ، ( ان ) anarchism

**گډون بیه** gaḍ-un-báya : د گډون ( اشتراك یا شمولیت ) قیمت ، ( عر ) حقالاشتراك ، حق الشمول ، ( پا ) حق

اشتراك ، حق شمول ، ( ان ) subscription

**گډوی** gaḍ-wáy : اوږد غاړې کوزه ( گډوه ) ، ( پا ) صراحی .

**گډه غونډله** gáḍa-ʃónḍ-ła : گډه غونډله ، مرکبه جمله ، ( پا ) جملهٔ مرکب ، ( ان ) compound sentence

**گډې** gaday : گډی ، بنډار ، ( پا ) بزم .

**گډېره** gaḍéra : غونډه ، ټولنه ، غونډېدنه ، ټولېدنه ، ( پا ) گردهمآیی ، نشست ، ( عر ) جلسه ، اجلاس ، ( ان ) meeting, session

**گران او منلی** grā́n-aw-man-ál-ay : ښاغلی او منلی ، ( پا ) عزیز و گرامی .

**گرانبیه** grān-báya : گران قیمته ، ارزښتمن ، ( پا ) گرانبها ؛ بیش قیمت ، پر ارزش ، قیمتی ، ( ان ) precious, valuable, costly

**گرانپلوری** grān-plór-ay : گران خرڅوونکی ، گرانپلوروونکی ، ( پا ) گرانفروش .

**گرانپلوري** grān-plor-í : گرانپلورنه ، گران خرڅونه ، ( پا ) گرانفروشی .

**گراندرملی** grān-darmál-ay : سخت درملی ، ( عر )

صعب العلاج ، ( ان ) refrectory, incurable

**گزانبښت و منبښت** gran-ast-o-man-ast : منبښت و گرانښت ، ( پا ) محبوبيت و مقبوليت .

**گراني** gran-i : گرانپلوري ، گران قيمتي ، ( پا ) گرانی ، گرانفروشی .

**گرجمن** graǰ-man : رخور ، کينه ور ، کينه ناك ، ( پا ) کينه توز ، کينه جو ، کينه خواه ، ( عر ) حاسد ، حسود .

**گرځبند** garj-band : گرځبندی ، د گرځېدنې بنديز ، د گرځېدنې قيود ، ( پا ) قيود برگشت و گزار ، قدغن عبور و مرور ، ( ان ) curfew

**گرځپلی** gar-japal-ay : ظلم ځپلی ، ( پا ) ستمديده ، ( عر ) مظلوم ، ( ان ) oppressed

**گرځندوی** garjandoy : سيلانی ، سيلگری ، ټوريسټ ، ( پا ) جهانگرد ، گشتگر ، ( عر ) سياح ( ان ) traveler, tourist

**گرځندوی او لېږندوی** garj-andoy-aw-lez-andoy : گرځندوی ( سياحت ) او انتقالات ( حمل و نقل ) ، ( پا ) سياحت و حمل و نقل ، توريزم و ترانسپورت ، ( ان ) tourism and transport, ( د گرځندوی

او لږندوی وزارت) .

**گرځندويي** garjando-yí : سيلاني توب، (پا) جهانگردی، سير و سياحت، (عر) سياحت، سير، (ان) tourism, excursion

**گرځنده تيليفون**

**(تيليفون)** gárj-anda-telefún : گرځنده لرغږون، (پا) تيلفون (تلفن) سيار .

**گرځنده سينما** gărj-anda-senamă : سياره سينما، گرځنده سينمايي شووني، (پا) سينمای سيار، دستگاه سيار سينمايی .

**گرځېدونی** garj-ed-ún-ay : گرځېدونکی، ستنېدونکی، (پا) بر گردانده، برگشت کننده .

**گردمېز** gárd-mez : گردی مېز، (پا) مېز گرد، مېز مدور، (ان) round table

**گرگر** gar-gár : دگر (ظلم) خاوند، تېرغمال، (پا) ستمکار، ستمگر، (عر) ظالم، مستبد، (ان) cruel

**گرگري** gar-gar-ĭ : ظلم و تېری، زور و زياتی، (پا) ستمگری، (ان) cruelty, tyranny

**گرمانه** gram-āná : گناهگاره، توغم، (پا) جرمانه،

( عر ) جریمه ؛ کفاره .

**گرمانې** gram-ané : گناهگارې ، سزاوې ، جزاوې ، ( پا ) جریمه ها ، جرمانه ها ، ( عر ) مجازات .

**گروم** grum : خپگان ؛ د زړه غوټه ، ( پا ) دق ( مرض ) ؛ عقدهٔ دل ، ( ان ) depression, complex

**گرومجن** grum-ǰán : په خپگان ناروغی، اخته ، ویرژلی ؛ گرومن ، ( پا ) مبتلا به مریضی دق ؛ اندوهگین ؛ عقده دار ؛ عقده یی ، عقده ای ، ( ان ) depressed, frustrated, suffering from a complex

**گرومن** grum-án : --> گرومجن .

گروه پلټون groh-plaṭ-ún : د گروهې ( عقیدې ) تفتیش ، گروه لټون ، ( پا ) تفتیش عقیده ، تفتیش عقاید .

**گروه پلټونکی** groh-plaṭ-únkay : گروه لټونکی ، د گروهې ( عقیدې ) مفتش ، ( پا ) مفتش عقیده یا محتسب .

**گروه توپیر** gróh-tawpír : ( پا ) اختلاف عقاید ، ( ان ) belief or persuation difference

**گروهن** groh-án : گروهمن ، عقیده من ، باوری ، ( پا ) عقیده من ، با عقیده ، با اعتقاد ، باورمند ، ( عر ) معتقد ، مؤمن ، ( ان ) believer

**ګروهه** groha : ګروه، امنا، باور، ( پا ) باور ( عر ) عقیده، ایمان، یقیین، ایقان، اعتقاد، ( ان ) view, faith, persuation, belief

**ګروهه او پوهه** groha-aw-poha : عقېده او پوهنه ( د یوه شعري غونډ نوم )، ( پا ) عقیده و علم، علم و عقیده .

**ګروهیز** groh-iz : دګروهې ( عقېدې ) اړوند، عقیده یي، ( پا ) اعتقادی، عقیدوی، ایمانی .

**ګرویلیك** grawi-lik : ګاڼه لیك، ( پا ) ګرو نامه، ( ان ) mortgage deed

**ګره بره** gara-bara : ناڼوله، سرسري، بابز ؛ لنډ ګنډ، لنډ تنګ، ( پا ) سرسری، سطحی، جسته و ګریخته ؛ نا تراش و نا خراش .

**ګرېوان څیرې** grewan-cire : ګرېوان شلېدلی، شلېدلی ګرېوان، شلېدلې تنی ؛ غاوچي، ( پا ) ګریبان چاك، ګریبان پاره ؛ فریادی، فریادزن .

**ګړ** gaṛ : سپڼ ؛ مورفیم، د ژبې کوچنیترین مانیزیوون ( واحد )، ( پا ) واج، مورفیم، ( ان ) morpheme

**ګړ اواز** gaṛ-awāz : مورفو ـ فونیم، هغه اواز چې د یوه ګړ د بېلابېلو څېلونو ( --> بلګړونو ) په لړ کې راځي، ( پا )

رابطهٔ صوتی، مرز تك واژه، تك واژهٔ واجی، ( ان )
morpho-phoneme

**گړاواز پوهه** gaṛ-awāz-pòha : مغه پوهه ( دڼبپوهنې څانگه ) چې گړاوازونه (<--) څېړي، ( پا ) مرکز تك واژه ها، ( ان ) morpho-phonemics

**گړاوازي بدلون** gaṛ-awāz-i-bad-lún : گړاوازونج، مورفو- فنالوجیکي بدلون، ( پا ) دیگر گونی تك واژه یی، ( ان )
morpho-phonemic change

**گړپوهنیز** gaṛ-poh-an-íz : گړپوهیز، مارفالوجیکي، ( پا ) واجشناختی، ( ان ) morphological

**گړپوهنیزه ارتیا** gaṛ-poh-an-íza-art-yá : گړپوهنیزه پراختیا، گړپوهیزه ارتیا، ( پا ) توسعهٔ واجشناختی، ( ان ) morphological
extension

**گړپوهنیزه همرنگي** gar-poh-an-íza-ham-rang-i : گړپوهیزه همرنگي یا یو رنگي، ( ورتوالی )، ( پا ) همگونی واجشناختی، ( ان )
morphological assimiiation

**ګړپوهه** garṛ-poha : ګړپوهنه، مورفيم پوهنه، ( پا ) واجشناسي، واژ شناسي، ( عر ) صرف، ( ان ) morphology

**ګړدود** gaṛ-dod : وينا دود، ( پا ) ګويش، ( عر ) لهجه، ( ان ) dialect

**ګړدود اتلس ( اېټلس )**

gaṛ-dod-atlas : ګړدودي اتلس ( اېټلس )، ( پا ) اطلس ګويشي، ( ان ) dialect atlas

**ګړدود پوهنه** gaṛ-dod-poh-ana : د ګړود اړوند علم، ګړ دود پوهه، ( پا ) ګويششناسي، لهجه شناسي، ( ان ) dialectology

**ګړدودي** gaṛ-dod-í : دګړ دود ( لهجې ) اړوند، ( پا ) ګويشي، ( عر ) لحجوی، ( ان ) dialectal

**ګړدودي ځمکپوهنه**

gaṛ-dod-í-jmak-poh-ana : لهجوي جغرافيا، ( پا ) جغرافياى ګويشي، ( ان ) dialect geography

**ګړنپوهه** gaṛ-an-poha : غونډ پوهه، هغه څانګه چې له ګړنو ( محاورو ) څخه ګړېږي، ( پا ) اصطلاح شناسي، فقره شناسي، ( ان ) phraseology, idiomatics

**ګړنه** gaṛ-ana : هغه ويي غونډ ( لفوي ګروپ ) چې يوه

دريم گړې «اصطلاحي» مانا ښندي ، ( پا ) اصطلاح ، محاوره ، ( ان ) idiom

**گړنی** gar-an-ay : گړهاري يا وينا ييز ، ( پا ) زبانی ، ( عر ) شفاهی ، ( ان ) oral

**گړنی ادب** gar-anay-adab : گړهاري يا وينابيز ادب ، شفاهي ادب ، ( پا ) ادب ( ادبيات ) شفاهی ، ادبيات گفتاری .

**گړنيز** garan-íz : دگړنې ( اصطلاح ، محاورې ) اړوند ، ( پا ) اصطلاحی ، محاوری ، ( ان ) phrasal

**گړهار** gar-hâr : وينا ، غږېدا ، خبرې ، سکالو ، ( پا ) گفتار ، ( عر ) تکلم ، مکالمه ، محاوره ، ( ان ) conversation. speech

**گړهاري** gar-har-í : وينابيز ، گړنی ، ( پا ) گفتاری ، شفاهی ، محاوروی .

**گړی** garay : ( پا ) ساعت ، ( ان ) ( پا ) ساعت ، ( ان ) watch

**گړيال** garyâl : لويه زنگوهونکې گړی ، ( پا ) ساعت بزرگ شماطه يی ( ان ) alarm clock

**گړيال برج** garyal-braǰ : هغه زنگ برج چې گړيال (-->) يکې ټينګ شوی وي او هره گړۍ ( ساعت ) زنگ وهي ،

( پا ) برج ساعت .

**گړی بند** garạy-bánd : د گړی ( ساعت ) بند یا تسمه او یا ځنځیر ، ( پا ) بند ساعت ، ( ان ) watch-band, watch chain

**گړیز** gaṛ-íz : دگړ ( مورفیم ) اړوند ، ( پا ) واجی ، ( ان ) morphenic

**گړی ساز** garạy-sā́z : گړی والا ، گړی ( ساعت ) جوړوونکی ، ( پا ) ساعت ساز ، ( ان ) watchmaker

**گړی سازي** garạy-sāz-í : ( پا ) ( کارخانهٔ ) ساعت سازی ، ( ان ) horology

**گړی ستن** garạy-stán : د گړی ( ساعت ) ستن ، گړی گر ، ( پا ) عقربك ، عقرب ساعت ، گژدمه ، ساعت شمار ، ( ان ) hour-hand, hand (of watch or clock)

**گړیستنه** gaṛ-ist-ána : ببلنگ ، آرپوهه ، ( پا ) اشتقاق و تصریف ؛ ریشه یابی ( ریشه شناسی ) ، ( عر ) اشتقاق ؛ فقه اللغته ، ( ان ) derivafion; etymology

**گړی گر** garạy-gár : گړی ساز ؛ دگړی ستن ، ( پا ) ساعت ساز ، عقربه ساعت .

**گلباران** gwal-barā́n : گلوروونه ، گل شیندنه ، ( پا ) گل

افشانی ، گل افشان ، گلباران .

**گلبارخو** gwal-bārxū : گل اننگی ، ( پا ) گلعزار ، گلرخسار .

**گلباغچه** gwal-bāɣ-čá : گلباغیچه ، گلبنکی ، ( پا ) باغچهٔ گل .

**گلبانگ** gol-bā́ng : خوږ اواز ، د بلبل اواز ، ( پا ) گلبانگ ، نوای بلبل .

**گلبڼ** gwal-báṇ : گلباغ ، دگلو بڼ ، ( پا ) گلباغ ، گلستان ، گلزار ، گلشن ، ( ان ) rose garden, flower garden

**گلبوټی** gwal-búṭay : د گل بوټی ، ( پا ) گل بته ، گلبن ، ( ان ) rosebush

**گلپاڼه** gwal-pā́ṇa : د گلو پاڼه ، د گل پاڼه ، ( پا ) گلبرگ ، برگ گل ، ( ان ) petal, rose leaf

**گلپاڼی** gwal-pā́ṇ-ay : هغه بوټی چې گل ته ورته پاڼې لري او په کابلی پارسی یې «گلبرگ» بولي .

**گل پرخه** gwal-párxa : پر گل یا گل پاڼه پرته پرخه ( شبنم ) ، ( پا ) شبنم ( بر روی ) گل .

**گل پرهر** gwal-parhā́r : د پرهر ( هار ) گل

( شاعرانه ) ، ( پا ) پرهر گل .

**گلپلور** gwal-plor : گل پلورنه ، گل خرڅونه ، ( پا ) گلفروشی .

**گلټاند** gwal-ćánd : گل ټانی ، گل ټاندی ، ( پا ) گلچین ، ( ان ) gather of roses or flowers

**گل ټاندي** gwal-ćand-í : گل اونښه ، گل او نیون ، ( پا ) گلچینی ، ( ان ) picking flowers

**گلپلوری** gwal-plor-ay : گل پلورونکی ، گل خرڅوونکی ، ( پا ) گلفروش .

**گل ټانگه** gwal-ćánga : د گلو ټانگه ، ( پا ) شاخ گل ، شاخچهٔ گل .

**گل ټانی** gwal-ćáṇ-ay : گلټاندی ، گلټاند ، ( پا ) گلچین .

**گلڅېره** gwal-cera : گل مخی ، ( پا ) گلچهره ، گلرو ، گلرخ .

**گلخونه** gwal-xuna : د گل خونه ، ( پا ) گلخانه ، ( ان ) greenhouse, hothouse

**گل ډاگ** gwal-ḍā́g : گل دښت ، گلمېره ، د گلو بیابان ؛ په مومندره ( ننگرهار ) کې د یوه ځای نوم ، ( پا ) بیابان

( پراز ) گل ؛ نام جایی در مومندره ( ننگرهار ) .

**گلساز** gwal-sā́z : خپلاسي ( مصنوعی ) گل جوړوونکی ، ( پا ) گلساز ، ( ان ) maker of nosegays, florist

**گلسیمه** gwal-síma : د گلو سیمه ، ( پا ) ساحهٔ گل ، منطقهٔ گل .

**گلغوټی** gwal-ɣoṭay : گل مونگره ، د گل غوټی ، نا غوړېدلی گل ، خوغاړه ، منجره ، بنجره ، ( پا ) گلغنچه ، شگوفهٔ گل ، ( ان ) rose bud, flower bud

**گل غونچه** gwal-ɣwančá : گلموښته ، د گلو غونچه ، د گلو گېډۍ ، گل گېډۍ ، د گلونو کوده ، ( پا ) گلدسته ، دستهٔ گل ، ( ان ) bouquet, nosegay

**گلکڅ** gwal-kác : گل ورشو ، گل لرونکی کڅ ( ساحل ) ، ( پا ) بیشهٔ گل ساحلی ، ( ان ) river side garden

**گلکار** gwal-kā́r : گل کرونکی ، د گلو کرونکی ، ( پا ) گلکار ، ( ان ) gardener, floriculturist

**گلکڅونه** gwal-kac-úna : د یوه شعري غونډ ( مجموعې ) نوم ، ( پا ) «بیشه های گل ساحلی» ، نام مجموعهٔ شعری .

**گل کر** gwal-kár : د گلو کر ، د گلو کرنه ، گلکاري ،

( پا ) گلکاری ، کشت گل ، زرع گل ، ( ان ) floriculture

**گل کنگړ** gwal-kangáṛ : د گل کنگړ ( ړندر ) ، گل ړنړر ، ( پا ) نبدك يا چوبك گل ( ار ) پگډنډی .

**گلگنډ** gwal-ganḍ : گل گنډنه ، سکوینه ، ( پا ) گلدوزی ، ( ان ) embroidery (of floral designs)

**گل گنډنه** gwal- ganḍ-ána : گل گنډ ، سکوینه ، ( پا ) گلدوزی .

**گل گېډی** gwal-geḍáy : گلموښته ، د گلو گېډی ، ( پا ) گلدسته ، دسته گل ، ( ان ) bouquet, nosegay, bunch of flowers

**گل لار** gwal-lár : په گلونو کې یا د گلو پر لورې لار ، ( پا ) راه به سوی گلها .

**گل لښته** gwal-lásta : د گلو لښته ، ( پا ) شاخچهٔ گل ، خمچهٔ گل .

**گلمخې** gwal-máx-e : د گل غوندې مخ لرونکی ، ( پا ) گلرو ، گلرخ ( مؤنث ) .

**گل مو ښته** gwal-mósta : گل گېډی.

**گل مونگره** gwal-mungrá : گلغوټی ، نا غوړېدلی گل ، خوغاړه ، ( پا ) گلغنچه ، شگوفهٔ گل ، ( ان ) rosebud,

flower bud

**ګل مينه** gwal-mína : د ګل مينه ( ښځينه نوم)، ( پا ) عشق ګل، ګل دوستی.

**ګل ورشو** gwal-waršŏ : د ګلو ورشو، ( پا ) دامن ( دامان) ګل، دشت و دامان پر از ګل، بيشهٔ ګل.

**ګلورين** gwal-warín : ګل ورووںکی، ګل نولونکی، ګلباران، ( پا ) ګلريز، ګل آفشان، ګلباران، ( ان ) strewn with flowers

**ګلوزمه** gwal-waz ma : ګلرنګه، ګل ورته، ګل غوندې، ( پا ) ګلرنګ، ګلفام.

**ګلوږم** gwal-waẓam : د ګل بوی، ( پا ) بوی ګل.

**ګل وله** gwal-wala : ګلوله، هغه وله چې سره ګلونه لري، ( پا ) ګل بيد، ( ان ) bottle brush

**ګلولې** gwal-wale : ديوه شعري غونډ ( مجموعې) نوم، ( پا ) «ګل بيدها» نام مجموعهٔ شعری.

**ګل ونه** gwal-wana : د ګلو ونه، ګلونه، لوی ګلبوټی، ( پا ) درخت ګل، ګلبن، درخت ګلدار.

**ګلوينه** gwal-wína :د ګل وينه ( شاعرانه)، ( پا ) خون ګل ( شاعرانه).

**گلويی** gwal-wayay : گل لفظ ، ( پا ) گل واژه ( شاعرانه ) ، ( ج : گلوييونه ) .

**گلوييونه** gwal-way-una : گلويی ،

**گليون** gwal-yun : په گلونو کې گرځېدنه ، د گلو سيال د گلو ننداره ، ( پا ) گلگشت ، ( ان ) pleasure ground .

**گنډونکی** gand-un-kay : درزي ، ( پا ) دوزنده ، درزيگر ، ( عر ) خياط ، ( ان ) tailor.seamster ( گنډونکې درزی : dressmaker )

**گنډی** ganday : کورتی ، کوپيچه ، جمپر ، ( پا ) کرتی ، کت نيم تنه ، رولباسی کارگران ، ژاکت ، ( ان ) coat.jumper

**گنگستيا** gangs-tyā̆ : گنگستوب ، گنگسی ، بېسدتيا ، ( پا ) گيجی ، سرگيجه ، پريشانی يا پرت حواس ، ( ان ) giddiness

**گنگسوونکی** gangs-a-wunkay : بېسدوونکی ، بېسده کوونکی ، بيهوښوونکی ، ( پا ) گيج کننده ، ( ان ) astounding

**گنهگاره** gunāh-gā̆ra : گناهگاره ، گرمانه ، توغم ، ( پا ) جرمانه ، جريمه ، کفاره .

**گڼ شمېر** gáṇ-šmer :گڼ ، ډېر ( شمېر ) ، ( پا ) تعداد

زیاد ، بسیار ، هنگفت .

**گڼ کوریز** gaṇ-kor-íz : هغه کلی ، سیمه . . چې کڼ کورونه لري . ( پا ) با خانه های متراکم .

**گڼ گوندي** gaṇ-gwand-í : گڼ گوندیز ، ډېرگوندي ، ډېرگوندیز ، ډېر حزبي ، څوگوندیز ، ( پا ) چند حزبی ، چند حزبه ، ( گڼ گوندي حکومت : حکومت چند حزبی )

**گڼ مېشتی** gaṇ-mést-ay : گڼ استوگن ، ( پا ) پر نفوس ، ( گڼ مېشتی ښار : شهر پر نفوس ) .

**گڼ مېشتي** gaṇ-mest-í : گڼ استوگني ، ( پا ) پر نفوسي ، تراکم نفوس ، کثرت باشنده گان ( در یك محل ) .

**گڼنی** gaṇánay : زیلانغ ، زیلان ، ( پا ) زهدان ، زهدانچه ، ( عر ) رحم ، ( ان ) utriculus, utricle, uterus

**گڼ ولسي** gaṇ-walas-í : گڼ ملتي ، څوملتي ، ( پا ) چند ملتی ، چند میلتی ، ( ان ) molty nationality

**گڼه** gaṇa : شمېر ، شمېره ، گرایمري عدد ، چې د مفرد او جمع ښوونه کوي ، ( پا ) شماره ، عدد دستوری ، ( عر ) رقم ، عدد ( جمع و افراد ) ، ( ان ) number (gram.)

**گڼه وهل** gaṇa-wah-al : شماره وهل ، ( پا ) شماره یا نمره زدن .

**گڼ هېواديز** gaṇ-hewād-íz : گڼ هيوادي ، څوهېوادي ، ( پا ) چند کشوری .

**گواښ** gwāṣ : تور برېښ ، دړکه ، ديکه ، ( پا ) خبرداری ، هوشدار ، ( عر ) اخطار ، ( ان ) warning

**گواښليك** gwāṣ-lík : اخطار ليك ، ( پا ) اخطار نامه ، اخطاريه ، ( ان ) notice, notification

**گوتځنډنه** gwat-cand-ána : گواښ ، گواښنه ، توربرېښ ، غاښ چيچی ، ( پا ) آگاهانی ، آگاهانيدن ، اخطاريه ( تهديد آمېز ) ، هشدار ، ( ان ) warning

**گوتلکی** gwat-lák-áy : رسوا ، ( پا ) انگشت نما ، رسوای عام و خاص .

**گوتنيونه** gwat-niwána : گوتنيوی ، غندنه ، نيوکه ، ټك ( ټکونه کول ) ، ( عر ) انتقاد ، اعتراض ، احتجاج ، ( پا ) انگشت گذزاری ، خرده گيری ، ( ار ) تنقيد ، ( ان ) protest, critique

**گوتنيوی** gwat-niw-áy : گوتنيونه ، گوتځنډنه ، ( پا ) انگشت گذاری ، خرده گيری ، ( عر ) انتقاد ، اعتراض ، احتجاج ، ( ان ) protest, critique

**گوټخونه** gwat-xúna : کوټۍ ، کوټگۍ ، ( پا ) پسخانه .

**گوټ مېچ** gwat-méč : د گوټ ( زاويې ) د مېچ اله ،

( پا ) زاویه سنج ، زاویه پیما ، ( ان ) goniometer

**گوټن** gwaṭ-án : گوټین ، گوټیز ، زاویه لرونکی ، ( پا ) زاویه دار ، گوشه دار ، گوشه یی ، ( ان ) cornered, angular

**گوټناسته** gwaṭ-nǎ́st-a : گوټناستی ، گوښواله ، ( پا ) گوشه نشینی ، گوشه گیری ، خلوت نشینی ، کناره گیری ، ( ان ) seclusion, isolation, sequestration

**گوټناستی** gwaṭ-nǎ́st-ay : گوټناست ، گوښه یې ، ( پا ) گوشه نشین ، ( ان ) recluse, secluded, hermit, isolated

**گوجرو** guǰro : گجراتي ژبه ( پا ) زبان گجراتی ، ( ان ) gujarati

**گوډاگی** guḍa-gáy : ( لاس ) کښېنولی ، برېخی ، نانځکه ، تالي څټی ، ( پا ) دست نشانده ، کاسه لېس ، ( عر ) عمال ، ( ان ) satellite, protege

**گوډیاری** guḍ-yar-áy : مشکوله ، ( پا ) مشکوله .

**گوربتگوټی** gorbat-góṭay : د گوربت بچی ، وړوکی گوربت ( دوبیر ) ، ( پا ) چوچهٔ عقاب ، عقاب خورد ،

**گوربتوزمه** gorbat-wázma : د گوربت ( عقاب ، شاهین ) غوندې ، ( پا ) عقاب مانند ، عقاب وار ،

**گوروأور** gór-o-ór : ( پا ) گور و آتش کنایه از محلی

پر درد و رنج .

**ګوړاخر** goṛa-xar : اوښغویی ، ( پا ) ګور اسب ، ګورخر . ( ان ) zebra

**ګوړمار** gwaṛ-mar : ګوړه پخوونکی ، ( پا ) ګرپز ، کسیکه ګر ( قند سیاه ) را از شیرهٔ نیشکر میسازد .

**ګوزاریز** gozār-īz : یو واریز ( ګوزار یا ضربه ) ، ( پا ) ضربتی ، یك ضربه یی .

**ګوښواله** goṣa-wāla : ګوښوالی ، خانلواله ، ( پا ) انزوا ګرایی ، انزوا طلبی ، ( عر ) انزوا ، تجرید ، ( ان ) isolationism

**ګوګړ سازي** gogaṛ-saz-í : د ګوګړو کار خونه ، د اورلګیدو فابریکه ، ( پا ) کبریت سازی ، کار خانهٔ کبریت سازی ، ( ان ) match factory

**ګومارل** gomar-ál : ګومارول ، مامورول ، پازوالول ، مؤظفول ؛ مقررول ، ( پا ) ګماشتن ، ګماردن ، مامور ساختن ، مؤظف ساختن ؛ مقرر کردن ، تعیین کردن ، ( عر ) توظیف ؛ تعیین ، ( ان ) to commission; to assign, to appoint

**ګومارلی** gomar-al-ay : پازوال ( شوی ) ؛ مقرر ( شوی ) ، ( پا ) ګماشته ؛ مقرر ( شده ) ، ( ان ) commissioned; appointed

**ګومارنه** gomār-ana : ګومارونه ، پازوالونه ، موظفونه ، توظیفونه ، مامورونه ؛ مقرري ، (پا) مامور ساختن ، ماموریت دادن ، مقرر یا نصب کردن ، (عر) تقرر ، توظیف ، انتصاب ، (ان) commission; appointment

**ګوماني** goman-ī : شکي ، شکمن ، اړنګمن ، (ګوماني تېر مهال : شکیه ماضی) ، (پا) شکی ، شکیه ، احتمالی ، (ماضی) شکیه .

**ګوماني کړ** gomanī-kaṛ : ګوماني (شکیه) فعل ، (پا) فعل احتمالی .

**ګومبی** gumbāy : (د ګومبزې) قبه ؛ د بکیانۍ دانې ، (پا) قبه ؛ دانه های درخت رنګان .

**ګوند** gwand : ګوندری ، ګوندي ، (سیاسي) ډله ، ډله ټپله ، سازمان ، (عر) حزب ، جمعیت ، (پا) دسته ، پارتی ، ګروه سیاسی ، حزب .

**ګوندي** gwand-ī : ګوندیز ، د ګوند اړوند ، د ګوند غړی ، (پا) حزبی ؛ عضو حزب ، (ګوندي چارې : امور حزبی) .

**ګونګړي** gungṛī : چولي ، (پا) شورنخود ، لوبیا جوش داده شده .

**ګونګوالی** gung-wāl-ay : مغه پېچلتیا چې په مانا او

تعبير كې پېښېږي، ( پا ) ابهام ( در معنى ).

**گونگوسی** gung-gusáy : گونگوسه، پسپسی ( غږ پوهنه )، ( پا ) نجوا، پس پس، ( ان ) whisper

**گهیځ ښه!** gahíj-ṣa : سهار ښه، گهیځ دې ښه! سهار دې ښه! ( پا ) صبح بخير، ( عر ) صباح الخير! ( ان ) goodmorning!

**گهیځ مهال** gahíj-mahā́l : سهار مهال، د گهیځ وخت، ( پا ) صبحگاهان، بامدادان، صبحدم، سحر گاهان.

**گهیځنۍ** gahij-an-áy : سهارنۍ، سباناری، بریځری، ( پا ) صبحانه، صبحگاهی، ناشتا، ( ان ) breakfast

**گې** ge : د پښتو ابېځې ( الفبې ) درویشتم توری، ( پا ) حرف بیست و سوم الفبای پشتو، گاف.

**گیاخور** gayā-xór : وښور، واښه خور، گیا خوړوونکی، ( پا ) گیاه خوار، ( ان ) herbivorous, vegetarian; herbivora ( گیاه خواره ).

**گیا خوري** gayā-xor-í : گیا خوړنه، واښه خوړنه، ( پا ) گیاه خواری، ( ان ) vegetarianism, herbivority

**گیلې او مانې** gilé-aw-māṇé : گیلې گوسې، ( پا ) گله ها و رنجش ها.

**گېڼ .لوبه** geṇ-lóba : پڼډوسلوبه، ( پا ) توپ بازی، ( ان ) ball game

# (ل)

**لاټول** lāṭ-wál : پاړکیوال ، چندی ، ( پا ) شعر گو ، ( عر ) شاعر ؛ ( ان ) versifier, poet

**لاډېرگړی** lā̆-ḍer-gaṛ-ay : د ډېرگړي ' ډېرگړی ، ( جمع الجمع ) ، ( عر ) جمع الجمع .

**لار اواری** lar-awar-ay : لارهواری ، لار اوارونه ، لار برابرونه ، ( پا ) زمینه سازی .

**لاربني** lar-ban-í : لارښوونه ، بومیا گلوي ، سرغندویي ، مشري ، ( پا ) راهنمایی ، رهنمایی ، رهنمونی سر کرده کی ، رهبری .

**لاربه** lār-bá : لارښود ، محکښ ، سرکښ ، سرغندوی ؛ سرلاری ، سرغندوی ، سرغنه ، ډینغه ، سپرځی ، لار ښوونکی ، ( پا ) رهنما ، راهنما ، رهبر ، پیشرو ، سالار ، رهنمون ، پیشوا .

**لارپالی** lar-pāl-ay : --> لاروی .

**لار ساتی** lār-sắt- ay : د لارې ساتونکی، ( پا ) راهبان، ( ان ) road-guard, highway patrol

**لار ښود** lār-ṣód : لاربه، لار ښووان، لار ښوونکی؛ مشر، ( پا ) رهنما؛ رهبر، رهنمون؛ رهنمود، دستور، ( ان ) guide, leader; directive

**لار ښوده جرګه** lár-ṣóda-ǰargá : لارښوده شورا، ( پا ) شورای رهبری.

**لار ښووان** lár-ṣow-ắn : --> لار ښود ( د لار ښود مفرد او جمع ).

**لارغه** lārγá : ( لنډه ) شېبه یا وقفه، لانډو، درنګ، ( پا ) درنګ، ایست، ( عر ) مکث، وقفه، لحظه، لمحه، آن، ( ان ) moment; pause

**لارغه يي** lārγa-yí : شېبه يي، شېبه ييز، ( پا ) آنی، لحظه یی، وقفه یی؛ ( عر ) وقفوی، لحظوی لمحوی.

**لارليك** lār-lík : عبور ليك، لېږد ليك، ( پا ) گذر نامه، عبور نامه.

**لارورکی** lār-wrák-ay : ورکلاری؛ بې لارې، لارپرېښی ( پا ) راه گم کرده؛ گمراه.

**لارو روده** lắr-o-róda : لاره روده، ليارو لېله،طرز و

توگه، ( پا ) راه و روش، روال وروش، شیوه و قانون، طرز و شیوه، طریقه و شیوه، ( ان ) way and road, method,

**لاروړی** lār-a-waṛ-ay : د لارې ډالی، ( پا ) ره آورد، ( ان ) souvenir, gift or present brought from a journey

**لار وهونی** lár-wah-ún-ay : لار شکوونی، شوکمار، لار وهونکی، ډاکمار، ( پا ) رهزن، راهزن، ( ان ) قطاع الطریق، ( ان ) bandit, highway robber, highwayman

**لاروی** lāraway : لار تلونکی، په چاپېر تلونکی، لارپالی، لارپال، ( پا ) راهرو، رهرو، رونده؛ پیرو .

**لاروي** láraw-í : ( وروسته ) تلنه، په چاپسې تلنه ( پا ) پیروی، رهروی، ( ان ) following, pursuing

**لاره روده** lāra-róda : روده لار، لېله لار، ( پا ) راه و روش، راه و روال، راه و شیوه .

**لارې چارې** lāre-čāre : لارې وسیلې، ( پا ) راه ها ووسیله ها، ( عر ) امکانات، ( ان ) possibilities

**لاریز** lār-íz : لارې لارې، لیکې لیکې، ( پا ) راهدار، خط کش شده، خط دار، خط کشیده شده، راه راه، رگه رگه، ( ان ) stript, lined

**لاريون** lār-yún : ځاو ، ( پا ) مارش ، راه پيمايي ، ( ار ) جلوس ، ( ان ) march

**لاړيس** laṛ-is : لاړيز ، دوه څرخه ، يوه کی ، سايکل ، ( پا ) دو چرخه ، ( ان ) bicycle

**لاس اخيستنه** lās-axist-ána : ( پا ) دست بر داری ، صرف نظر ، استعفاء ، کناره گيری ، ( ان ) abhandonment; resignation

**لاس اخيستی** lās-axíst-ay : لاس پر سر ، کار پرېښی ، استعفاء کوونکی ، ( پا ) کناره گير ، استعفاء داده ، ( عر ) مستعفی ، ( ان ) resigned, resigning

**لاس اړی** lās- áṛay : اړ ، تشلاسی ، تنگلاسی ، ( پا ) تهيدست ، نيازمند ، ( عر ) مفلس ، محتاج .

**لا سباړه** lās-báṛa : لاسمزد ، لاس سره ، ( پا ) دستمزد ، ( عر ) حق الزحمه ، اجرت ، ( ان ) fee, wage, earning

**لاسبری** lās-baray : لاسباندي ، لاسبر ، ( پا ) بالا دست ، چيره دست ، کامياب ، ( عر ) مسلط ، مستولی ، غالب ، فايق ، موفق .

**لاسبری** lās-baray : لاسباندی ، برلاسی ، ( پا ) بالا دستی ، چيره دستی ، دستيابی ، کاميابی ، دسترسی ، ( عر ) تسلط ، استيلاء ، غلبه ،

**لاسپاکی** lās-pākay : ( پا ) کسیکه گناهی را بر دوسشش میأندازند ( زرغون د تورپالی لاسپاکی دی : تورپالی خپل لاس پر زرغون پا کوي ، خپله گناه پرده اچوي ) .

**لاسپاکی** lās-pāk-áy : پر بل لاس پاکونه ، خپله پړه یا گرمه پر بل چا اچونه .

**لاسپړکا** lās-pṛakā́ : لاس پړك ، لاس پړکونه ، چکچکې ، چکچك ، ( پا ) چکچك ، کف زدن ، ( ان ) to clap (the hands), to applaud

**لاسپورته** lās-pórta : لاس جگ کړی ، سلامي شوی ( تسلیم ) ، ځانسپارلی ؛ دعا کوونکی ، ( پا ) تسلیم شده ؛ دعاگوی .

**لاستېره** lās-tér-a : لاس تېرونه ، مښنه ، مسح ( کول ) ، لمس ( کول ) ، ( پا ) دست کشیدن ، مالش ، ( عر ) مسح ، لمس ، ( ان ) anointing, rubbing

**لاستېری** lās-teráy : بلوسنه ، تېری ، ( پا ) دست درازی ، ( عر ) تجاوز .

**لاس څپوڼی** lā́s-capóṇ-ay : لاسپاك ، ( پا ) دستپاك ؛ دستمال دست ، دستمال ، ( ان ) napkin; kerchief, handkerchief

**لاسرغاوگر** las-raγ-āw-gar : لاسکاری ، ( پا )

صنعتکار دستی .

**لاسرغاوه** lās-rağ-āwá : لاسي رغاوه ( صنعت ) ، لاسي کار ، ( پا ) کار دستی ، صنعت دستی ، ( ان ) crat, handicraft, handiwork

**لاسرغاويز** lās-rağāw-íz : د لاسي کار اړوند ، ( پا ) مربوط کار دستی ( صنائع دستی ) ، ( ان ) craft..., handicraft..., handiwork...

**لاس روغبړ** lās-roğbāṛ : دلاس ورکونې ستړي مشي ، لاس ورکړه ، ( پا ) دست دادن ، رو بوسی ، ( عر ) مصافحه ، ( ان ) shaking

**لاس شخولی** lās-šxwálay : لاسکڅوړه ، ( پا ) دستکول ، بکس دستی ، کیف ، کیسه ، بستهٔ دستی ، ( ان ) bag, handbag

**لاسکاری** lās-kā́r-ay : ورمنگر ، لاسرغاوگر ، کسبگر ، ( پا ) کسبکار ، پیشه ور ، ( عر ) کاسب .

**لاسکاري** lās-kār-í : ورمنه ، ورمنگري ، ( پا ) کسبکاری ، کسب کار ، پیشه وری .

**لاسکتوی** lās-kat-áw-ay : لاسلاندې ، ( پا ) زېر دست ، ( عر ) مادون ، ماتحت .

**لاسکښلی** lās-kṣ-āl-ay : قلمي، خطي، ( پا ) دستنویس، رونویس، ( ان ) manuscript, trancript

**لاسکښنپوه** lās-kṣan-póh : لاسکښنپوهاند، ( پا ) نسخه شناس، متخصص نسخه شناسی، پالیوگراف، ( ان ) polygraph

**لاسکښنپوهه** lās-kṣan-póha : نسخه پوهنه، ( پا ) نسخه شناسی، پالیوگرافی.

**لاسکښنپوهیز** lās-kṣan-poh-íz : د لاسکښنپوهې ( نسخه پوهې ) اړوند، ( پا ) نسخه شناختی، پالیوگرافیکی.

**لاسکښنه** lās-kṣana : لاسلیکنه، ( پا ) رونویسی، دستنویسی، دستنویس، نسخهٔ خطی، دستخطی، نسخهٔ قلمی، ( عر ) استنساخ، نسخه، ( ان ) copying, transcription. manuscript

**لاسکښونکی** lās-kṣunkay : نقلوونکی، ( پا ) استنساخ کننده، نسخه بردار، رونوشت بردار، ( عر ) مستنسخ، ( ان ) scribe, copyist, transcriber

**لاسکښېنولی** lās-kṣe-na-wāl-ay : گوډاگی، ( پا ) دست نشانده، ( ان ) satellite, protepe

**لاس گاډی** lās-gā́ḍay : لاسي کراچۍ، ( پا ) کراچی

دستی .

**لاسګټه** lās-gāṭa : لاسمزد ، لاس سره ، لاسباړه ، ( پا ) دستمزد ، ( عر ) حق الزحمه ، اجرت ، ( ان ) fee

**لاسګری** lās-gār-ay : مرستی ، ( پا ) دستیار ، مددگار .

**لاس ګړی** lās-garáy : د لاس ګړه ، ( ساعت ) ، ( پا ) ساعت بند دست ، ساعت مچی ، ( ان ) wristwatch

**لاس ګنډنه** lās-ganḍ-ána : لاس سکوینه ، ( پا ) دست دوزی ، ( ان ) hand-sewing

**لاسلاندې** lās-lā̃nde : لاسکتوی ، ( پا ) زیر دست ، ( عر ) ماتحت ، مادون ، ( ان ) underling

**لاسلاندیوالی** las-lande-wā̃l-ay : ( پا ) زیر دستی ، مادونیت .

**لاس لګی** lās-lagáy : لاس لګونه ، دسوك ځپېړې جنګ ، ( پا ) دست اندازی ، زد و خورد ، دست بگریبان ،

**لاس لېټی** lās-leṭáy : د لاس غوړولو کریم . ( پا ) کریم دست ، ( ان ) cream for face

**لاسلیك** lās-lík : دسخط ، ( پا ) دستخط ، امضاء ، امضایی ، دستینه ، ( ان ) signature, autogram

**لاسلیکنه** lās-lik-āna : ( پا ) دستنویس ، مسوده ،

دستخط ، رونویس ، دستنوشته ، ( ان ) handwritten-manuscript

**لاسليکول** lās-lik-aw-ál : لاسليك کول ، امضاء کول ، دستخطول ، ( پا ) امضاء کردن ؛ تصويب کردن ، ( ان ) to sign; sanction, approval

**لاسليکی** lās-lik-áy : لاسي کتاب ، ( پا ) کتاب دستی ، ( ان ) manual (book)

**لاسنيوه** lās-niwá : پاتا ( فاتحه ) اخيستنه ، ( پا ) فاتحه خوانی ، فاتحه گيري .

**لاسنيوی** lās-niw-áy : لاسنيونه ، لاسنيوه ، ( پا ) دستگيری ، پير گرفتن ، پيروی طريقت .

**لاس و پښې** lā́s-o-pṣé : لاسومځه ، ( پا ) دست و پا ؛ سعی و تلاش ، ( ان ) hand and foot; effort, shift

**لاسولونې** lās-wl-ún-e : د لاس مينځلو ځای يا لوښی ، ( پا ) دستشويه ، دستشويی ، ( ان ) washbasin, washstand, lavatory

**لاسوند** lās-wánd : ( پا ) دستاويز ، ( عر ) سند ، دليل ، مدرك ، ( ان ) reason, document

**لاسوهاند** lās-wah-ā́nd : لاس وهونکی ، لاسمنډی ،

( پا ) مداخله گر ، ( ان ) interferer

**لاسوهنه** lās-wah-āna : لاسمنډون ، لاسمنډی ، ( پا ) مداخله ( گیری ) ، ( ان ) interference

**لاسیوی** lās-yaw-āy : یو لاسی ، پیوستون ، یو موټی والی ، ( پا ) پیوستگی ، یگانگی ، همبستگی ، همآهنگی ، ( به ) همفشرده گی ، ( ان ) union, unity, coalition

**لالرنغوتنومځری** lā-lar-nɣot-num-jāray : لالرې اشاري ضمير ، ( موغه ) ، ( پا ) ضمير اشاری بعيدتر ( مثلا در پشتو ) ،

**لالوزمه** lāl-wāzma : د لال ( لعل ) غوندې ، ( پا ) لعل گون ، لعل فام ، ( ان ) rosy, ruby-colo(u) red

**لاله رنگ** lāla-rāng : لاله وزمه ، غاټول وزمه ، غاټول غونی ، ( پا ) لاله گون ، لاله رنگ .

**لامبوگر** lāmbo-gār : لامبونکی ، لامبوزن ، لامبووهونکی ، ( پا ) شناگر ، آبباز ، ( ان ) swimmer

**لامبونکی** lāmb-ūnkay : لامبوزن ، لامبووهونکی ، ( پا ) شناور ، شناگر ، آبباز ، ( ان ) swimmer

**لامل** lāmāl : کبل ، توسن ، دك ، لاسوند ، ( پا ) دستاویز ، انگیزه ، بنیاد ، ( عر ) سبب ، علت ، دلیل ، وسیله ، عامل ، موجب ،

وسیله ، ( ان ) cause, reason, occasion, factor

**لاملپېر** lāmál-per : توسنپېر ، علتیه پېر ( حالت ) ، ( پا ) حالت علتیه ، ( ان ) causative

**لانجمار** lānǰa-mā́r : لانجه يي ، داوه گر ، دنګله يي ، غوريال ، ربړه مار ، ( پا ) پرخاشګر ، دعوا جلب ، ( عر ) منازع .

**لانجمن** lānǰa-mán : لانجه يي ، لانجه ييز ، شخړه ييز ، شخړن ، ناندريز ، ( پا ) دعوایی ، مورد نزاع ، ( عر ) متنازع فيه ، ( ان ) disputed, problematic

**لټند** láṭ-and : لټونکی ، ( پا ) جستجوګر ، ( عر ) متجسس .

**لڅاوو** lac-āw-ú : لوڅاوو ، برسپراند ، رابرسپرونکی ، ( عر ) کشاف ، کاشف ، ( ان ) discoverer, revealer

**لټونکی - موندونکی**

: laṭ-ún-kay-mund-ún-uay : لټونکی موندونکی دی ، ( پا ) جوینده یابنده است ، ( عر ) من طلب فقد و جد .

**لرتېرمهال** lár-ter-mahā̃l : تېره ( فعلی ) زمانه ، ( پا ) ( زمان ) گذشتهٔ بعید ، ماضی بعید ، ( ان ) past perfect, past participle

**لرختيځ** lár-xat-ī́j : لرې ختيځ ( مشرق ) ( پا ) خاور دور ، شرق دور .

**لرستاينوم** lár-stāy-num : هغه ستاينوم ( صفت ) چې تر خپل ستايلي ( موصوف ) وروسته په خبري برخه کې راځي ، ( پا ) ( اسم ) صفت که بعد از موصوفش در قسمت و يا فقرهٔ خبري ميايد ، ( ان ) predicative adjective

**لرغړون** lar-ɣaẓ-ún : لرغږی ، ټېلېفون ، ( پا ) تيلفون ، تلفن ، ( ان ) telephone ( جر ) fernsprecher

**لرغونپلور** larɣun-plór : د لرغونو څېزونو ( اثارو ) دوکان ، ( پا ) عتيقه فروشی ، ( ان ) antique shop .

**لرغونپلوری** larɣun-plór-ay : د لرغونو څېزونو پلورونکی ، ( پا ) انتيك فروش ، فروشندهٔ اثار عتيقه ، عتيقه فروش ، ( ان ) antique seller

**لرغونپوه** larɣun-póh : لرغونپوهان ، لرغونپوهاند ، ( ناکره ) لرغونپېژندونکی ، ( پا ) باستان شناس ( ان ) archaeologist

**لرغونپوهاند** larɣun-pohā́nd : ( لوی ) لرغونپوه ، ( پا ) باستانشناس ، ( ان ) archaeologist

**لرغونپوهنه** larɣun-poh-ána : هغه پوهنه ( علم ) چې لرغوني اثار څېړي ، ( ناکره ) لرغونپېژندنه ، ( پا ) باستانشناسی ، ( ان ) archaeology

**لرغونپوهنيز** larɡun-poh-an-íz : د لرغونپوهنې ( ارکيالوجي) اړوند ، ( پا ) ارکيولوژيکی ، باستانشناختی ، ( ان ) archaeological

**لرغونخوښونه** larɡun-xwaṣ-aw-ána : لرغونپالنه ، لرغونواله ، ( پا ) قدامت پسندی .

**لرغونی** larɡúnay : لرغون ، پخوانی ، ( پا ) باستانی ، قديمی ، پيشينه .

**لرکړی** lár-kṛay : بالواسطه مفعول ، ( پا ) مفعول با واسطه ، ( ان ) indirect object, dative

**لرکړی پير** lár-kṛay-pér : د باواسطه مفعول حالت ، ( پا ) حالت مفعول با واسطه ، ( ان ) dative

**لرگبه** larg-bá : لرگي والا ، لرگي خرڅوونکی ، ( پا ) چوب فروش .

**لرگتوږاند** larg-toẓ-ắnd : په لرگيو کې د انځور جوړونې ماهر ، ( پا ) کنده کار ( چوب ) ، ( ان ) wood engraver

**لرگماتی** larg-mắt-ay : لرگي ماتوونکی ، لرگبه ، ( پا ) چوب شکن ، هېزم شکن ، ( ان ) wood man, wood-cutter

**لرگين** larg-ín : له لرگي جوړ يا لرگي ته ورته ، ( پا )

چوبی ، چوبین .

**لرليد** lar-líd : ستر گليد ، ( پا ) دور نما ، چشم انداز ، ( ان ) landscape, panorama, perspective

**لرليدوال** lar-lid-wǎl : لرليدپال ، ( پا ) دور نما گرا ، ( ان ) landscapist

**لرليدواله** lar-lid-wǎ́l-a : لرليدپالنه ، ( پا ) دور نما گرايی ، ( ان ) landscapism

**لر ليدی** lar-líd-ay : لرې ليدونکی ، لروين ، لروينی ، لرې ليدونکی سړی يا سترگې ( عينك ) ، ( پا ) دور بين ( انسان ، عينك ) .

**لرليديز** lar-lid-íz : لرليدي ، د لرليد ( دورنما ) اړوند ، ( پا ) دور نمايی ، دارای دور نما ، ( ان ) panoramic

**لرليکنی** lar-lik-án-ay : مغه ليك ماشين ( ټايپرايټر ) چې مخابراتې ليك ټايپوي ، ( پا ) تيلی تايپرايتر ، ماشين تحرير تلگرافی ، ( ان ) teleprinter, tele- typwriter

**لرليکون** lar-lik-ún : تېلگرام او د تېلگراف ماشين ، ( پا ) تلگرام ( تلگراف ) والهٔ فرستندهٔ تلگرام ، ( ان ) telegraph, lelegram

**لرليکونپوهه** lar-lik-ún-póha : د تېلگراف پوهه

( علم )، ( پا ) علم تلگراف، ( ان ) telegraphy

**لرليكونوال** łar-lik-ún-wăl : تيلگرافچي، ( پا ) تلگرافچی، ( ان ) telegrapher, lelegraphist

**لرليكوني** lar-lik-un-í : تېلگرافي، ( پا ) تلگرافی، ( ان ) telegraphic (-ally)

**لرنغوتنومځرى** lár-nǥot-num-járay : لرې اشاري ضمير ( هغه )، ( پا ) ضمير اشارى بعيد .

**لرواټنى** lar-wáṭan-ay : د لرى واټن ( فاصلې ) اړوند ( توغندى، وسله ... )، ( پا ) دوربرد، دور منزل .

**لروين** lar-wín : لر ځرك، لرلېدونكى، لروينى، لرليدى؛ دوربين، ( پا ) دور بين، ( ان ) telescope, field glass, opera glasses

**لروينون** lar-win-ún : تېلوېژن، ( پا ) تلويزيون، ( ان ) television (t.v.)

**لرې همرنگي** láre-ham-rang-í : ناگاونېې همرنگي، ( پا ) همگونى دور، ( ان ) distant assimilation

**لړم** laṛám : لړم، د لړم مياشت ( د لمريزې كليزې اتمه مياشت، ( پا ) گژدم؛ عقرب، آبان ماه، ( ان ) eighth Afghan solar month

**لړی** laṛay : لړ ( سلسله ) ، ( عر ) سلسله ، ردیف ، قطار ، ( پا ) رشته ، زنجیر ، ( ان ) chain, series

**لږتر لږه** láẓ-tar-láẓa : کم تر کمه ، ( پا ) کم از کم دست کم ، ( عر ) لااقل ، اقلا ، ( ان ) a least, at least

**لږنی** laẓ-an-áy : لږه کی ، ( پا ) کمترین ، کهترین اقلیتی ، ( عر ) اقلیت ، ( ان ) smaller group, minority

**لږوډېر** láẓ-o-ḍér : کم و زیات ، څه نا څه ، ( پا ) کما بیش ، کم و بیش ، تقریبی ( ان ) more or less, almost

**لږه کی** laẓakáy : لږنی ، لږی ، لږواله ( پا ) کمترین ( عر ) اقلیت ، ( ان ) minority

**لږه کی گوند** laẓ-ak-áy-gwand : بېل ( مخالف ) گوند ، ( پا ) حزب اقلیت ، حزب مخالف ، ( ار ) حزب اختلاف ، ( ان ) monage, opposition party .

**لس غمیز** las-jam-íz : لس غمي لرونکی ( پسول گړه ... ) ، ( پا ) ده نگینه .

**لس زری** las-zar-áy : لس زریز ، د لس زرو ( افغانیو ) بېنکنوټ ، ( پا ) ده هزاری ( بانکنوت ) .

**لسگونی** las-gún-ay : لسگون ، لسگیز ، لسی ( پا ) ده ( بانکنوت ) .

**لسيزه** las-íza : لس كليزه، لس كلني، لسګلن پېر ؛ لس بيتيزه ( شعر )، ( پا ) دهه؛ ده بيتی، ( عر ) معشر، ( ان ) decade

**لښتيليك** laṣti-lík : ( پا+ عر ) جدول، ګراف، ( ان ) chart, diagram

**لښكرتون** laṣkar-tún : لښكرځی، لښكركوټ، ( پا ) لشكرګاه، اردو ګاه، پنډغالی، ( ان ) camp

**لښكر كوټ** laṣkar-kóṭ : پوځي مېشتځای، پوځي كلا، ( پا ) قرار ګاه نظامی، اردو ګاه، مقرارتش، لشكر ګاه، ګارنيزيون، پادګان، ( ان ) garrison

**لښكر لېږد** laṣkar-léẓd : ( د جنګ لپاره ) پوځي لېږد ( انتقال )، ( پا ) لشكر كشی، سفر بری، ( جنګ )، ( ان ) military expedition, compaign

**لښكر لېږدي** laṣkar-leẓd-í : د لښكر لېږد ( سوق الجيشی ) اړوند، ( پا ) مربوط لشكر كشی يا سفر بری، ( ان ) strategic, about military expedition

**لښكر ماتی** laṣkar-mắt-ay : لښكر ماتوونكی، ( پا ) لشكر شكن، فوج شكن.

**لښكر ننداری** laṣkár-nandaré : په كابل ( عسكري

کلوپ) کې د ځلوېښتمو کلونو له پيل سره جوړ شوی تياتر ( تهيتر ) ( پا ) لښکر ننداری، يکی از تياتر های سابق مربوط اردو در کابل.

**لښکروال** laṣkar-wā̆l : لښکر پال، پوځيوال، ( پا ) نظاميگر، نظاميگرا، ( ان ) militarist

**لښکرواله** laskar-wȧla : پوځيواله، ( پا ) نظاميگرايی، نظاميگری، ( ان ) militarism

**لښکري** laṣkar-í : پوځي، ( پا ) لشکری، نظامی، ( ار ) فوجی.

**لگښت** lag-ȧṣt : خرڅ، لگون، ( پا ) خرج و مصرف، ( عر ) مصرف، استهلاك، تمويل.

**لگښتتوکي** lag-aṣt-tóki : د لگښت ( مصرف ) توکي، ( پا ) مواد استهلاکی، مواد مصرفی.

**لگښتوال** lag-aṣt-wā̆l : لگښت والا، مصرفوونکی، استهلا کوونکی، ( پا ) استهلاکگر، مصرف کننده، ( عر ) مصرف، مستهلك، ( ان ) consumer

**لگښتي** lag-aṣt-í : د لگښت وړتوکي، ( پا ) ( مواد ) مصرفی و استهلاکی.

**للونگر** lalun-gár : للونوونکی، گوړگر، ( پا ) خيشاوه

گر ، وجین گر ، وجین کن ( آدم یا ماشین ) ، ( ان ) weeder

**لمباځی** lamb$\bar{a}$-jáy : د لمبا ړنې یا کوټه ( تشناب ) ، ( پا ) شنا گاه ، حوض آببازی ، محل شستشو ، تشناب ، ( ار ) غسلخانه ، ( ان ) bathrom, swimmingpool, swimming-bath

**لمبی** lamb-áy : څراغ ، لمپه ( پا ) چراغ ، لمپه ، لامپ ، لامبا ، ( ان ) lamp

**لمر پېښتی** lmar-pást-ay : لمر پېښت ، لمر گروهی ، ( پا ) آفتاب پرست ، معتقد به آفتاب ، ( ان ) sun worchipper

**لمر پېښتي** lmar-paṣt-í : لمر گروهي ، لمر گروهه ، ( پا ) آفتاب پرستی ، ( ان ) sun worship

**( د ) لمر تله** (da) lmar-tála : ( پا ) استرلاب ، اسطرلاب ، ( ان ) astrolabe

**لمر تندره** lmar-tandra : لمرنیونه ، د لمر تندرنیونه ، ( پا ) آفتاب گرفتگی ، ( عر ) کسوف ، ( ان ) sun-eclipse

**لمر څرك** lmar-crák : لمر ځیره ، لمر څریکه ، لمر څړیکه ، لمر ځیره ، لمر خاته ، ( پا ) آفتاب بر آمد ، نوك آفتاب ، ( عر ) طلوع ، ( ان ) rising of the sun

**لمر څرکی** lmar-crák-ay : پیتاوی ، ( پا ) پیتاو ،

آفتاب رخ ، آفتابی .

**لمرڅيره** lmar-círa : --> لمر ځرك .

**لمرختن** lmar-xat-án : لمرخاته، لمر ځرك ( ځريكه )، ( پا ) آفتاب بر آمد ، ( ان ) rising, rising of the sun

**لمر غونډال** lmar-ɣwanḍ-ā̆l : شمسی نظام، ( پا ) نظام شمسی ، منظومهٔ شمسی ، ( ان ) solar system

**لمر ګلی** lmar-gwál-ay : کاپر ګل، نور ( نمر ) پرست ( پا ) ګل آفتاب پرست ، آفتاب ګردان ، ( ان ) sunflower

**لمرلوېدن** lmar-lwed-án : لمر لوېده، لمر پرېواته ، ( پا ) آفتاب نشست ، ( عر ) غروب ، ( ان ) sun set

**لمر مخې** lmar-máx̌-e : د لمر په څېر سپينه او ښکلې ، ( پا ) آفتاب رو ( مؤنث ) .

**لمر نښان** lmar-neṣ̌ā́n : د آزادی لمر نښان لنډون ، ( پا ) نشان خورشيد ( آزادي )، عاليترين نشان افتخاری دولتی افغانستان .

**لمر وړانګې** lmar-wṛā́nge : د لمر وړانګې ، د لمر پلوشې ، ( پا ) اشعهٔ آفتاب .

**لمريز** lmar-íz : لمرين ، ( پا ) خورشيدی ، آفتابی ، ( عر )

شمسی ، ( ان ) solar

**لمريز ليږدي** lmar-íz-leẓd-í : لمريز هجري ( كال ، كليز ) ، لمريز ( هجري ) ، ( پا ) هجری شمسی ، هجری خورشیدی ، ( ان ) Hejira (Moslem era) computed according to a solar calendar

**لمريز و سپوږميز** lmar-íz-o-spoẓm-íz : د لمر او سپوږمی اړوند ، ( نظام ، تقويم . . . ) ، ( پا ) شمسي و قمری ، ( ان ) lunisolar

**لمسوني** lams-un-í : لمسونی ، ټومبونکی ، ( پا ) تحریك آميز .

**لمن انځور** lamán-anjór : ( پا ) حاشيه آرايی ، تزئين حاشيه يی .

**لمنليك** laman-lík : پايليك ، پايڅوړ ، ( پا ) پاورقی ، حاشيه ( نويسی ) ، ( ان ) margin, marginal note

**لمنليكونكی** laman-lik-únkay : حاشيه ليكونكی ، ( پا ) حاشيه نويس ، ( عر ) محشی ،

**لمنلیکنه** laman-lik-ána : حاشیه لیکنه ، ( پا ) حاشیه نگاری ، حاشیه گزاری ، ( ان ) margination

**لمنلیکونه** laman-lik-úna : حاشیه یي یادښتونه ، پایڅوړونه ، ( پا ) یادداشتهای حاشیه ، ( ان ) marginalia

**لمنور** laman-wár : لمنیز ، ( پا ) دامن دار ، دامنه دار ، پر دامنه ؛ حاشیه دار ، ( عر ) محشی .

**لمنیز** laman-íz : لمنور .

**لمونځغاړی** lmunj-ǵā́ṛ-ay : لمونځ کړونی ، لمونځ کوونکی ، لمونځي ( مونځي ) ، ( پا ) نماز خوان ، نماز گزار .

**لمونځ کړونی** : lmunj-kṛ-ún-ay

--> لمونځغاړی .

**لمېساند** lmes-ā́nd : کښونکی ، لیکونکی ، مسوده کښونکی ، ( پا ) سواد نویس ، چرك نویس ، رونویس .

**لمېسنه** lmes-ána : لیکنه ، آره لیکنه ، ( پا ) اصل نوشته ، رو نوشت ، پیش نوشت ، ( عر ) مسوده ، تسوید ، ( ان ) rough copy, draft, origin

**لمېسه** lmés-a : لمېسنه ، لیکنه ، ( پا ) نگارش ؛ رو نوشت ، چرك نویس ، پیش نویس ، ( عر ) تسوید ، مسوده ، ( ان ) rough copy, draft, script

**لنړا لواکی** land-alwā́k-ay : لنړ لیدی ، لنډوینی ، لنړ وین ، لنړ نظری ، ( پا ) کوته نظر ، کوتاه نظر ، ( ان ) narrow-minded, shortsighted

**لنړ الواکي** land-alwāk-í : لنړ لیدي ، لنډويني ، لنړ نظري ، ( پا ) کوته نظری ، کوتاه بینی ، ( ان ) shortsightedness, improvidence

**لنړ اندی** land-ánd-ay : لنړاك ، پوهلنړی ، ( پا ) کوته فکر ، کوتاه اندیش ، ( ان ) feeble - minded, improvident, foresight

**لنړ اندي** land-and-í : لنړاکي ، لنړ فکري ، ( پا ) کوتاه اندیشی ، ( ان ) feeble-mindedness, lack of foresight

**لنړ باوری** land-bāwár-ay : ژر باوری ، ساده ، ( پا ) زود باور ، ساده ، ( ان ) credulous, naive

**لنړ باوري** land-bāwar-í : ژر باوري ، ( پا ) زود باوری ، ( ان ) credulity, naivety

**لنړ پوهی** land-póh-ay : پوهلنړی ، ساده باده ، ( پا ) ساده دل ، ساده لوح ،

**لنړ تنگ** lánd-táng : لنړ گنړ ، ( پا ) محدود ، ( ان ) limited

**لنډ تېر مهال** lánd-ter-mahā́l : قريبه ماضي، ( پا ) ماضی قریب، ماضی نقلی، ( ان ) present perfect or participle

**لنډ ځوابی** land-jwā́b-ay : ژرځوابی، غوځ ځوابی، ( پا ) با جواب قاطع، حاضر جواب،

**لنډ ختیځ** lánd-xat-ī́j : نژدې ختیځ، ( پا ) شرق نزدیك، خاور نزدیك،

**لنډ ستاينوم** lánd- stāy-núm : هغه ستاينوم ( صفت ) چې تر خپل ستايلي ( موصوف ) دمخه پيوست راځي ( لکه سپين کور )، ( پا ) صفت که بلا فاصله بعد از موصوف ميايد ( مانند خانهٔ سفيد )، ( ان ) attributive adjective

**لنډ غر** landa-ǰár : ناڕام، بړواك، غرغره يي، ړانگه يي، ( پا ) اوباش؛ ماجراء جو، ( ان ) roguish; adventurous

**لنډ کړی** lánd-kṛay : بې واسطه معفول، ( پا ) مفعول بی واسطه، ( ان ) direct object

**لنډ کړی پېر** lánd-kṛay-per : د بېواسطه مفعول حالت، ( پا ) حالت مفعول بيواسطه ( صريح )، ( ان ) accusative

**لنډکی** landa-káy : لنډۍ ورته وگړنی شعر، ( پا ) نوعی

شعر فلكلوريك پشتو .

**لنډ گروهی** land̩-gróh-ay : تنگ نظری ، تنگ وینی ، لنډ لیدی ، تنگالواکی ، ( پا ) تنگ نظر ، ( عر ) متعصب ، ( ان ) bigot, fanatic

**لنډ گروهي** land-groh-í : تنگ نظري ، تنگ ويني ، تنگ ليدي ، ( پا ) تنگ نظری ، ( عر ) تعصب ، ( ان ) fanaticism bigotry

**لنډ گروهیز** land̩-groh-íz : تنگ نظرانه ( پا ) تنگ نظرانه ، تعصبی ، متعصبانه ، ( ان ) fanatical, fanatically

**لنډلیدی** land̩-líd-ay : لنډوینی ، هغه څوك یا نرگس ( چشمې ) چې لرې نه شي لیدای یا لرې پرې نه لیدل کېږي اند اندی ، ( پا ) شخص و یا عینك نزدیك بین ، کوتاه بین .

**لنډ لیك** land̩-lík : توندلیك ، ژرلیکنه ، ( پا ) تند نویسی ( ان ) short-hand

**لنډ مهالی** land̩-mahā̆l-ay : د لنډ مهال ( وخت ) لپاره ، ( پا ) کوتاه مدت ، ( عر ) قصيرالمدة ، ( ان ) short term ( بډ : اوږد مهالی ) .

**لنډ منگی** land̩-máng-ay : لنډ عمری ، لنډ ژوندی ، لنډ مانی ، کم پایښتی ، ( پا ) کوتاه عمر ، بېدوام ، فانی ، ( ان )

short-lived

**لنډواټنی** lanḍ-waṭán-ay : د لنډ واټن ( توغندی، وسله...) ، ( پا ) کوتاه برد ، کوتاه منزل ( سلاح ، راکت ).

**لنډ ( واو )** lánḍ-wāw : معروف واو ، ( پا ) واو معروف، ( فونیمیك ) u

**لنډون نښه** lanḍún-náṣa : مغه غږوندي وزمه [ٚ] نښه چې پر واول باندې د لنډوالي لپاره سر باري کېږي (ȁ) ، ( پا ) علامت سکون مانند که بالای واکه برای کوتاه بودن آن علاوه میگردد (ă,ŏ) .

**لنډ وین** lánḍ-wín : لنډ وینی ، لنډ لیدی ، ( پا ) نزدیك بین ( انسان ، عینك ) .

**لنډه ( ي )** lánḍa-yí : معروفه ي ، ( پا ) یای معروف ، ( فونیمیك ) i

**لنډیز** lanḍ-íz : لنډون ، نڅوړ ، نچوړ ، ( پا ) فشرده ، ( عر ) اختصار ، خلاصه ، ( ان ) summary, abbreviation

**لنډیزه** lanḍ-íz-a : ---> څلوریزه .

**لنګر ځی** langar-jáy : ډکه ( سوات ) ، ( پا ) لنګر ګاه ( ان ) anchorage, harbo(u)r

**لوبڅی** lob-cáy : لوبوونی ، نانڅکه ؛ د لاس اله ( پا )

بازيچه ؛ آله دست ، ( ان ) plaything, toy; portege

**لوبډله** lob-ḍála : د لوبې ( ورزش ) ډله يا ټيم ، ورزشي ډله ، ( پا ) گروه ورزشی ، تيم ورزشی ، ( ان ) sport team

**لوبغاړی** lob-ǵā̆ṛay : ورزشكار ؛ ننداری لوبی ، دننداري لوبوونكی ، ( پا ) ورزشكار ؛ بازيگر ، ( عر ) ممثل ، ( ان ) actor; sportmam

**لوبغالی** lob-ǵā̆lay : ورزشځای ، ( پا ) ورزشگاه ، محل نمايشهای ورزشي ، ( ان ) stadium

**لوبوبه** lob-obá : نری مني ( مذی ) ، ( عر ) مزی .

**لوبيځ** lob-íz : ننډريځ ، د ننداري ( تمثيل ) ځای ، ( پا ) بازيگاه ، صحنه ، سن ، جای تمثيل ، ( ان ) scene, stage

**لوټ تالا** lúṭ-tālā̆ : تالا والا ، ( پا ) غارت شده ، چپاول شده .

**لوټ تالان** lúṭ-tālā̆n : چور چپاو ، چور و تالا ، چور تالان ، ( پا ) چور چپاول ، دزدی و غارت ، غارت و چپاول ، دستبرد ، و غارت .

**لوټمار** luṭumā̆r : شوكمار ، تالانگر ؛ د لوټيودما تولواله ، ( پا ) رهزن ، غارت كننده ؛ كلوخ ( كلخ ) شكن ، چوب كلوله يی كه به آن كلوخ شديار را ميده ميكنند .

**لودلنه** ludl-ána : ساده گي ، لوده گې ، شوده گي ، ( پا ) کند ذهنی ، کودنی ، ( عر ) غباوت .

**لودیانا** lodi-ān-ắ : لودیانه ، د لودیانو ټاټوبی( په هند کې ) ، ( پا ) منطقه یی در هند منسوب به عشایر و شاهان لودی .

**لور اند** lawr-ắnd : ډېر زړه سواند ، ( پا ) بسیار مهربان ، ( عر ) رحیم ، رحمن .

**لور سیخی** lor-síx-ay : لور ښود ؛ لوری سیخوونکی ، ( سموونکی ) ، ( پا ) سمتده ، سمت دهنده .

**لور ښود** lor-ṣ́od : لوری ښوونکی ، ( پا ) جهت نما ، ( ان ) directive

**لورنه او پېرزوینه**

lawr-ána-aw-perzo-ȳána : لورینه او پېرزوینه ، لورېینه او پېرزوینه ( پېرزونه ) ، ( پا ) لطف و روا داری .

**لورنی** lur-an-áy : دلور ( دختر ) اړوند ، د لور متعلق ، ( پا ) دخترانه .

**لور ورکی** lur-wrák-ay : لار ورکی ، ورکلاری ، ( پا ) جهت گم کرده ، راه گم کرده .

**لوری ورکول** lúray-war-kaw-ál : لور ښوول ، لور ښوونه ، ( پا ) سمت دادن ، سمت دهی .

**نابوخت** nā-bóxt : وزګار ، ( پا ) نامصروف ، بېکار ، ( ان ) unbusy, workless

**نابوختیا** nā-boxt-yā́ : وزګاري ، ( پا ) عدم اشتغال ، عدم مشغولیت ، بېکاری ، ( ان ) joblessness, being unoccupied

**ناپازی** nā-pā́z-ay : بې پازې ، نامسئوول ، ( پا ) نا مسئوول ، غیر مسئوول ، ( ار ) غیر ذمه دار ( ذمه وار ) ( ان ) irresponsible, unacountable

**ناپاسی** nā-pā́s-ay : بې پاسه ، بې سترګو ، بې لیازوپاس ، ( پا ) ناسپاس ، ناممنون ، بی لحاظ و بی پاس ، ( ان ) ungrateful, unthankful

**ناپاسي** nā-pās-í : بې پاسي ، ناشکرۍ ، بې لحاظې ، بې لوزي ، ناسپاسی ، ( ان ) ingratitude, thanklessness

**ناپاللی** nā-pal-al-ay : --> ناروزلی .

**ناپام** nā-pā́m : بې پامه ، ( پا ) بی احتیاط ، بی دقت ، ( ان ) carcless, incautios

**نا پامور** nā-pām-wár : د نه پام یا نه پاملرنې وړ ، له پامه لویدلی ، ( پا ) پیش پا افتاده ، غیر قابل توجه ، ( ان trite, platitudinous

**ناپامي** nā-pam-ī : بې احتياطي، بې پامي، ( پا ) بى احتياطى، عدم دقت، ( ان ) improvidence, carelessness

**ناپانګوالي ودې لار** nā-pāng-wāl-í-wáde-lā́r : د ترقۍ غير سرمايه دارانه لار، ( پا ) راه رشد غير سرمايه دارى، ( ان ) non-capitalist road of devellopment

**ناپاى** nā-pā́y : ناپايه، بې بريده؛ کړنومى ( مصدر )، کړنوموونکى، ( پا ) بى پايان، نا متناهى؛ مصدر، ( ان ) endless; infinitive

**ناپاى بريدى** nā-pāy-bríd-ay : بې حده، بې انتها، نامحدود، ناپايه، ( پا ) بى پايان، بى سرحد، بيحد، بيکران، ناپديد، نا متناهى، نا محدود، ( ان ) limitless, boundless, endless, indefinit, infinit

**ناپاى تېر مهال** nā-pā́y-ter-mahā́l : ناټيك يا ناجوت تېر مهال، ( پا ) ماضى غير معين، ( ان ) aorist

**ناپايښته** nā-pāy-áșta : <—— ناپايند .

**نا پايند** nā-pā́y-and : ناپايښته، ناپايېدونکى، کم پايښته، نه پاتېدونکى، ( پا ) ناپايدار، کم دوام، بيدوام، زود

گذر ، ( ان ) not durable, ephemeral

**ناپایه بڼه** nā-pā́ya-báṇa : ناڅاکلې بڼه ( شکل ) ، ( پا ) صورت یا شکل غیر معین یا غیر مشخص ، ( ان ) infinite form, finite form

**ناپتمن** nā-pat-mán : بې پته ، سپك ، سپك ورك ، ( پا ) بی شرف ، بی آب ، بی آبرو ، نا آبرومند ، بیحیا ، بیشرم ، ( ان ) disgraced, dishonored

**ناپخلاینه** nā-poxlā́-yána : نه پخلاینه ، نه پخلاتوب ، ( ان ) irreconcilability

**ناپل** nā-pál : ناپلی ، ناروا ؛ نابښلې ، ( پا ) غیر مشروع ، حرام ، غیر مجاز ، ناروا ؛ نابخشوده ، ( ان ) prohibited, inadmissable, illitimate; unforgivable

**ناپلوی** nā-paláw-ay : بې پلوه ، ببطرفه ، ( پا ) بیطرف ، غیر جانبدار ، ( ان ) impartial, neutral

**ناپلوي** nā-palaw-í : ببطرفي ، بې پلوي ، ( پا ) بیطرفی ، غیر جانبداری ، ( ان ) impartiality, neutrality

**ناپنځیز** nā-panj-íz : ناطبیعي ، ( پا ) غیرطبیعی ، ( ان ) unnatural

**ناپوځي** nā-pawz-ī́ : غیر فوجي ، ( پا ) غیر تظامی ،

non military, civilian ( ان )

**ناپوهنيز** nā-pohan-íz : ناپوهنيز ، نا علمي ، ( ان ) un-scientific

**ناپېژندگلو** nā-pežand-galó : ناپېژندوی ، ناپېژندويه ، نابلذ ، ناولد ، ( پا ) ناشناس ، ناآشنا ، ناشناخته ، ( ان ) disguised, unknown

**ناپېژندوی** nā-pež-and-óy : ناپېژندويه ، ناپېژندگلو ، نا مشهور ، ( پا ) ناشناس ، ناشناخته ، نا شناخت ، ( ان ) unknown, disguised

**ناپېيلتوب** nā-peyal-tób : --> ناپېيلتيا .

**ناپېيلتيا** nā-peyal-tyā́ : ناترلتيا ، ناپېيلتوب ، ( پا ) بيطرفی ، عدم انسلاك ، ( ان ) non alinment

**ناپېيلی** nā-peyálay : ناترلی ، بې پلوه ( په بهرني سياست کې ) ، ( پا ) بېطرفه ، غير منسلك ( در سياست خارجی ) ، ( ان ) unaligned, neutral

**ناپېيلی او ناترلی**

nā-peyálay-aw-nā-taṛálay : بېخي ناپېيلی ، ( پا ) بکلی غير منسلك .

**ناتار** nā-tā́r : تالان ، لوټ ؛ تېری او ظلم ؛ ناورين ، ( پا )

تاراج؛ جبر و ستم؛ زحمت و مشقت؛ فاجعه، ( ان ) plunder; cruelty; catastrophe

**ناتار ځپلی** nātā́r-japál-ay : ناتار وهلی، غمځپلی، ( پا ) مصیبت زده، فاجعه زده، ( ان ) tragic, afflicted, clamity

**ناتارگر** nātār-gár : تالانگر، گرگر؛ ناورینگر، ( پا ) تاراجگر؛ ستمگر؛ فاجعه آور، ( ان ) plunderer, cruel

**ناتړاوړون** nā-táṛ-awṛ-ún : ( د ایرلینډی ژبې ) د ساده افعالو گردان، ( ان ) non-compound Flexion

**ناتړوالی** nā-taṛ-wā́l-ay : ناړوندي، ( پا ) ناهمبستگی، ( ان ) disjunction

**ناتکی** nā-ták-ay : ایکي یو، بې جوړې، بېساری، بې بړه، ( پا ) یکتا، بی جوره، بی مانند، بی مثال، بی همتا، بی عدیل، ( ان ) unparalleled, unexampled, peerless, unmatched

**نا تېر مهال** nā-ter-mahā́l : اوسنی او راتلونکی زمانه، ( پا ) زمان حال و آینده، ( ع ) مضارع، ( ان ) tense common to the present and the future

**ناټیک** na- ṭík : ناسم؛ ناجوټه، ناڅرگند، ( عر ) مبهم ،

مجهول، غیر معین، ( ان) indefinit

**ناټیك پېژند** nā-ţík-pež-ánd : ناټیك پېژندوییکی، ( پا) حرف تعریف ( نکرهٔ) مبهم یا غیر معین، ( ان) indefinite article

**ناټیك کړاوړون** nā-ţík-awr-ún : ناجوت ( بېدوده) فعلي گردان، ( پا) گردان فعلی نا منظم، ( ان) indefinit conjugation

**ناټیك نوماوړون** nā-ţík-num-awr-ún : ناجوت نوم گردان ( تصریف)، ( پا) گردان رسمی غیر معین ( بیقاعده)، ( ان) indefinite declension

**ناټیکنومځری** nā-ţík-num-járay : مبهم ضمیر، ناجوت ضمیر، ( پا) ضمیر مبهم، ( ان) indefinite pronoun

**ناجوتمهالی** nā-ǰawat-mahā́l-ay : ناهممهالی، دناټاکلي مهال اړوند، ناټیك مهالی، ( پا) در زمانی، ( ان) diachronic

**ناجوتمهالې اواز پوهه**

nā-ǰawat-mahā́le-awāz-póh-a : ناهممهالې اواز پوهه، ( پا) واجشناسی در زمانی، ( ان) diachronic phonemics

**ناجوتمهالې پښویه**

نامهمالې پښويه ( گرايمر ) : nā-ǰawat-mahā̆le-pasóya ،
( پا ) دستور در زمانی ، ( ان ) diachronic grammar

**ناجوتمهالې ژبپوهنه**

nā-ǰawat-mahā̆le-žab-poh-ána : نامم مهالې ژبپوهنه ،
( پا ) زبانشناسی ، در زمانی ، ( ان ) diachronic lingulstics

**ناجوتمهالې غږ پوهنه**

na-ǰawt-mahā̆le-ʃaẓ-poh-ána : ناممهالې غږ پوهنه ،
( پا ) آوا شناسی در زمانی ، ( ان ) diachronic phonetics

**ناچاپ** nā-čā̆p : ناچاپ شوی ، ناچاپي ، ( پا ) غير مطبوع ،
( ان ) unpublished, urprinted

**ناچل** nā-čál : ناچلی ، ناچلېدونکی ، کوټه ، درغلي ، ( پا )
کاسد ، جعل شده ، جعلی ، تقلبی ، ساختگی ، ( ان )
counterfeit, false

**ناځوان** nā-jwā̆n : ناځوانه ، نامېړه ، بې مېړانې ، ( پا )
ناجوانمرد ، نامرد ، بی شهامت ، ( ان ) unmanly,
ungenerous

**ناځواني** nā-jwān-í : نه مېړانه ، ( پا ) عدم شهامت ،
نامردی ، ناجوانمردی ، ( ان ) dastardliness, foul play

**ناځنځيري** nā-janjir-í : برځنځيري ( فونيم ) ، ( پا )

زبر زنجیری ، ( ان ) suprasegmental

**ناڅپيز** nā-cap-íz : ناهجايي ، ( پا ) ناهجایی ، غیر مجایی ، ( ان ) non-syllabic

**ناڅرگند** nā-cargánd : ناجوت ، ناښکاره ؛ نامشهور ، ( پا ) غیر صریح ، غیر مرئی ، غیر واضح ، غیر مشهور ، کم شهرت ، ( ان ) inexplicit, unclear; infamous, unknown

**ناڅښتنی** nā-caṣtán-ay : بېدين ، بېدينه ، بېگروهې ، ناگروهن ، توکيزوال ، ( پا ) بی دین ، دهری ، بی مذهب ، بی عقیده ، ( ان ) atheist, worldly, materialist

**ناڅښتني** nā-caṣtan-í : آړه ، بېديني ، ( پا ) بیدینی ، ( عر ) الحاد ، دهریت ، ( ان ) atheism, heresy, unbelief, apostasy

**ناڅيز** nā́-cíz : بې ارزښته ، ( پا ) ناچيز ، اندك ، بی ارزش ، بې اهمیت ، ( ان ) nugatory, worthless, petty

**ناخجن** nā-xaǰ-án : بې خجه ، بې فشاره ، ( پا ) بی فشار ، بی تکیه ، ( ان ) enclitic

**ناخجنتيا** nā-xaǰ-an-tyā̆ : بې خجي ، ناخجوالی ، ناخجنوالی ، بې فشاري ، ( پا ) بی فشاری ، ( ان ) enclisis

**ناخړوبېدونکی** nā-xaṛob-ed-únk-ay : نه

خڕوبپدونکی، ( پا ) سیراب نشدنی، ( ار ) ناقابل سیر، ( ان ) insatiable

**ناخوال ( ۱ )** nā-xwắl : زارزهیر، ژوبل، زخمي، اندېښمن، ( پا ) پریشان، دل افگار، دل آزرده، ( ان ) offended, afflicted, wounded

**ناخوال ( ۲ )** nā-xwắl : نه سړی، ناسیال، نا اهله؛ تیټ، ( پا ) نا اهل، نالایق، بی کفایت؛ فرومایه، پست، ناحق شناس، ناسپاس، ( ان ) incontinent, ungrateful, unworthy, incompetent, aberrant, mean

**ناخوښی** nā-xwáṣ-ay : ناخوښمن، ناراضي، مرور، زړه بدی، ( پا ) ناراضی، ناخرسند، ناخشنود، رنجیده، ( ان ) displeased, dissatisfied

**ناخوښي** nā-xwaṣ-í : نارضايي، زړه بدی، خوابدي، ( پا ) نارضائیت، ناخشنودی، رنجیده گی، ( ان ) dissatifaction, displeasure

**ناخوندي** nā-xwandí : نامصئون، بې یمنه، ( پا ) نامصئون، نا محفوظ، بی ایمن، ( ان ) non-immune, unsafe

**ناخوندیینه** nā-xwandi-yána : نامصئونیت، ( پا )

عدم مصئونیت ، ( ار ) عدم تحفظ ، ( ان ) non-immunity

**نادرپښتون واټ** nādar-paṣtūn-wāṭ : ( پا ) یکی از جاده های شهر کابل ، نادر پښتون وات ، جادهٔ نادر پښتون .

**نادرملی** nā-darmál-ay : نه درملیدونکی ، نه رغېدونکی ، ( پا ) علاج ناپذیر ، ( ان ) incurable, irremediable, terminal .

**نادوده** nā-dóda : بې دوده ، بې رواجه ، بې نرخه ، ( پا ) نامروج ، غیر مروج ، غیر سنتی ، ( ان ) uncostumary, not in vogue

**نارسی** nā-rás-ay : نارسېدلی ، نه رسېدونکی ، نیمگړی ، وروسته پاتې ، نالاسرسی ، لنډ ، نابالغ ، ( پا ) نارس ، نرسیده ، نارسیده ، نارسا ، کوتاه ، منزل ، پس مانده ، غیر قابل دسترس ، نابالغ .

**نارسي** nā-ras-ī : وروستوالی ، وروسته پاتېوالی ، نیمگړتیا ، خامي ، لنډوالی ، ( پا ) عدم رسیده گی ، عدم دسترسی ، نارسی ، نارسایی ، پس مانده گی ، خامی ، کوتاهی ، ناقص ، ( ان ) unapproach

**نارسېدلی** nā-ras-ed-ál-ay : نارسی ، ( پا ) نارس ، نارسیده ، ( ان ) unarrived, unreceived

**نـاربشتینی** na-raşt-ín-ay : نارشتینی ، ناسم ، ناواقعي ، ( پا ) غیر راستین ، غیر واقعی ، غلط ، نادرست ، دروغین ، ( ان ) wrong, erroneous, incorrect, irreal, irrealistic

**نـاروا** na-rawā : نامشروع ، ناقانوني ، نادوده ، ( پا ) نامشروع ، غیر قانونی ، ( ان ) illegal, illicit, illegitimate, improper

**ناروزلی** na-roz-ál-ay : ناروزل شوی ، ( پا ) تربیت نشده ، ( ان ) untrained, unnurtured

**نـاروږدی** na-rúẓd-ay : بې عمله ، نامعتاد ؛ نااېل ( ژوی ) ، نابومه ، ( پا ) غیر معتاد ، بی عمل ، بې اعتیاد ؛ غیر اهلی ( حیوانات ) ؛ غیر عادی ، ( ان ) unhabituated; unaddicted

**نـاروږدي** na-ruẓd-í : بې عملي ، نا معتادي ، نااېلي ، نابومي ، ( پا ) بې اعتیادی ، عدم اعتیاد ؛ غیر اهلی بودن ، ( ان ) unhabituation; unaddiction

**ناروږدی خپلواك** na-rúẓday-xpal-wák : غیر عادی واول ، ( پا ) واکهٔ غیر عادی ، ( ان ) abnormal vowel

**نـاروغتیایي** na-roɣ-tya-yí : ناصحي ، ( پا ) غیر صحی ، غیر بهداشتی ، ( ان ) unsanitary, unhygienic

**ناروغ والا** nā-roɫ-wālā́ : ناروغوال، ناروغ لرونکی، ( پا ) مریضدار، ( پا ) visitant, visitor

**ناړام** nā-ṛā́m : غرغره يي، لنډغر، ړانگه يي، خپلسر، ( پا ) لجوج، جسور، ماجراء جو، سرکش، خود سر، لجام گسیخته، بې بندو بار، ( ان ) pertinacious, obstinate, mulish, unyielding, adventurer

**ناړوند** nā-ṛ-wánd : ناړوند، بې اړيکي، ( پا ) نامربوط، بیربط، بی ارتباط، گسسته، جسته و گریخته، ( ان ) unconnected, irrelevant, incherent

**ناړوند اړیکوییکی** nā-ṛwánd-aṛík-wayí-kay : بې اړیکوییکی، ( پا ) حرف ( ادات ) ربط نا همبسته، ( ان ) disjunctive conjuction, adversative conjuction

**ناړوند مخامخی** : nā-ṛwánd-max-ā-max-áy ناړوند بهوالی ( تقابل )، ( پا ) تقابل ناهم بسته ( بی ارتباط )، ( ان ) disjunctive opposition

**ناړوند نومځری** nā-ṛwánd-num-járay : ناتړی نومځری ( ضمیر )، ( پا ) ضمیر ناهم بسته، ( ان ) disjunctive pronoun

**ناړيك** na-ṛík : ناړيکی، بې اړيکي، ناړوند، ( پا ) بی ارتباط، بی ربط، ( ان ) irrelevant

**ناړيکي** na-ṛik-í : ناړوندي، ( پا ) بی ربطی، بی ارتباطی، نامربوطی، ( ان ) Irrelevance

**ناز غموړ** na-zɣam-waṛ : د نه زغم وړ، نازغمېدونکی، ( پا ) غیر قابل تحمل، تحمل ناپذیر، ( ان ) untolerable, unendorable

**نازکي** na-zak-í : نازکتیا؛ حساسوالی، ( پا ) نزاکت، نازکی، باریکی، ( ان ) decorum, courtesy; narrowness, exiguity

**نازلوبولی** naz-lob-aw-al-ay : نازولی، ( پا ) نلز پرورده، نازنین، ( ان ) delicate, pampered, lovely

**نازو وړکتون** nazo-waṛ-ak-tun : ( په کابل کې نازو نومی وړکتون ( ووړتون )، ( پا ) نازو وړکتون، کودکستان نازو ( کابل ).

**نازېږند روستاړی** : na-zeẓ-and-rust-ãṛay ( پا ) پسوند غیر مولد، ( ان ) non-productive suffix

**ناسپاسه** na-sepãsa : بې پاسه، ناشکره، ( پا ) ناسپاس، حق ناشناس، نمك ناشناس، ( ان ) ungrateful,

unthankful

**ناسپاسي** na-sepas-í : بې پاسي ، ناشکري ، سپين سترگي ، ( پا ) ناسپاسی ، ( ان ) ingratitude, ungratefulness

**ناسپړلی** na-spaṛ-al-ay : ناسپړل شوی ، ناکيندلی ؛ ناغوړېدلی ، ( پا ) ناحفر شده ، نا کاويده ؛ نا شگفته ، ( ان ) undug, unexcavated; unblown, unblossomed

**ناسپېڅلی** na-spec-al-ay : ( پا ) نا مقدس ، غير مقدس ؛ ناپاك ، ( ان ) dirty, unclean; non sacred, sanctimonious

**ناستاينوړ** na-stay-an-waṛ : ( پا ) غير قابل ستايش .

**ناستځی** nast-jáy : د ناستې ځای ، د غونډې ځای ، مېشتځی ( پا ) نشستگاه ، جای نشست ، نشمينگاه ، جای گرد همأيی ، مقر ، ( ان ) seat, place of sitting

**ناستخونه** nast-xúna : د ناستې کوټه ، ( پا ) اطاق ( اتاق ) نشيمن ، ( ان ) sittingroom, livingroom

**ناستوگنه** nast-ógna : ناسته پاسته ، ناسته ولاړه ، ناستی کېناستی ، راشه درشه ، راکړه ورکړه ، ( پا ) نشست و برخاست ، رفت و آمد ، آمد و رفت ، داد وستد ، همبستگی ، ( عر )

مراوده، معامله، تعلق، ( ان ) traffic, travers, social intercourse

**ناسته** nást-a : ناستی، غونډه، گډېره، ( پا ) نشست، گرد همایی، ( عر ) جلسه، ( ان ) session

**ناسکیندی** na-skínd-ay : نه جبرانېدونکی، ( پا ) جبران نا پذیر، ( ان ) irreparable, irretrievable

**ناسم** na-sám : ناټیك، ( پا ) نادرست، ناصحیح، ( عر ) غلط، ( ان ) wrong, incorrect, untrue

**ناسمبال** na-sambál : نامجهز، ( پا ) نامجهز، غیر مجهز، بی ساز و برگ، ( ان ) unequipped, ill- equipped

**ناسوب** na-swáb : ناحاضر، پشي شا، ( پا ) غیر حاضر، ( ان ) absent

**ناسوبانه** na-swab-ána : پشي شا، په ناسوبی کې، په ناسوبتیا کې، ( پا ) غیابانه، غیابی، پس پشت، ( عر ) غیابانه، ( ان ) absentedly, in absention

**ناسوبتیا** na-swab-tyá : ( پا ) غیابت، غیر حاضری، عدم حضور، ( ان ) absence, absention

**ناسولي** na-sol-í : بی سولي، ناسولیزوالی، بې عقلي، کم عقلي، ( پا ) بی عقلی، کم عقلی.

**ناسولیز** nā-sol-íz : نامعقول، نامنطقی، ( پا ) غیر منطقی، ناخردمندانه، ( ان ) non-logical

**ناسهلی** nā-sahál-ay : ناسهند، نه هضمېدونکی، ( پا ) هضم نا شده، ( ان ) indigested

**ناسهند** nā-sáh-and : نه سهل کېدونکی، نه هضمېدونکی، نا سهلی، ( پا ) غیر قابل هضم، ناگوارا، هضم نشدنی، ( ان ) indigestible, irritable

**ناسهنه** nā-sah-ána : بې هضمي، نسخوړی؛ بې صبري، بې زغمي، ( پا ) سوء هاضمه؛ بی صبری، ( ان ) indigestion; irritability

**ناسیال** nā-syā́l : نه سیال، بې سیالی، سپك ورك، بی غیرت، ( پا ) ناسیال، غیر کفو، نابرابر، بی حیثیت، بی غیرت، ( ان ) inequal, abjectcont, emptible

**ناسیده** nā-sidá : نامستقیم، ( پا ) راست، سراست ( مستقیماً )، ( ان ) indirect, indirectly

**ناسیده پوښتنه** nā-sidá-poṣt-ána : ( پا ) پرسش غیر مستقیم، ( ان ) indirect question, indirect discourse, obliqur question

**ناشاګرځی** nā-šā-gárj-ay : نه راستنېدونکی، ( پا )

برگشت ناپذیر، بی برگشت، ( ان ) not refundable, irrevocable

**ناشنونی** na-san-un-ay : نه شنل کېدونکی، نه تحلیلېدونکی، نه تجزیه کېدونکی؛ تجزیه ناپذیر، غیر قابل تحلیل و تفسیر، لاینفك، ( ار ) اتل، ( ان ) non-discript; integral; inexplicable unanalyseble

**ناشونتیا** na-šun-tyā́ : نه کېدون، نه امکان، ( پا ) عدم امکان، ( ان ) impossibility

**ناشونډیزوالی** : na-šunḍ-iz-wā́l-ay ناشونډیزېدنگ، ( پا ) نالبی شدن، ( ان ) delabialization

**نابنیز** naṣ-íz : د نابن ( مخنی غابن یا غابنو ) اړوند، --> مخغابنیز ؛ --> پیلنابنیز ( عاجی ).

**نابناخوړ** na-sac-waṛ : ناویاړوړ، ( پا ) غیر قابل افتخار، ( ان ) insignificant, undignified

**نابنمری** na-ṣmár-ay : بې گټې؛ نابنمری، بې ښېگڼې، ( پا ) بی نفع؛ بی فضیلت.

**نابنوونیز** na-sow-an-íz : نابنووند، ( پا ) غیر آموزنده، ( ان ) unteaching, unguiding

**ناغږن** na-ɣaẓ-an : بې غږه ( غږپوهنه )، ( پا ) بیواك،

( ان ) voiceless

**ناغڕنتیا** nā-γaẓ-an-tyā́ : بېغږوالی ، ناغږنوالی ، ( پا ) بیواکی ، ( ان ) unvoicing

**ناغږی** nā-γáẓ-ay : بېغږه شوی ، ( پا ) واکرفته ، ( ان ) devoiced

**ناغږي** nā-γaẓ-í : بېغږي ( غږ پوهنه ) ، ناغږنتیا ، ( پا ) واکرفتگی ، ( آواشناسی ) ، ( ان ) devoicing

**ناغورتیا** nā-γwar-tyā́ : ناښهانه ، ناښمر ، بدوالی ، ( پا ) ناپسندی ، ناپسندیده گی ، زشتی ، نادرستی ، ( ان ) badness, wickedness, undesirability

**ناغوره** nā-γwára : ناښه ، بیکاره ، ناکوکه ، بد ، ناوړ ، ناوړند ، ( پا ) ناپسند ، ناپسندیده ، ناشایسته ، نامناسب ، زشت ، ( ان ) unbecoming, indecorous, indecent, unfavourable

**ناغوړېدلی** nā-γwaṛ-ed-ál-ay : ناسپړلی ، ( پا ) ناشگفته ، ( ان ) unblown

**ناغوښن** nā-γwaṣ-án : بې غوښې ، ډنگر ، ( پا ) کم گوشت ، لاغر ، ( ان ) thin, having little meat or flesh

**ناغونډلیز تړنگ** nā-γunḍl-íz-taṛáng : ناجمله

يي ترنگ ( ترکيب )، ( پا ) ترتيب غير جملوی، ( ان ) asyntactic compound

**ناغېړی** na-ǵéṛ-ay : لټ، لټپور، ( پا ) سهل انگار، ( ان ) careless, nonchalant

**ناغېړي** na-ǵer-í : سستي، ورځ تېرى؛ ( پا ) سهل انگارى، اهمال، عدم احساس مسووليت روز گذرانى، ( ان ) nonchalance, carelessness, negligence,

**نافرماني** na-farman-í : سرغړاوی، سرغاړی، ( پا ) عدم اطاعت، سرکشی، ( عر ) بغاوت، تمرد، ( ان ) insurgence, disobedience rebellion

**ناکارېدلی** na-kared-al-ay : ناکارول شوی، نوی ( پا ) نابسود، نا مستعمل، نو، ( ان ) unused, new

**ناکره** na-kara : نامعياري، ( پا ) نامعيارى، ( ان ) substandard, non-standard

**ناکړوال توک** na-kaṛ-wāl-tok : ( پا ) عنصر غير فعلى ( صرف )، ( ان ) non-verbalelement

**ناگاري** na-gar-í : ځان نا گار اچونه، ( پا ) تجاهل ( عارفانه )، نديده انگارى، نادان شمارى خود، ( ان ) ignorance

**ناګټور** na-gaṭ-a-war : ناسودمن ، ناشمری ، ناېپبری ، بې ګټې ، ( پا ) غیر مفید ، بیفایده ، بی نفع ، غیر انتفاعی ، ( ان ) useless, unprofitable, futile, non profit

**ناګروهن** na-groh-an : بې ګروهې ، ( پا ) بی عقیده ، غیر معتقد .

**ناګڼلی** na-gaṇ-al-ay : نامنلی ، ( پا ) ناپسندیده ، ناخواسته ، نامطلوب ، ( ان ) undesirable, undesired

**نالاسی** na-lās-ay : نالاسوهلی ، ( پا ) نادستخورده ، دست نا خورده ، دست نخورده ، ( ان ) virgin, intact, primitive

**نالوستوړ** na-lwast-waṛ : د نه لوستلو وړ ، ( پا ) ناخوانا ، غیر قابل خواندن ، ناخواندنی ، ( ان ) non-readable

**نالوستی** na-lwast-ay : بې لیك لوسته ، نالیك لوستی ، ( پا ) بېسواد ، ناخوان ، ( عر ) امی ، ( ان ) unlettered, illiterate

**نالېږند** na-lẓand : نالېږدوړ ؛ لازمي ( فعل ) ، ( پا ) غیر معقول ؛ ( ان ) intransitive; immovable

**نالېږند کړ** na-lez-and-kaṛ : لازمي کړ ( فعل ) ، ( پا ) فعل لازمی ، ( ان ) ntransitive verb

**نـاليك لوستي** na-lik-lwast-í : نالوستي ، بې ليك لوستي ، ( پا ) بېسوادی ، ( ان ) illiteracy

**نـاليكلى** na-lik-ál-ay : ناليك ، ناليكنى ، ( پا ) ننوشته ، نامكتوب ، غير كتبى ، ( ان ) blank, unwritten

**نـامړ** na-máṛ : ناځوان ، نه مېړه ، بې مېړانې ، ( پا ) نامرد ، ناجوانمرد ، بى شهامت ، ( ان ) unmanly, ungenerous, dastard

**نـامړتوب** na-maṛ-tób : نه مېړانه ، نامېړانتوب ، ناځواني ، ( پا ) نا مردی ، ناجوانمردی ، بى شهامتى ، ( ان ) dastardliness, cowardice, faul play

**نـامنلى** na-manál-ay : ناګڼلى ، رد ( شوى ) ، ناقبول ، ( پا ) غير قبول ، ناپذېرفته ، نا پذيرفتنې ، رد ( شده ) ، ( ان ) unaccepted, unacceptable

**نـامننه** na-man-ána : نافرماني ، سر غاړي ، سر غړاوى ، ( پا ) نافرمانى ، عدم اطاعت ، ( ان ) disobcdiance

**نـام و نـاموس** nấm-o-namós : نوم و پت ، نام وننګ ، ( پا ) نام و ناموس ، نام و عزت ، ( ان ) name and chastity

**نـاموندى** na-múnd-ay : ناموندونى ، ( پا ) ناياب ،

کمیاب، نادر، غیر قابل حصول، ( ان ) unobtainable, rare, extinct

**نامندي** na-mund-í : ( پا ) نایابی، کمیابی، ( عر ) ندرت، ( ان ) rareness

**نامهالی** na-mahā́l-ay : بې وخته، ( پا ) نابهنگام، بېموقع، ( ان ) adventive, untimely, inopportune, adventitious

**نامبنځلی** na-minj-al- ay : ناوللی، ناولی، ناپرېوللی، ناپاك، ( پا ) ناشسته، ناپاك .

**ناندریز** nandr-íz : شخړیز، لانجه يي، ( پا ) مورد نزاع، ( عر ) متنازع فیه، ( ان ) in dispute, contentious, litigious

**نانډول** na-nḍwal : ناانډول، نانډوله، بې معادله، ( پا ) بی معادل، بی تعادل، بی توازن، بې موازنه، نا متوازن، ناموزون، ناهمآهنگ، ( ان ) inconstant, unstable, disorder, disharmonious

**نانډوله** na-nḍwal-a : ناسازه، ناپېریته، ( پا ) ناسزا، نامناسب، زشت، زشتی، ناسزاوار، ناشایسته، ( ان ) unfair, unworthy, unsuitable

**نانغوړی** nān-n/óz-ay : نانغتان، تور غوړی، ( پا ) ( حرف ) ناشنو، بازیگوش، ( ان ) playful, wanton, careless

**نانغوړي** nā-n/oz-í : تور غوړي، ( پا ) بازیگوشی، ( ان ) wontonness, pranking, gamboling, carelessness

**نانوموړی** nā-num-wāṛ-ay : ناپېژندوی، ناپېژندویه، بېنوم، بېنومه، ورکنومی، ( پا ) بېنام، گمنام، بی هویت، مجهول الهویه، ( ان ) famless, anonymous, of unknown ldentity

**نانیسا** nā-nisā : بې زړه، ډارن، ( پا ) بی جرئت، کم جرئت، جبون، بزدل، ترسو، ( ان ) timid, timorous, chicken- hearted

**نانیسایي** nā-nisā-yí : بې زړه توب، ( پا ) بی جرئتی، کم جرئتی، جبن، بزدلی، ( ان ) timidity, cowardice, timorousness

**ناوډلی** nā-oḍ-ál-ay : نااوډلی، بې اوډونه، گډوډ، ( پا ) بی ترتیب، درهم ریخته، ( ان ) disorderly

**ناوډوني** nā-oḍ-un-í : بې اوډوني، گډوډي، ( پا ) بی

ترتیبی، ( ان ) disorder

**ناورین ځپلی** nāwrin-japal-ay : ناورین وهلی، غمځپلی، ( پا ) مصیبت زده، مصیبت بار، فاجعه زده، ( ان ) tragic, disastrous, afflicted

**ناوړونی** nā-wṛ-ún-ay : نا اوړېدونی، نه گردانېدونکی، ( پا ) غیر متصرفه، غیر تصریفی، جامد، ( ان ) indeclinable

**ناوړوني ( وييكي )** nā-wṛun-í-(-wayí-ki) : مغه وييكي ( كوچني لغات ) چې نه گردانيږي، ( پا ) واژك ها يا واژه های كوچك كه معمولا غير متصرفه ميباشند، ( ان ) particles, indeclinables

**ناوړوني ژبه** nā-wṛ-ún-e-žába : ناوړېدونې ژبه، بې گردانه ( تصريفه ) ژبه، ( پا ) زبان غير تصريفی، ( ان ) formless language, nonflexional language, isolating language

**ناوگړيزكړ** nā-wagaṛ-íz-kaṛ : مغه كړ ( فعل ) چې بې كړندو كړي ( فاعل و مفعول ) گردانيږي، ( پا ) فعل بې فاعل و مفعول، ( ان ) impersonal verb

**ناولسي** nā-walas-í : ناملي، ( پا ) غير ملی؛ غير عام

پسند ، ( ار ) غیر قامی ، غیر هردل عزیز ، ( ان ) unpopular, un-national

**ناوللی** nā-wl-ál-ay : ناولی ، نامینځلی ، نا پرېولی ، ( پا ) ناشسته ، ( ان ) unwashed, unclean

**ناوې او زوم** nấwe-aw-zúm : ناوې او ژنی ، ناوې او ودگری ، ناوې او نوس ، ( پا ) عروس و شاه ، شاه و عروس ، عروس و داماد ، ( ان ) bride and bridegroom

**ناویسا** nā-wisā́ : <-- ناباوری .

**ناویسایي** nā-wisā-yí : ناباوري ، ( پا ) بی اعتمادی ، سلب اعتماد ، ( ان ) mistrust, distrust

**ناوېشلی** nā-weš-ál-ay : ناوېشل شوی ، نابېل شوی ، ( پا ) تقسیم نشده ، جدا نشده ، ( ان ) inseparated, undivided

**ناوېشوړ** nā-weš-waṛ : نه وېشل کېدونکی ، نه تقسیمېدونکی ، ( پا ) غیر قابل تقسیم ، جدا نشدنی ، ( ان ) non-dividable, inseparable

**ناوې نږور** nấwe-nẓor : ناوې او نږور ، ( پا ) عروس و نو عروس ، ( ان ) bride and doughter-in-law

**ناهڅی** nā-hác-ay : بې هڅې ، بې ځوبه ، بې مینې ،

وېزار ، بې میل ؛ بې زیاره ، لټ ، ( پا ) بی میل ، بېزار ، بی رغبت ؛ غیر کوششی ، غیر زحمتکش .

**ناهڅي** na-hac-í : بي هڅي ، بې مینې والی ، بی ځوبي ؛ بی کوښښي ، ( پا ) بی میلی ، بې علاقه گی ، عدم تمایل ، عدم کوشش ، ( ان ) disinclination

**ناهممهالی** na-ham-mahălay : <-- ناجوتمهالی .

**ناهممهالې ژبپوهنه** na-ham-mahắle-žab-pohána : <-- ناجوتمهالې ژبپوهنه .

**ناهوسا** na-hosắ : نارام ، لرغن ، ناټکه ، ناکلار ( ناکرار ) ، ( پا ) نا آرام ، بیقرار ، بی آرام ، ( ان ) fedgety, restless, uneasy

**ناهوسايي** na-hosa-yí : نارامي ، ناکلاري ، ( ناکراري ) ، ( پا ) ناآرامی ، بیقراری ، ( ان ) restlessness, uneasiness

نايېبری na- yébr-ay : بې يېبرې ، بې حاصله ، بې ثمره ، ناگټور ، ناثمری ، ( پا ) بی بار ، بی بروبار ، بی برگ و بار ، بی حاصل ، بی ثمر ، بی فایده .

**نثر** násar : ناپېيلې وينا يا ليك ، ( پا+ عر ) نثر ، ( پا ) prose

**نڅا گر** naca-gár : نڅاند ، گډېدونکی ، ځرخبانی ، ډم ،

يامگر ، ( پا ) بازيگر ، رامشگر ، ( عر ) رقاص ، ( ان ) (Professional) dancer

**نڅاگري** naca-gar-í : گډا ، نڅا ، څرخباني ، يا مگري ، ( پا ) رامشگری ، رقاصی ، پایکوبی ، ( ان ) dancing, choreography

**نخوړ** nacór : نچوړ ، ( پا ) فشرده ، ( ان ) concise

**نرم بېواك** náram-be-wā́k : نرم يا اوبلن کنسونېنټ ( ل ، ر ، ړ ) ، ( پا ) همخوان مائع ، ( ان ) liquid (consonant)

**نرم تالو** náram-talú : پوست تالو ، ژبی ، ( پا ) نرمکام ، ( ان ) velum, soft palate

**نرم تالوييز** náram-talu-yíz : ژبی ييز ، پوست تالوييز ، وروستی تالوييز ، ( پا ) نرمکامی ، ( ان ) guttural, velar

**نرم تالوييزوالی** naram-talu-yiz-wā́l-ay : نرم تالوييز پدنگ ، ( پا ) نرمکامی شده گی ، ( ان ) velarization

**نرم خپلواك** náram-xpal-wā́k : تياره خپلواك ، وروستی يا وروستنۍ خپلواك ( فونيم ) ، ( پا ) واکهٔ پسين ، ( ان ) back vowel, velar vowel

**نرم زړی** naram-zár̤-ay : --> نری زړی .

**نرم زړي** náram-zaṛ-í : زړه سواندي ، ( پا ) نرمدلی ، مهربانی عطوفت ، ( ان ) soft-heartedness, kindness

**نرم ژبی** náram-žab-ay : پوستژبی ، ( پا ) نرم زبان ، خوش زبان ، ( ان ) smooth-tongued

**نرم ژبي** náram-žab-í : پوستژبي ، نرم غږي ، ( پا ) نرم زبانی ، خوش زبانی ، ( ان ) smooth-tonguedness

**نری او ډډ** naráy-aw-ḍáḍ : زیر او بم ، ( پا ) زیر و بم ، باریك و غور ، ( ان ) shrill and bass voice

**نری رنځ** naráy-ranj : مرهکه ، مړبکه ، مرخوږي ، ( پا ) بیماری سل ، تب لازم ، ، ( عر ) سل ، ( ان ) tuberculosis, t.b.

**نری زړی** naráy-záṛ-ay : زړه سواند ، نرم زړی ، ( پا ) زود رنج ، نرمدل ، مهربان ، ( ان ) tender-hearted

**نرینه** nar-iná : نرینه توږی ( جنس ) ، ( پا ) جنس مذکر ، ( ان ) masculine

**نړی پنځی** naṛáy-pánj-ay : نړی پیدا کوونکی ، نړۍ مستوونکی ، ( پا ) جهان آفرین ، خالق ، ( ان ) creator of the world

**نړیخور** naṛay-xór : نړی خوړونکی ، جهانخور ، ( پا ) جهانخوار ، ( ان ) world-eater

**نړۍ سراسر** naṛáy-sar-a-sar : نړۍ سراسري ، ټول نړۍ ییز ، ( پا ) جهانشمول ، ( ان ) worldwide

**نړۍ سوز** naṛáy-sóz : نړۍ سوزوونکی ، ( پا ) جهانسوز ، نابود کننده ، ( ان ) great incendiary

**نړۍ ښود** naṛáy-ṣód : جهانښود ، نړۍ وین ، ( پا ) جهان نما ، ( ان ) cosmorama, stereoscope, planisphere

**نړۍ ګرځی** naṛáy-gáj-ay : نړۍ ګرځېدونکی ، ګرځندوی ، سیلانی ، ( پا ) جهانګرد ، جهان پیما ، ( عر ) سیاح ، ( ان ) tourist, world traveller

**نړۍ لید** naṛáy-líd : ( پا ) جهانبینی ، ( ان ) world outlook

**نړۍ لیدلی** naṛáy-lid-ál-ay : ازمایښتکار ، هغه چې نړۍ لیدلې ده ، ( پا ) جهاندیده ، آزموده ، ( ان ) experienced, who has travelled very much

**نړۍ لیدیز** naṛay-lid-íz : د نړۍ لید اړوند ، ( پا ) مربوط جهانبینی ، relating to world outlook

**نړۍ نیوی** naṛay-níw-ay : نړۍ نیوونکی ، د نړۍ سوبمن ( فاتح ) ، ( پا ) جهانګیر ، جهانکشا ، ( ان ) world

conqueror

**نړۍ نیوی** naṛay-niw-áy : نړۍ نیونه، ( پا ) جهانگیری، جهانکشایی، ( ان ) world conquest

**نړیواك** naṛay-wǎk : دنړۍ واکمن، ( پا ) جهاندار، جهانبان، ( ان ) possessor (or ruler) of the world.

**نړیواکي** naṛay-wāk-ī : جهان واکمني، ( پا ) جهانداری، جهانبانی، ( ان ) statesmanship, world sovereignty

**نړیوال** naṛay-wā́l : هم نړۍ؛ جهاني، ( پا ) جهانی، همجهانی، ( عر ) بین المللی، بین الملل، ( ان ) international, global

**نړیوال پولي صندق** naṛay-wā́l-pol-í-sandáq : ( پا ) صندق بین المللی وجهی، ( ار ) عالمی بینك، ( ان ) world Bank

**نړیوالتوب** naṛay-wal-tób : نړیوالي، نړیواله، ( پا ) جهانشمولیت، ( ان ) universality, internationalism, globalism

**نړیوال صندوق** naṛay-wā́l-sandák : بین المللی ( وجهی ) صندوق، نړیوال ( پولي ) صندوق، ( پا ) صندوق بین

International ( ان ) المللی، صندوق وجهی بین المللی، Monetary

**نړیواله** naṛay-wā́la : جهانواله، ( پا ) اصالت جهانی، ( عر ) بین الملیت، ( ان ) internationalism

**نړیواله بښنه** naṛay-wā́la- baṣ-ána : د نړیوالې بښنې سازمان، ( پا ) سازمان عضو بین المللی، ( ان ) Amnesty International

**نړیواله ټولنه** naṛay-wā́la-ṭolána : جهاني ټولنه، ( پا ) جامعهٔ ملل، ( ان ) world community

**نړیواله ژبه** naṛay-wā́la-žaba : بین المللي ژبه، ( پا ) زبان بین المللی، ( ان ) inter (-national) language

**نړیواله غږیزه ابېڅې** naṛay-wā́la-ǧaẓ-íza-abecé : نړیواله فونیټیکي الفبې، ( پا ) الفبای آوانگار بین المللی، ( ان ) international phonetic alphabet

**نړیوېزونه** naṛay-wəz-úna : هغه وییونه ( لغتونه ) چې په یوه‌مانا د نړۍ په ژبو کې د نړیوالو پور وییونو په توګه کارول کېږي، ( پا ) واژه هاییکه در زبان های جهان به عنوان کلمات بین المللی با عین مفهوم مستعمل اند، ( ان )

internationalisms

**نژاد پال** nežād-pā́l : توكمپال ، ( پا ) نژاد پرست ، ( ار ) نسل پرست ، ( ان ) racist

**نژاد پالنه** nežād-pāl-ána : نژادواله ، توكمواله ، توكمپالنه ، ( پا ) نژاد پرستى ، تبعيض نژادى ، ( ان ) racism

**نژاد پوهنه** nežād-poh-ána : توكمپوهنه ، ( پا ) نژاد شناسى ، ( ان ) ethnology

**نژدې پر نژدې** nežde-par-nežde : لنډپرلنډه ، ژرترژره ، ( پا ) تنگاتنگ ، هر چه زود تر ، بزودى زود ، ( ان ) shortly, soon, very soon

**نژدې ختيځ** nežde-xatíj : لنډختيځ ، ( پا ) شرق نزديك ، خاور نزديك ، ( ان ) Near East

**نس بهى** nas-bah-áy : بهى ، نس ناسته ، نس ناستى ، نسخوږى ، ( پا ) شكم روش ، ( عر ) اسهال ، هيضه ، وباء ، ( ان ) diarrhea, diarrhoea, cholera

**نسخوږى** nas-xúẓ-ay : د نس په درد اخته ؛ په رمي اخته ( پا ) شكم درد ، دل درد ؛ پيچش شده ، مبتلا به پيچش ، مبتلا به اسهال خونين ، شكم رو ( ان ) having a stomach-ache: suffering from diarrhea of blood flux

**نسخوړی** nas-xuẓáy : نسخوړ، د نس درد، د نس خوږ، پېچ، رمی، ( پا ) درد شکم؛ پیچش، اسهال خونین، شم روش، ( ان ) stomach- ache: dysentery, blood flux

**نشت** nast̆ : هېڅ، هېڅنا ( صفر )، ( پا ) هیچ، نابود، صفر، منفی، نفی، نهی، ( ان ) zero, cipher, naught; negative prohibitive

**نشت اړخ** nást̆-áṛx : منفي ( فعلي ) وجهه، ( پا ) وجه منفی ( فعلی )، ( ان ) negative aspect

**نشت اوړون** nast̆-awṛ-un : د نفی ( فعلی ) گردان، ( پا ) تصریف نفی ( فعلی )، ( ان ) negative conjugation

**نشتاند** nast̆-ā̃nd : هغه چې هر څه ردوي، ( پا ) منفی باف، مخالف یا منکر همه چیز، ( ان ) negationist, negativist, nihilist; (ling.) pṛivative

**نشتاندي** nast̆-and-í : نشتاندوالی، ( پا ) منفی بافی، نهیلیزم، ( ان ) negativism,negation

**نشت پېر** nast̆-pér : د نفی حالت، ( پا ) حالت نفی ( اسم )، ( ان ) caritive

**نشتمن** nas̆t- mán : تشلاس، تشلاسی، نېستمن، بېوزله، ( پا ) نادار، تهیدست، ( عر ) مفلس، فقیر، ( ان )

have-not, poor

**نشتمني** nas̆t-man-i̋ : نيستي، نېستمني، نستمني، بېوزلي، تش لاسي، ( پا ) ناداری، نداری، تهیدستی، ( ان ) poverty, indigence, pennilessness

**نشتوييکی** nás̆t-wayí-kay : د نفې يا نهې وييکی ( ادات )، ( پا ) حرف ( ادات ) نفی يا نهی، ( ان ) negative particle

**نشه باب** nes̆a-bā̆b : نشه يي توکي، نشه يي توکونه يا ځيزونه، ( ار ) منشيات، ( پا ) مواد مخدر، مواد نشه يی، ( ان ) narcotics, drugs

**نشه يي** nes̆a-yí : نشه کوونکی، د نشه يي توکو روږدی ( معتاد )؛ دنشې اړوند، نشه راوړونکی، ( پا ) معتاد به مواد مخدر؛ ( مواد ) نشه آور، ( ان ) narcotic; addict, drug-abused

**نښپوهنه** naṣ-poh-ána : د نښو ( علامتونو ) پوهنه ( علم )، ( پا ) نماد شناسی، ( ان ) symbology, semiology

**نښتون** nṣt-ún : بندوالی، ناوزګارې، بوختوالی، بوختيا، مشغولتيا، ( پا ) مصروفيت، مشغوليت، ( ان ) engagement, busyness

**نښتيز** nașt-íz : خنډ ، آړ ، بنديز ، ( پا ) سد ، مانع .

**نښرغاند** naș-raǥ-ãnd : نښه ( سمبول ) جوړوونکی ، ( پا ) نماد ساز ، نماد گر ، ( ان ) symbolist

**نښرغاونه** naș-raǥ-awana : نښه ( سمبول ) جوړونه ، ( پا ) نماد سازی ، رمز سازی ، ( ان ) symbolization

**نښژبه** naș-žába : اشاره يي ژبه ، هغه ژبنۍ ړوله اشارې او حرکتونه چې د ژبې پر ځای د پوهونې او راپوهونې نقش پر ځای کوي ، ( پا ) زبان اشاری ، زبان نمادی ، ( ان ) sign language

**نښه** nása : پيلامه ، نښانه ، سمبول ، ( پا ) نماد ، نشانه ، نشان ، رمز ، ( ار ) علامت ، ( ان ) symbol

**نښه نښان** nása-neșãn : --> نوم و نښان .

**نښه ييز** nașa-yíz : اشاري ، علامتي ، ( پا ) رمزی ، نشانی ، نمادی ، ( ان ) symbolic (-al)

**نښه ييزول** nása-yiz-aw-ál : علامتي کول ، ( پا ) نشانه بودن ، يا علائم نشان دادن ، نمادی ساختن ، نماد سازی کردن ، ( ان ) symbolize

**نغد پر نغد** naǥd-par-naǥd : نغده پر نغده ، لاس پر لاس ، ( پا ) نغدی ، نقدينه ، ( ان ) in cash, for cash,

ready money

**نغښتونی** n/aṣt-ún-ay : ( پا ) بوغبند ، چادر شب ( برای پیچاندن رخت خواب ) ، ( ان ) wrapper for bed

**نغوتستاینوم** n/ót-stāy-num : اشاري صفت ، ( پا ) صفت اشاری ، ( ان ) demonstrative adjective

**نغوړمیچ** n/oẓ-meč : د اورېدا د میچ اله ، ( پا ) شنوایی سنج ، ( ان ) audiometer, audition- gauge

**نغوړ میچنه** n/oẓ-meč-ána : د اورېدا اندازه لګونه ، ( پا ) شنوایی سنجی ، اندازه گیری شنوایی ، ( ان ) audiometry

**نغوړ وړتیا** n/oẓ-waṛ-tyá : داورېدا قابلیت ، ( پا ) قابلیت شنوایی ، ( ان ) sonority

**نقش لوبونه** náqš-lob-aw-ána : رول ( پاتړ ) لوبونه ، ( پا ) نقش بازی ، نقش آفرینی ، ( ار ) ادا کاری ، ( ان ) acting, the playing of the role

**نقش زېږند** naqš-zéẓ-and : نقش ( کېربکتهر ) لوبوونکی ، کرداد لوبوونکی ، ادا کار ، نندارغاړی ، ( پا ) نقش آفرین ، ( ان ) the creater of a role

**نقش زېږونه** naqš-zeẓ-aw-ána : نقش جوړونه ،

( پا ) نقش آفرینی ، ( ان ) the creating of a role

**نقش لوبول** naqš-lob-aw-al : رول ( کردار ) لوبول ، کېرېکټر لوبول ، پاټ لوبول ، ( پا ) نقش بازی کردن ، رول ( رل ) بازی کردن ، ( ان ) to play a role (part)

**نمر گلی** nmar-gwál-ay : --> لمر گلی .

**نمرودخېل** namrud-xél : نمرودان ، نمرود پوله وګړي ، ( پا ) نمرود تبار .

**نمنځ** nmanj : نمانځنه ، درناوی ، ( پا ) پرستش ، نیایش ، بزرگداشت ، ( عر ) عبادت ؛ تجلیل ، احترام ، ( ان ) worship, praising

**نندار تون** nandár-tún : نندار ځی ، ( پا ) نمایشگاه ، محل نمایش ، ( ان ) gallery: place of exhibition, show place, showroom

**نندارځی** nandár-jay : --> نندارې ، نندارتون ، نندارېځ .

**نندار غاړی** nandár-ǰắṛ-ay : ننداره کار ، د ننداری ( تیاټر ) لوبغاړی ؛ هنر لوبی ، ( پا ) نمایشکار ، هنر پیشه ، ( ان ) actor, performer, acrobat

**ننداره کارانه** nandár-kāraná : ( پا ) نمایشکارانه ،

artistically, demonstartively ( ان )

**ننداركړكی** nandā́r-kaṛkáy : نندارېځ ، د ننداري كړكی ، ( پا ) غرفهٔ نمايش ، ( ان ) ويترين ، سټال ، ( ان ) show case

**نندارلوبه** nandā́r-lóba : تمثيلي ښوونه ، تمثيلي ټوټه ، ( پا ) نمايش ؛ پارچهٔ تمثيلی ، تمثيل ، بازی ، play, show, drama, representation

**ننداراليك** nandā́r-lík : ډرامه ، ( پا ) نمايشنامه ، درامه ، درام ، ( ان ) play, drama

**نندارليكونكی** nandar-lik-ún-kay : نندار ليك ( ډرامه ) ليكونكی ، دننداريزو داستانوليكونكی ( پا ) نمايشنامه نويس ، درامه نويس ، نويسندهٔ داستانهای نمايشی ، ( ان ) dramatist, playwright

**نندارمی** nandár-máy : كابلی روپی ، ( پا ) روپيهٔ كابلی

**ننداري** nandāre : د ( ننداره ) ډېرگړی ( جمع ) ، ښوونې ؛ د ننداري ( تمثيل ) ځای ، نندارځی ، ( پا ) نمايشها ؛ محل و يا صحنهٔ نمايش ، ( ان ) dramas, plays, shows: scene

**نندارېځ** nandaríz : نندارځی ، ننداري ، لوبېځ ، نندار

**نوږنوم** nuz-núm : په مغو ژبو ( لکه پارسي، انگریزی) کې چې نوږی ( جنس ) نه لري ، د دغه راز جنس لرونکی نوم ځرك لگي یا توپیر کېږي ، ( ان) gender noun (boy, girl)

**نوږیز** nuz-iz : د نوږي ( جنس ) اړوند ، ( پا ) جنسی ، ( ان ) sexual

**نوښت** nawáṣt : نوښتون ، نوون ، نوچار ، ( ار ) جدت ، ( پا ) نو آوري ، نو آفریني ( عر ) ابتکار ، ابداع ، ( ان ) innovation, initiative

**نوښتگر** nawaṣt-gár : نوښتوال ، د نوښت ( ابتکار ) خاوند ، ( پا ) نو آور ، صاحب ابتکار ، ( ان ) initiator

**نوښتگرانه** naw-aṣt-gar-āná : مبتکرانه ، ( پا ) مبتکرانه ، نو آورانه ، ( ان ) initiative

**نوښتون** na-waṣt-ún : --> نوښت .

نوښکاری naw-skăr-ay : نوڅرگندی ، ( پا ) نو ظهور ، نو پیدا ، ( ان ) newfangled, novel

**نوکتراش** nuk-tarâŝ : نوك اخیستونی ، ( پا ) ناخن گیر ، ناخن بر ، ( ان ) nail clippers

**نوکرنگ** nuk-ráng : د نوکونو رنگ ، ( پا ) رنگ ناخن ، لاك ناخن ، ( ان ) nail polish

**نوك سوان** nuk-swan : نوك سوانوونى، ( پا ) سوهان، ( ان ) nail file

**نول و ډول** nól-o-ḍol : روده او لار، ( پا ) طرز و روش، راه و طريقه، طرز و طريقه، راه و روش، ( ان ) style and method

**نوماندى** num-ấnd-ay : ـ نومى، نومړپه ـ، مسماپه ـ ( لكه زرغون نوماندى يا زرغون نومى سړى )، ( پا ) ( فلانى ) نام، مسمى به ـ .

**نومانډول** num-anḍwál : مغه وييونه ( كلمې ) چې د نوم نقش تر سره كوي، ( پا ) معادل اسم، ( ان ) noun-equivalent

**نوم اوړون** num-awṛ-ún : نوموال اوړون، اسمى گردن، ( پا ) تصريف اسم، ( ان ) declension

**نومپوهه** num-póha : نومپوهنه، د نومونو ( اسماوو ) علم يا څېړنه، ( پا ) نامشناسى، ( عر ) علم الاسماء، ( ان ) onomatology, onomasiology

**نومځرى** num-járay : د نوم ښكارندوى ( ضمير )، ( پا+ عر ) ضمير، ( ان ) pronoun

**نومانيز** naw-man-íz : مغه ويى ( لغت ) چې مانيز

بدلون پکې راوړ شوی وی، لکه «دریغ» په پخوانی مانا «منبر» واو په اوسنی مانا «موقف» شوی دی، ( ان ) semantism

**نوم اوښتون** nom-awaṣt-ún : د نوم ( اسم ) تغییر، د نوم مغیره حالت، ( پا ) تغییر حالت اسم، حالت مغیرهٔ اسم، ( ان ) oblique case

**نوم پېر** num-pér : د نوم حالت، ( پا ) حالت اسم، ( ان ) declensional case

**نوم پېژندون** num-peẑ-and-ún : د نوم تعریف، ( پا ) تعریف اسمی، ( ان ) nominal definition

**نومترړنگ** num-taṛ-áng : نوموالترړنگ، اسمی ترکیب، ( پا ) ترکیب ( مرکب ) اسمی، ( ان ) nominal compound

**نومځریز** num-jar-íz : ضمیري، د نومځري ( ضمیر ) اړوند، ( پا ) ضمیری، ( ان ) pronominal

**نومژبه** num-ẑába : هغه ژبه چې زیاتره نوموالې غونډلې ( اسمي جملې ) کاروي، ( پا ) زبان اسمی، ( ان ) noun-language

**نوم شمېر** num-šmer : هغه شمېر ( عدد ) چې د نوم پر ځای راځي، ( پا ) عدد اسمی، ( ان ) noun-numeral

**نوم گړنه** num-gaṛ-ána : اسمي اصطلاح، ( پا )

محاورهٔ) اسمی ، ( ان) nominal idiom

**نوم لاړی** num-lā́ṛ-ay : نومور ، نوموړی ، پېژندوی ، نومیالی ، اوښار ، نوم لوړی ، ( پا) نامدار ، نامور ، نامی ، بلند آوازه ، ( ان) famous

**نوم لوړی** num-lwáṛ-ay : لوړ نومی ، نوم لاړی ، لوی نومی ، د لوی نامه خاوند ، اوښار ، ( پا ) بلند آوازه ، بلند نام ، ( ان ) high pitched, famous

**نوملیك** num-lík : په یوه کتاب کې د راغلیو نومونو ( اعلامو ) فهرست ، ( پا ) فهرست اعلام ، لست اسماء ، فهرست نامه ، ( ان ) index

**نوملیکیز** num-lik-íz : فهرستي ، ( پا ) فهرستی ، ( ان ) indexical

**نوم لیکنه** num-likána : نوم کښنه ، ( خان ) ښېره کونه ، ( پا ) نامنویسی ، ثبت نام ، ( ان ) enlistment, enrolling, registration

**نومنوړی** num-nóẓay : نوموال نوړی ( جنس ) ، اسمي جنس ، ( پا ) جنس اسمی ، ( ان ) nominal gender

**نوموالہ غونډله** num-wā́la-ɣwánḍla : اسمي غونډله ( جمله ) ، ( پا ) جملهٔ اسمیه ، ( ان ) nominal

sentence

**نومورکی** num-wrąk-ay : ورکنومی ، بېنوم ، ( پا ) گمنام ، بی نام ، ( ان ) anonymous, nameless

**نومورکی سپاهي** num-wrák-ay-spāhí : هغه سپاهی ( سرتېری ) چې په جنگ کې مړشوی وي او کوم نوم نښان یې راپاتې نه وي ، ( پا ) سپاهی گمنام ، ( ان ) anonymous soldier

**نوموړی** num-wáṛ-ay : نومړ ، نومور ، نومیال ، نومیالی ، ( پا ) نامور ، نامدار ،

نوموړی num-a-wáṛ-ay یادشوی ، ( پا ) نامبرده ، مذکور ، ( ان ) aforesaid, above-named, above-mentioned

**نومولی** num-aw-ál-ay : نومول شوی ، مسمی شوی ، کاندید شوی ، کېنوېید ، ( پا ) نامزد ، کاندید ( شده ) ، ( ار ) امیدوار ، ( ان ) betrothed, hominated, condidate

**نومونپوهنه** num-aw-án-poh-ána : د ( تخنیکي ) نومه ونو پوهنه ( علم ) ، ( پا ) نامواژه شناسی ، دانشواژه شناسی ، اصطلاحات شناسی ، ( ان ) terminology

**نومونپوهنیز** num-aw-an-poh-an-íz : نومونیز ، اصطلاحي ، ( پا ) ناموازه یی ، اصطلاحی ، ( ان )

terminological

**نوموړ** num-aw-án-waŕ : دنومونې وړ ، ( پا ) قابل تسمیه یا نامگذاری .

**نوم و نښان** núm-o-neṣā̃n : نښه نښان ، ( پا ) نام و نشان ، ( ان ) name and particulars

**نوم و نوملی** núm-o-num-aw-ál-ay : اسم او مسما ، ( پا ) اسم و مسمی ، ( ان ) signified and signifier, significant and signified (or significate)

**نومونه** num-aw-ána : نوم ایښوونه ، تخینکي نومونه ( اصطلاح ) ، ( پا ) نامواژه ، دانشواژه ، ( ان ) technical term

**نومویی** num-wáyay : هر هغه ویی ( کلمه ) چې د نوم نقش لوبوي ، نومانوول ، ( پا ) واژهٔ اسمی ، ( ان ) noun-word

**نومهال** naw-mahā̆l : نوی مهال ، ( پا ) عصر جدید ، ( ار ) جدید دور ، ( ان ) new age, new epoch

**نومهالی** naw-mahā̆l-ay : د نوي مهال ( وخت یا دور ) اړوند ، ماډرن ، ( پا ) نوین ، مربوط زمان حاضر ، عصری ، معاصر ، ( ان ) modern, modernist, contemporary

**نومیالی** num-yāl-áy : نومیال ، نومور ، نامتو ، پېژندوی ، نوموړی ، نومړ ، ( پا ) نامور ، نامدار ، ( عر ) شهیر ،

شهور، معروف، ( ان) femous, renowned, famed

**نومېز** nom-íz : نوموال، اسمي، ( پا) اسمی، ( ان) nominal

**نومېرل** numer-ál : ټاکل، تشخیصول، جوتول، ( پا) تشخیص کردن، مشخص کردن، ( ان) to distinguish

**نومېرنه** numer-ána : ټاکنه، تشخیصونه، جوتونه، ( عر) تشخیص، تثبیت، کشف، ( ان) distinction, discernment, finding, diagnosis

**نونځی** nunác-ay : هغه څوك چې نونځه ( نقاهت) تېروي، تر بېمارۍ وروسته چې د نقاهت ( کمزورۍ) دوره تېروي، ( ان) indisposed, (slightly) ill after sickness

**نوواله** naw-wăl-a : نو پالنه، نوخوښي، ( پا) نوین گرایی، نو پرستی، ( ان) modernism, modernization, neology

**نوون** naw-ún : --> نوښت.

**نوېز** naw-éz : نوویز، نوویی، نوی رغولی ویی ( لغت)، ( ج: نوېزونه)، ( پا) واژهٔ جدید، واژهٔ مصنوعی، ( ان) neologism

**نوی نړۍ اوډ** náway-naṛay-óḍ : نوی نړیوال اوډون ( نظم)، ( پا) نظم نوین جهانی، ( ان) new world-order

**نوي ژبپوهان** náwi-žab-pohắn : د یو ډول ژبني

ښوونځي ( سکول ) اړوندان ( منسوبین ) ، ( پا ) منسوبین یکی از مکاتب زبانشناسی ، ( ان ) neolinguists

**نوپستنه** naw-es-ána : نوپستوني ، نوې را ایستنه ، ( پا ) نو آوری ؛ نو آورده ، ( عر ) ابتکار ؛ اختراع ، ( ان ) innovation; initiative, novation

**نوپستونی** naw-est-ún-ay : نوی را ایستونکی ، نو سازی ، ( پا ) نو آورد ؛ نو آور ؛ نو ساز ، ( عر ) مبتکر ، مخترع ، ( ان ) innovator; initiator

**نوپستوني** naw-est-un-í : --> نوپستنه .

**نوې ښکارنده** náwe-ṣkār-an-da : نوې پدیده ، ( پا ) پدیدهٔ نو ، ( ار ) نیا مظهر ، ( ان ) a new phenomenon

**نوې کتنه** náwe-kat-ána : نوی نظر ، ( پا ) تجدید نظر ، ( ار ) نظر ثانی ، ( ان ) revision, review

**نویونی** naw-yún-ay : نو سفری ، ( پا ) نو سفر ، سفر نکرده ، ( ان ) traveller for the first time

**نه برید** ná-brid : نه یرغل --> نه تېری .

**نه پخلا کېدونکی** ná-poxlā-ked-únk-ay : ( پا ) آشتی نا پذیر ، ( ان ) irreconcilable

**نه تېرى** ná-teray : نه بلوسنه، نه برید ( پا ) عدم تجاوز، ( ان ) no-aggression

**نه ټینګار** ná-ṭing-ā̃r : ( پا ) عدم مقاومت، عدم ایستاده گی، عدم اصرار، پافشاری، ( ان ) unresistence; de-emphasis, irresolution

**نه ستومانېدونکى** ná-stomān-ed-ún-kay : نه ستړېدونکی، نه ستړی کېدونکی، ( پا ) نستوه، خستگی نا پزیر، ( ان ) indefatigable, untiring

**نه لاسوهنه** ná-lās-wah-ána : نه مداخله، ( پا ) عدم مداخله، ( ان ) non-intervention

**نهيل** nahil : ناهیلی، بې هیلې، نامېنده ( ناامیده ) ( پا ) نومید، مایوس، ( ان ) hopeless, desperate

**نهيلي** nahil-í : ناهیلي، نامېدي ( ناامیدي )، ( پا ) نا امیدی، نومیدی، مایوسی، ( ان ) hopelessness, despair, dejection

**نې** ne : د پښتو ابېڅې شپږویشتم توری ( ن )، ( پا ) نون ( ن )، حرف بیست و ششم الفبای پشتو.

**نياوتون** nyāw-tún : نیاوځی، ( د عدالت ) محکمه، ( پا ) داد گستری، ( ار ) محکمهٔ عدالت، عدالت خانه، عدلیه،

کچهری ، ( ان ) administration of justice, court

**نیاوتوني** nyā-tun-í : محاکمه يي ، عدالتي ، عدليه ، ( پا ) محاکماتی ، عدالتی ، داد گستری ، مربوط محکمه و عدالت خانه ، ( ان ) court-; justly, judicial

**نیاومن** nyāw-mán : دنیاو ( عدل ) لرونکی ، نیاوی ، ( پا ) دادگر ، داد گستر ، با انصاف ، داد آور ، دادار ، ( عر ) عادل ، مصنف ، ( ان ) judge, ludicious

**نیاومني** nyāw-man-í : نیاومنوالی ، نیاومنتیا ، ( پا ) دادگری ، عدالت ( پسندی ) ، ( ان ) justice, equity, fairne

**نېټه لیك** neta-lík : پېښلیك ، ( پا ) کتاب تواریخ ایام ، شرح وقائع بترتیب تاریخ ، ( ان ) chronology; chronologically

**نېزي** nez-í : د نېز ( سیلاب ) اړوند ، سېلنی ، ( پا ) سیلابی ، ( ان ) torrential, diluvial, diluvian

**نېغه لیکه** néǯa-líka : نېغه کرښه ، ځکه لیکه ، ( پا ) خط عمودي ، خط قائم ، ( ان ) vertical line

**نېك الواکی** nek-alwăk-ay : د نېك نظر خاوند ، نیك نظری ، ( پا ) نېك نظر ، نیك بین ، خوشدل ، ( ان ) good-sighted

**نېك اندى** nek-ánd-ay : ښه اندى، سم اندى، نيك خياله، ( پا ) نيك انديش، نيكخواه، خير انديش، ( ان ) benevolent, well-wisher, well-intending

**نېك پاى** nek-pā́y : نېك پايلى، ( پا ) نيك فرجام، نېك انجام، خوش عاقبت، ( ان ) ending-well, prospectous

**نېك چارى** nek-čā́r-ay : --> نېك كارى.

**نيك چاري** nek-čār-í : نيك كاري، ښه كاري، ښهانه، ښېگڼه، ښمر، ( ان ) goodness, beneficence, righteousness

**نېك چلندى** nek-čalánd-ay : پوست چلندى، ( پا ) خوش بر خورد، نېك رفتار، خوش رفتار، ( ان ) well-behaved

**نېك خويه** nek-xúy-a : درون خويه، نيك رغبتى، غونيبنى، نېك لوښى، ( پا ) نيكخو، خوشخو، نيك خصلت، نيكو سرشت، نيك سيرت، ( ان ) virtuous, endowed, good natured

**نېكخويي** nek-xuy-í : درون خويي، نېكوښي، ( پا ) نيكخويى، خوشرفتارى، ( ان ) good nature, good femper

**نېك رغښتى** nek-rǎ́ṣt-ay : ښه رغښتى، ( پا ) نېك

سرشت ، نیکو سرشت ، نیك طینت ، خوش طینت ، خوش قلب ، ( ان ) well - disposed, good - natured

**نېك زړی** nek-záṛ-ay : پاك زړی ، سپین زړی ، ( پا ) خوش قلب ، نیك دل ، ( ان ) good hearkd

**نېككاری** nek-kắr-ay : نېكچاری ، ( پا ) نیكو كار ، ( ان ) beneficent, righteous

**نېكنامي** nek-nām-í : نېكنومی ، ( پا ) نېكنامی ، خوشنامی ، ( ان ) good name, reputation, fame, respectablity

**نېكنومی** nek-múm-ay : نېك نامی ، ( پا ) نیك نام ، نیكو نام ، خوشنام ، ( ان ) well-known, famous, respectable, renowned, famed

**نېكنومي** nek-num-í : نېكنامي ، ( پا ) نیكنامی .

**نیلگر** nil-gar : نیلكاری ، چاپه گر ، رنگوونكی ، ( پا ) نیلكار ، نیلگر ، ( ان ) a manufecturer of indigo

**نیم پر نیم** ním-par-ním : نیم پر نیمه ، ( پا ) بطور متساوی ، نصفا نصف ، ( ان ) half and half, fifty- fifty

**نیم پوخ** nim-póx : نیم خام ، ( پا ) نیم پخته نیمرس ، ( ان ) half-cooked, half- ripe, half- baked

**نیم پورته** nim-pórta : نیم خیژی، نیم جگی، نیم اوچتی، ( پا ) نیم خیز، ( ان ) half- lifted, half-raised

**نیم تخت** nim-táxt : وړوکی تخت ( صوفه )، ( پا ) نیم تخت، صوفه، ( ان ) couch, sofa, half- sole

**نیم تمغږ** ním-tam-ǰáz : نیم انسدادي غږ، ( پا ) نیم بستواج، ( ان ) semi- plosive, affricate

**نیم ټولیز** nim-ṭol-íz : نیم ټولوال، نیم عمومی، ( پا ) نیم همگانی، نیم عمومی یا عامه، ( ان ) semipublic

**نیمځوړند** nim-jwáṛ-and : نیم ځړېدلی، نیم رپند، نیم رپاند، ( پا ) نیم آفراشته، نیمه آفراشته، ( ان ) half-mast

**نیمڅیگر** nimci-gár : نیمڅی ( لیمسی ) جوړوونکی، کراسگر، ( پا ) نمد مال، نمد ساز، ( ان ) Felt maker

**نیمڅین** nimc-ín : وړین، ( پا ) نمدی، پشمی، ( ان ) feet

**نیمڅینه** nimc-ína-xwaláy : وړینه خولی، ( پا ) کلاه نمدی، کلاه پشمینه.

**نیم خدای** nim-xwdā̃y : خدایگوټی، ( پا ) نیمخدا، نیمه خدا، ( عر ) رب النوع،آلهه، ( ان ) demigod

**نیم خند** nim-xánd : نیمه کړی، نیمه دایره، ( پا ) نیم

دایره ، ( ان ) half circle

**نیم خنده** nim-xánda : نیم خندی ، ( پا ) نیم دایره یی ، نیم دائروی ، ( ان ) semicircular

**نیمخوبه** nim- xób-a : نیم خوب کړی ، نیم ویده نیم خوبولی ( خوبېدلی ) ، ( پا ) نیمخواب ؛ نیم خوابیده ، ( ان ) half-asleep

**نیمخوبي** nim-xob-í : نیم ویښتیا ، ( پا ) نیمخوابی ، ( ان ) half- sleep

**نیمخوږ** nim-xóẓ : خوږه´ لوړی ، ( پا ) نیم شیرین ، میان خوش ، ( ان ) semisweet

**نیمرپاند** nim-rap-ā̆nd : نیمځوړند ، نیمکښو ، نیم هسك ، نیم ځړېدلی ، ( پا ) نیمه آفراشته ، ( ان ) half-mast

**نیمروښان** nim-rosā̆n : تت ، نیم رڼا ( پا ) نیمه روشن ، ( ان ) half-lit, dim

**نیمروڼ** nim-rúṇ : نیم رڼا ، نیم روښان ، ( پا ) نیم شفاف ، نیم مکدر ، ( ان ) semitransparent, translucent

**نیم ژواندی** nim-žwā̆nd-ay : نیم مړېیه ، ناپړانده ، نیمزال ، نیمزالی ، ( پا ) نیم جان ، نیم مرده ، ( ان ) half-dead

**نیمسدی** nim-sád-ay : نیم ویښیار ، نیم نشه ، ( پا ) نیم

مشیار ، ( ان ) semiconscious

**نیمسوی** nim-sáway : نیم سوځېدلی ، ( پا ) نیمسوخته ، نیمسوز ، ( ان ) half-burnt, scorched, smoldering

**نیمسیوری** ním-syoray : نیم سیوری ( نیم یا نری سوری ) ، ( پا ) نیمسایه ، ( ان ) penumbra

**نیم غونډاری** nĭm-ɣwanḍ-ăray : نیمه کره ، ( پا ) نیم کره ، ( ان ) hemispheroid, hemisphere

**نیم کره** ním-kará : نیم معیاري ( ژبه ، ګډود ) ، ( پا ) زیر استاندرد ، ( ان ) sub-standard

**نیمکښو** nim-kaṣ-ó : نیمکښ ، نیمښکاره ، ( پا ) نیم رخ ، نیمچهره ( ان ) a profile, vertical

**نیمګړې همرنګي** : nim-gaṛe-ham-rang-í

برخیزه یانابشپړه همرنګي ( یورنګي ) ، ( پا ) همګونی ناقص ، ( ان ) partial assimilation

**نیملاری** nim-lăr-ay : نیمواټنی ، ( پا ) نیمراه ، نیمه راه ، ( ان ) halfway, midway

**نیملاري** nim-lar-í : نیم واټني ، ( پا ) نیمراهی ، نیمه راهی ، ( ان ) halfway, midway

**نیموچ** nim-wač : نیملوند ، ( پا ) نیم خشك ، نیمتر ،

( ان ) half-dry, semiarid

**نيموچه** nim-wáca : نيمه وچه، براعظم گی، ( پا ) نيم قاره، ( ار ) بر صغير، ( ان ) sub-continent

**نيمونی** nim-wán-ay : نيم قدی، ( پا ) نيم قد، ( ان ) half-size

**نيمويښ** nim-wíṣ : نيمويده، ( پا ) نيم بيدار، ( ان ) half-awake

**نيم ويښيار** nim-wiṣ-yăr : --> نيم سدی.

**( نيمه ) موسکا** (níma-) mosk-ắ : نيمه خندا، ( پا ) نيم خند، لبخند، ( ان ) smile, snicker

**نيواك** niw-ắk : نيوکه، ( پا ) اشغالگری، ( عر ) قبضه، اشغال، ( ار ) قبضه گری ( ان ) invasion, occupation

**نيواکگر** niwak-gár : بلوسگر، ( پا ) اشغالگر، ( ار ) قابض، ( ان ) invader, occupier

**نيوليك** niw-lík : دسرليکونو ( عنوانونو ) لست يا فهرست، ( پا ) فهرست مندرجات، ( ار ) فهرست مضامين، ( ان ) table of contents

**نيمواك** nim-wák : نيم واوېل، ( پا ) نيمواکه، شبه واکه، شبه ويل، ( ان ) semi-vowel

# (و)

**واټ مېچ** wāṭ-meč : --> واټن مېچ .

**واټن مېچ** wāṭan-meč : ( پا ) مسافت نما ، فاصله سنج ، ( ان ) odometer, taximeter

**واده تړ** wāda-taṛ : د واده اړه تړه ( بندوبست ) ، ( پا ) بندوبست عروسی ، ( ان ) marrage arrangement

**واده څله** wāda-calá : د واده څله ( گوته ) ، ( پا ) چلهٔ عروسی ، انگشتر عروسی یا ازدواج ، حلقهٔ عروسی ، ( ان ) wedding ring

**واده شپه** wāda-špa : دواده شپه ، ( پا ) شب عروسی ، شب زفاف ، ( ان ) wedding night

**واده والا** wāda-wālā : واده کړی نارینه یا واده شوې ښځینه ، ( پا ) زن دار ، شوهردار ، ( عر ) متأهل ، متأهله ، ( ان married

**وارگری** wār-gar-ay : دوار ( نوبت ) خاوند ، ( پا )

نوبت چی ، ( ان ) on the round, in turn

**واره من** wāra-mán : واره يي ، وړنده ، وړ ، ( پا ) واره دار ، گوارا ، سودمند ، ( ان ) favourable, in accord

**واره يي** wāra-yí : <-- واره من .

**واريز** wār-íz : په نوبت ، ( پا ) نوبتی ، ( عر ) بالنوبه ، متناوب ، ( ان ) in turns, by turns

**واښاوبی** wāṣ-ób-ay : ( پا ) ريسمان باف ، ( ان ) rope-maker, spinner

**واښلوبه** wāṣ-lóba : پيشوپړی ، ( پا ) ريسمان بازی ؛ ريسمان کشی ، ( ار ) رسه کشی ، ( ان ) rope-dancer; tug of war

**واښه والا** wāsa-wālā́ : واښه پلورونکی ، واښه پلوری ، واښه خرڅوونکی ؛ بوس خرڅوونکی ، ( پا ) علف فروش ؛ کاه فروش .

**واك لاندې** wāk-lā́nd-e : بېواك ؛ ښكېكلاك لاندې ، لاسكتوی ، ( پا ) زير اختيار ، بی اختيار ، زېر دست ، زير تسلط ، زير حاكميت ، زېر استعمار ، ( عر ) محكوم ، مستعمره ، ( ان ) subordinate, colonised

**واك لاندې ويی** wāk-lā́nde-wayáy : واكيالی ،

واکتاب ، واکتده ، ( ان ) governed word

**واکمن** wāk-mán : واکوال،واکوالا ، دواك څښتن ، د اختيار خاوند ؛ پاچا ، ټولواك ، ( پا ) صاحب اختيار ، اختيار دار ؛ زمامدار ، صلاحيت دار ، با صلاحيت ؛ پادشاه ، ( ان ) ruler; authority; king, competent

**واکمن مېشتي** wāk-man-mĕšt-í : واکمن مېشتی ، پلازمېنه ؛ د واکمن تر واك چلونې لاندې سيمه ، ښار يا هېواد ، ( پا ) حاکم نشين ، حاکم نشينی ، مرکز حکومت ؛ پايتخت ، ( ان ) chief town of residence, capital

**واکمني** wāk-man-ĭ : واکوالی ، واکيالي ؛ پاچايي ، ( پا ) اختيار داری ؛ زمامداری ؛ بادشاهی ، ( ان ) authority; kingdom; government

**واکناب** wák-nắb : --> واکمن .

**واکنده ويی** wâkandá-wayáy :واك چلوونکی ويی ، ( پا ) واژهٔ حاکم ، ( ان ) governing word

**واکوال** wāk-wắl : واك والا ، واکمن ، واکيالی ، واکتاب ، واکنده ، دواك خاوند ، واکدار ، ( پا ) صاحب اختيار ، با صلاحيت ، ( ان ) ruler, soereign

**واکيالی** wāk-yāl-áy : --> واکمن ، واکوال .

**واګي** wā́gi : ملوني، متروکه؛ واك، ( پا ) زمام، عنان، لجام، اختيار، ( ان ) rein, bridle; rule, power, control, dominion, option

**وانديز** wānd-ī́z : خيالي، ګوماني، د خيال اړوند، ( پا ) خيالی، تخيلی، ( ان ) idial, imaginative

**واور پاکوونکی** wā́war-pāk : واوره پاکوونکی، ( پا ) برف پاکن، برف پتطم، برف روب.

**واور پاکي** wắwar-pāk-ī : واوره پاکي، ( پا ) برف پاکی، برف روبی، ( ان ) snow cleaning

**واوربوټ** wāwar-buṭ : واورګوټ، واور کوښي، ( پا ) کفش ( روی ) برف، ( ان ) snow-shoe

**واورپټ** wā́war-pāṭ : واورين، په واورو پټ، ( پا ) برف پوشيده، پوشيده از برف، ( ان ) snowy, snow-clad

**واورپلوری** wā́war-plor-ay : --> واوره والا.

**واورپوټی** wāwar-puṭáy : د واورې پوټی، ( پا ) دانهٔ برف، تکهٔ برف، ( ان ) snowflake

**واورټوپی** wā́war-ṭopáy : د واورو ډېری، ( پا ) تودهٔ برف، برف انبار، ( ان ) snow-drift

**واور دوړ** wā́war-dúṛ : بادوړه، ( پا ) برف کويه.

**واورسپېڅ** wấwar spéc : واور پاك ، هېندارسپېڅ ، ( پا ) برف روب ، برف پاك ، برف پاك كن ، ( ان ) snow-sweeper, snow-plough, snowplow

**واورش** wǝ̄wr- ăš : واورږ يارېز ، ( پا ) برف كوچ ، كولاك برف ، توفان برف ، ( ان ) snowstorm

**واوربښكېل** wấwar-ṣkél : په واورو كې ښكېل ( گير ) ، ( پا ) د چار برف ، ( ان ) snow-bound

**واورغونډ** wấwar-ǥwánd : واورپنډوس ، دواورو غونډارى ، ( پا ) پاغندهٔ برف ، گلولهٔ برف ، ( ان ) snowball

**واورمېچ** wấwar-mèč : د واورې دمېچلو ( اندازه كولو اوزار ( اله ) ، ( پا ) برف سنج ، ( ان ) snow-gauge

**واوروب** wāwr-ób : واوروبه ، واورو بى ، ( پا ) برفاب ، snow-water, slush ( ان )

**واوره غرى** wấwra-ǥáray : يويو پوتى ( اوبلنه وربېدونكې واوره ، ( پا ) برف برنجك ، ( ان ) soft ice

**واوره ڼى** wấwra-ṇáy : كنگلنى ، كنگلځى ، ( پا ) يخدان ، برف دان ، ( ان ) ice-cell

**واوره والا** wấwra-walấ : واور پلورى ، د واورې پلورونكى ( خرڅوونكى ) ، ( پا ) برف فروش ، ( ان ) ice-seller

**واورين** wawr-ín : واوريز ، له واورو ډك ( ناكره ) ، ( پا ) پر از برف ، برفی ، برفين ، ( ان ) snowy, of snow

**واورين سړی** waw-rín-saṛáy : له واورو جوړ شوی سړی ، ( پا ) آدم برفی ، ( ان ) snow-man

**واورې وربښت** wắwre-war-áṣt : د واورې ورېدنه ، ( پا ) بارنده گی رف ، ( ان ) snowfall

**وبښه!** wá-baṣa : و بخښه ! ( پا ) ببخش ! ( ار ) معاف کرو ! ( ان ) beg your pardon! excuse pardon me(s.g.)

**وبښئ !** wa-baṣ-ay : وبخښئ ! ( پا ) ببخشيد ! ( ار ) معاف کرېں ! ( ان ) excuse pardon!(pl.)

**وبله سوله ييز ژوند** : wábla-sola-yīz-žwánd : ګډسوله ييز ژوند ، ( پا ) زيست باهمی مسالمت آميز ، همزيستی مسالمت آميز ، ( ان ) peaceful coexistence

**وتلار** wat-lắr : وتوځی ، ( پا ) راه بيرون رفت ، راه خروج ، راه بدر رفت ، ( ان ) outlet, egress

**وتوځی** wat-ó-jay : وتونځی ، د غږ مخرج ، ( پا ) بيرون رفت ، مخرج ( آواشناسی ) ( جر ) artikulationstelle ، ( ان ) the place of articulation,

**وتون** wat-ún : وتنه ، ( پا ) برآمد ، بیرون رفت ، بدرفت ، ( عر ) خروج ، ( ان ) exit

**وتونپېر** wat-ún-per : توني کړول ، مکاني قید ، د مفعول منه حالت ، ( پا ) حالت مفعول منه ، ( ان ) ablative case, ablative; local adverb

**وتونوت** wat-un- wát : د مرغۍ لاره ، نرۍ وتلار یا وتوځی .

**وتپوهنه** waṭ-poh-ána : اقتصاد پوهنه ، اقتصاد پېژندنه ( ناکره ) ، ( پا ) علم اقتصاد ، اقتصاد شناسی ، ( ان ) economics

**وټ کټ** wáṭ-káṭ : سکینده ، ( پا ) تلافی ، ( عر ) جبران ، جبیره ، ( ان ) compensation

**وټندوی** waṭ-and-óy : --> سپماګر ، پاسره ګر .

**وټه** wáṭa : اقتصاد ، ( پا+ عر ) اقتصاد ، اقتصادیات ، ( ان ) economy

**وټیز** waṭ-íz : وټه ییز ، د وټې ( اقتصاد ) اړوند ، اقتصادي ، ( پا ) اقتصادی ، ( ان ) economic, economical

**وچ اودس** wač-awdás : شلور غړی ( پا ) وضوء چهار اندام ، ( ان ) ablution

**وچ زیلانځی** waĉ-zilănj-ay : شنډ، چپ زیلانځ (رحم) یې وچ وي، (پا) دارای زهدان خشك، (ان) having a sterile womb

**وچ چاپېرهېوادونه** : waĉ-ĉaper-hewaduna

په وچه کې پراته هېوادونه، وچ کڅي یا نا کڅیز هېوادونه، وچ غاړي هېوادونه، (پا) کشور های محاط به خشکه. (ان) land-locked countries

وچ ښکېلي هېوادونه--> وچ چاپېر هېوادونه.

**وچ غاړی** waĉ-ğāṛ-ay : وچ کڅی، وچ چاپېر، (پا) محاط به خشکه، (ان) land-locked

**وچکښی** waĉ-kaṣ-ay : وچکښ، وچکښی، (پا) مداد، پنسل، (ان) pencil

**وچولن** waĉ-wlán : وچولنه، وچ مینځنه، (پا) خشکه شویی، (ان) dry-cleaning

**وچولنځ** wáĉ-wlán-j : د وچولن (-->) ځای یا دوکان، (پا) محل و یا دستگاه خشکه شویی، (ان) dry-cleaning (shop)

**وچ ولنده** wáĉ-o-landá : (پا) خشك و تر (نان، قرغه)؛ بحر و بر، (ان) dry-wet, sea and land

**وڅکې ورغښتي** wácke-warǰaṣtí : وڅکې او بادام، ممیز و بادام، وچه مېوه، مغزکي( پا ) کشمش و بادام، میوهٔ خشك، ( ان ) dry fruit

**وخت تېرى** wəxt-tér-ay : وخت گوډى، ( پا ) وخت گذران، ( عر ) دفع الوقت، ( ان ) pass time

**وخت تېري** waxt-ter-í : وخت تېرى، وخت تېرونه، ورختچاري، وخت گوډونه، ( پا ) وقت گذرانى، دفع الوقتى، ( عر ) دفع الوقت، ( ان ) pass time, procrastination

**ودون جوړه** wadun-ǰoṛá : مېړه او ښځه، مېړه او مېرمن، ( پا ) زن و شوهر، ( ان ) copel

**ودون گوته** wadun-gwáta : --> واده گوته .

**ودانوونى** wadān-aw-ún-ay : --> ودانیز، رغاونیز .

**ودگرى او ناوې** : wad-gár-ay-aw-nā́we
--> ناوې او ودگرى .

**وراره بوره** wrā́ra-búra : بوره وراره، زومړى او ورورمړى، ( پا ) زن پسر مرده و برادر مرده .

**وراشه** wrā́ša : په زړه پورې پخه وینا، وایه، د کانې کرښې وینا، ( پا ) گفتار نیك، وجیزه، گفتار بزرگان، ( ان ) saying, good words, advice

**وران ویجاړ** wrā̃n-wiǰā̃r : ړنگ بنگ، بیخي وران، ( پا ) خراب و ویران، بکلی ویران.

**وربانی** war-bā̃ṇay : ورسات، ورساتونی، ورساتونکی، دروازه وان، ( پا ) دربان، ( ان ) watchman, doorman

**ورتلونپېر** war-tlún-per : د مفعول له حالت؛ مکاني کړول، تونې کړول، ( پا ) حالت مفعول له؛ قید مکان، ( ان ) locative, local adverb

**ورتني** war-ta-ní : دورته ( شبیه ) اړوند، تشبیهي، ( پا ) تشبیهی، همسانی، ( ان ) comparative, likening

**ورتني وییکی** wartan-í-wayíkay : تشبیهی ادات، ( پا ) ادات تشبیهی، ( ان ) comparative particle

**ورته دوه ژبي** wárta-dwa-žab-í : ( پا ) شبه دو زبانی، ( ان ) semi-bilingualism

**ورتني** war-ta-ní : دورته ( شبیه ) اړوند، تشبیهي، ( پا ) تشبیهی، همسانی، ( ان ) comparative, likening

**ورته مانیز** warta-mān-íz : نژدې مانیز، ( عر ) قریب المعنی، ( ان ) semi-synonym

**ورځپاڼه** wraj-pā̃ṇa : ورځنی ( خپرونه )، ( پا ) روزنامه،

**ورخچاری** wraj-čăray : وختچاری ( پا ) فرصت طلب ، ( عر ) ابن الوقت ، ( ان ) opportunist

**ورخچاري** wraj-čār-í : وختچاري ، ( پا ) فرصت طلبی ، ابن الوقتی ، ( ان ) opportunism

**ورخچلند** wraj-čalánd : --> ورخچاری .

**ورخچلندی** waraj-čaland-ay : ورخچاری ، وختچاری ؛ ورختېری ، ( پا ) فرصت طلب ؛ روز گذران ، ( ع ) ابن الوقت

**ورخچلند ژبه** wraj-čaland-žába : ( عامه ) ورځنی ژبه ، گډه ( گړنۍ ) ژبه ، ( پا ) زبان همگانی گفتاری ، زبان روزمره ( گفتاری ) ، زبان ( عامهٔ ) روزمره ، ( ان ) vernacular, colloquial speech

**ورځ دې ښه!** wráj-de-ṣa : ورځ دې نېکمرغه ، ( پا ) روزت خوش ! ( ج : ورځ مو ښه ! : روزتان خوش ! )

**ورځلوی** wraj-lóy : --> لوورځ .

**ورځنی** wraj-an-áy : --> ورځپانه .

**ورزووند** war zó-w-and : کرکي ، گرجن ، وېزار ، ( پا ) نفرت کننده ، بیزار ، ( عر ) متنفر ، ( ان ) hateful

**ورکلاری** wrak-lăr-ay : --> لارورکی .

**ورك مرغه** wrák-maryá : ( پا ) سیمرغ ، ( ان )

phoenix

**ورکنومی** wrak-núm-ay : --> نومورکی.

**ورماند** warm-ắnd : ورم ( وعظ ) کوونکی، ( پا ) وعظ کننده، واعظ، ( ان ) preacher

**ورمليك** warm-lĭk : پند نامه، ( پا ) پند نامه، نصحیت نامه، ( ان ) guid book

**ورمند** warmánd : امر، ( پا+ عر ) امر، ( ان ) order, command,

**ورمند دود** warmand-dód : امري دود، د کړ ( فعل ) يو گرداني اړخ، ( پا ) صيغهٔ امر، ( ان ) imperative mood

**ورمندون** warmand-ún : درېمگړتوب، ( پا ) قضاوت، داوری، محاکمه، ( ان ) arbitration, judgment; trial

**ورمنديز** warm-and-íz : دورمند يا ورمندون ( قضاوت )، اړوند؛ امري، حکمي، ( پا ) قضایی؛ امری حکمی، ( ان ) judicial; imperative

**ورموال** warm-wắl : ورماند، ورم ( پند ) کوونکی، وعظ کوونکی، ( پا ) اندرز ( پند ) دهنده، واعظ، ( ان ) adviser, preacher, sermonizer

**ورم و پند** wárm-o-pánd : پند او نصحیت، ورم

وښکوم، ( پا ) پند و نصحيت، پند و اندرز ، وعظ و نصحيت ، ( ان ) advice and exhortation, preaching and sermon

**ورم و وراشه** wárm-o-wrắša : پند و نصيحت ، وعظ و نصحيت ، ( پا ) پند و اندرز ، وعظ و نصحيت .

**وروررانه** wror-āná : --> وروركلويز .

**وروركلويز** wror-galw-íz : وروررانه ، ( پا ) برادرانه ، ( ان ) brotherly

**وروري او برابري** wror-í-aw-barābar-í : وروري او مساوات ، ( پا ) برادری و برابری ، أخوت و مساوات ، ( ان ) brotherhood and justice

**وروريز** wror-íz : --> وروركلويز .

**وروستی بڼه** wrustáy-báṇa : نهايي شكل ( وركول ) ، ( پا ) شكل نهايي ( دادن ، بخشيدن ) ، ( ان ) final tuch

**وروستی تالوييز** wrustáy-tālu-íz : --> نرم تالوييز .

**ورهڼگر** warhāṇ-gár : ورمهه گر ، كسبگر ، ( پا ) پيشه ور ، ( ان ) professional, craftsman

**وری** wray : وری؛ دوري مياشت ، ( پا ) بره؛ برج ( ماه )

حمل، ( ان ) lamb; the Aries

**وریتـه** writá : وریته غوښه، کباب، ( پا ) کباب، ششلیك، ( ان ) roast, kebab

**وریتـه ډوډۍ** writá-ḍoḍáy : سوخاري ډوډۍ، ( پا ) نان سوخاری، نان برشته، ( ان ) roasted bread

**وریتـه گر** writa-gár : وریتی، وریته ( کباب ) والا، ( پا ) کباب پز، کبابی، کباب فروش، ( ان ) meat roaster, roast meat seller

**ورېښم چینجی** wreṣám-činǰáy : ورېښم چنجی، ورېښمین چینجی، دورېښمو چینجی، ( پا ) کرم پیله، کرم ابریشم، ( ان ) silkworm

**وړاندیز** wṛānd-íz : مخېښود، ( پا ) پیشنهاد، ( ار ) تجویز، ( ان ) proposal, offer, suggestion

**وړاندیزي** wṛānd-iz-í : پېشنهادي، ( پا )پیشنهادی، قابل پیشنهاد، پیشناد شده، ( ان ) proposed, offerd, suggested

**وړاندېینه** wrānde-yána : وړاندې کونه، ( پا ) پېشکش، ( عر ) عرضه، ارائه، تقدیم، ( ان ) presentation, exposal, offer

**وړانگن** wr̤āng-án : وړانگيز ، وړنگن ، ( پا ) درخشان ، درخشنده ، پرتوافگن ، تابان ، ( عر ) مشعشع ، ( ان ) brilliant, resplendant, sparkling, glorious

**وړکتون** war̤ak-tún : ووړتون ، ( پا ) کودکستان ، ( جر + ان ) kindergarten

**وړکتوني** wrak-tun-í : ووړتوني ، دوړکتون اړوند ( پا ) کودکستانی ، ( جر + ان ) kindergarten

**وړکتوني کوچنی** : warak-tun-í-kočnáy وړکتوني ماشوم ، ( پا ) بچهٔ کودکستانی ، ( ان ) kindergartener

**وړکينه** war̤ak-ína : کوچينه ، کوچينواله ، کوچنيوالی ، کمکينه ، ( پا ) کودکی ، بچگی ، طفوليت ، ( ان ) babyhood, childhood, infancy

**وړند** wár̤-and : وړنده ، وړ ، ( پا ) سزاوار ، گوارا ، شايان ، شايسته ، ( عر ) مناسب ، مساعد ، ( ان ) worthy, merited, capable, fit, favourable

**وړنگه** wr̤ánga : کك ، ( پا ) ذره ، ( ان ) atom, molecule

**وړنگی** wr̤ang-áy : ککوين ، ( پا ) ذره بين ، رېزبين ،

اندك بين ، ( ان ) lens, microscope

**وړنګيز** wṛang-íz : ككيز ، ( پا ) دره يی ، ذروی ، ذره بينی ، ( ان ) atomic, molecular

**وړوپړ** wáṛ-o-páṛ : بريالی او نا بريالی ، زور و كمزور ، ( پا ) پيروز و ناپيروز ، غالب و مغلوب ، زورآور و كمزور ، ( ان ) winner and loser

**وړياخور** waṛyā-xór : --> تيار خور .

**وړی او بدانه** waṛáy-obd-ána : د وړی او بدنې كار خونه ( فابريكه ) ، ( پا ) پشمينه بافی ، ( ان ) wool - industry

**وزلوبه** waz-lóba : د وزې ( بزې ) لوبه ، ( پا ) بزكشی ، ( ان ) goat-game, an Afghan nationl game

**وژ خوږ** waž-xúẓ : عصبي درد ، د اعصابو درد ، ( پا ) درد اعصاب ، ( ان ) neuralgia

**وژ پوهاند** waž-poh-ā́na : وژپوه ، د اعصابو ماهر ، ( پا ) عصب شناس ، ( ان ) neurologist

**وژ پوهنه** waž-poh-ána : وژپوهه ، عصب پوهنه ، د اعصابو علم ، ( پا ) عصب شناسی ، ( ان ) neurology

**وژ خوږی** waž-xúẓ-ay : په عصبي درد اخته ، ( پا )

مبتلا به درد اعصاب ، ( ان ) neuralgia

**وژن** waž-án : پر غزي ، قهرژلی ، له پارپدلیو اعصابو سره ، عصبی ، عصبانی ، ( پا ) عصبی ، عصبانی ، ( ان ) nervous, angry

**وژنتیا** waž-an-tyā́ : پرغزتیا ، پارپدنه ، ( پا ) عصبانیت ، خشم ، ( ان ) anger, irascibility, nervousness

**وژنشمېر** wažan-šmér : د مرگ وژلې شمېره ، ( پا ) امار یا احصائیهٔ قتل و قتال ، ( جر ) Homizirat

**وژی** wážay : رگ ؛ عصب ، ( پا ) رگ ؛ عصب ، ( ان ) vein ; nerve

**وژیز** waž-íz : وژنی ، دوژي ( رگ یا عصب ) اړوند ، ( پا ) رگی ؛ عصبی ( ان ) veined ; neural

**وژیز واروابییز** waž-íz-o-arwā-yíz : عصبي او رواني ، ( پا ) عصبی و روانی ، ( ان ) neuropsychic

**وږبی** wazḅáy : کاغه ؛ سمندري کاغه ، ( پا ) زاغچه ؛ پنگوین ، یکنوع مرغ دریایی ، ( ان ) penguin

**وږم و توږم** wáẓam-o-twáẓam : ښه بوی او بد بوی ، ( پا ) خوشبویی و بد بویی .

**وزیښاند** wazi-cǎnd : وږیښاندی ، وږیښاڼ ، وږیښاڼی ،

وږيچن، ( پا ) خوشه چين، ( ان) gleaner, compiler, plagiary

**وږيڅاندي** waẓi-cānd-í : وږيڅاني، ( پا ) خوشه چينی، ( ان) picking, culling

**وږيمن** waẓi-mán : <-- يېبرور .

**وسپن اره** waspán-ará : د وسپنې پرېکونې اره، ( پا ) ارهٔ آهن برى، ( ان) hacksaw

**وسپنباب** waspan-bā̆b : وسپنيز لوښي او زار، ( پا ) آهن الات، ( ان) ironware, hardware

**وسپنپاڼه** waspan-pā̆ṇa : ( پا ) ورق آهن، آهن ورق، ( ان) sheet iron

**وسپن پښ** waspan-páṣ : پښ، گگر، ( پا ) آهنگر، ( ان) blacksmith, ironsmith

**وسپن پښي** waspan-paṣ-í : پښتوب، گگري، ( پا ) آهنگرى، ( ان) smith, forge, ironworks

**وسپنپرېکند** waspán-prék-and : وسپنه غوڅوونکى، ( پا ) آهن بر، ( ان) iron-cutter

**وسپنپېر** wáspan-pér : دوسپنې پېر ( دوره)، ( پا ) دورهٔ آهن، ( ان) ironage

**وسپنتوږی** ospan-tózay : د وسپنې سوان ، ( پا ) سوهان آهن ، ( ان ) file

**وسپنڅادر** waspán-cādár : ترامه ، ( پا ) آهن چادر ، ( ان ) iron plate, iron bands

**وسپنخړی** waspan-xáṛ-ay : وسپنخیری ، ( پا ) گوی آهن ، ( ان ) iron-rust

**وسپنپلور** waspán-plór : وسپن پلورنه ، دوسپنې خرڅولو هتی ، ( پا ) آهن فروشی .

**وسپنپلوری** waspán-plór-ay : وسپنې والا ، وسپنه خرڅوونکی ، ( پا ) آهن فروش ، ( ان ) ironmonger

**وسپنکښ** waspán-káṣ : ( پا ) آهن ربا ، ( ان ) magnet, loadstone

**وسپنکښي** waspan-kaṣ-í : ( پا ) آهن ربایی ، ( ان ) magnetism, manetic

**وسپنویلګر** wáspan-wil-gár : دوسپنې ویلوونکی ، ( پا ) آهن ذوب کن ، آهن ریز ، ( ان ) iron-founder

**وسپنویلوب** waspan-wil-ób : وسپنویلون ، دوسپنې ویلونه ، ( پا ) ذوب آهن ، آهن ریزی ، ( ان ) ironworks, iron- foundry

**وسپنهوډی** waspán-hóḍ-ay : ( پا ) با ارادۀ آهنین ، ( ان ) having the iron (strong) will power

**وسپنيز** waspan-íz : اوسپنيز ، ( پا ) آهنی ، آهنین ، ( ان ) iron, made of iron, ferric, ironic, ironical, ferrous, hard, strong (as iron)

**وستون** wast-tún : زېرمتون ، زېرمه ځی ، ( پا ) تحویلخانه ، ( ان ) depot, store, godown

**وستلي** wastal-í : --> مرکاوو .

**وس ـ چار** wás-čăr : ماندومځه ، زيار و زحمت ، کار و زيار ، هلې ځلې ، ( پا ) سعی و تلاش ، تب و تلاش ، ( ان ) effort and search

**وسله وال** wasla-wắl : --> درسته وال .

**وش و وده** wáš-o-wáda : وده و لويښت ، ( پا ) نشونما ، ( ان ) growth

**وښن** waṣ-án : زهرجن ، زهرژلی ، زهرلړلی ، د وښ يا وښو ( زهرو ) اړوند ، ( پا ) زهر آگين ، زهر آلود ، سمی ، زهری ، ( ان ) poisonous

**وښوری** waṣ-ór-ay : واښه خور ، وښور ، ( پا ) علف خوار ، ( ان ) herbivorous, vegetarian

**وښيانه** waṣ-yǎna : مرغه، برغه، ورشو، ( پا ) سبزه زار، مرغزار، علفزار، ( ان ) green land, grassy land

**وکرووسخند** wakár-o-wasxánd : وکرو لوښه، څېره او لوښه، کړه وړه، ( پا ) قيافه و خصلت، خصلت و هويت، صورت و سيرت، ( ان ) nature and feature

**وګړآر پوهه** wagáṛ-ār-póha : وګړنی يا عاميانه اټيمالوجی، ( پا ) ريشه شناسی عاميانه، ( ان ) folk etymology

**وګړپال** wagaṛ-pǎl : وګړوال، بشروال، ( پا ) بشر دوست، انساندوست، انسانګرا، نوعدوست، ( ان ) philantro pist, hamanist

**وګړپايله** wagáṛ-páy-la : شخصي متصل ضمير، ( پا ) ضمير متصل شخص، خاتمهٔ شخصی، ( ان ) personal ending

**وګړپوهنه** wagáṛ-poh-ána : سړي پوهنه ( ناکره )، بشر پوهنه، ( پا ) بشر شناسی، ( ان ) anthropology

**وګړ پوهنيز** wagáṛ-poh-an-íz : د وګړ پوهنې ( بشر پوهنی ) اړوند، ( پا ) انتروپولوژيکی، بشر شناختی، ( ان ) anthropological

**وګړپوهه** wagaṛ-póha : فولکلور، وګړپوهنه ( ناکره )

( پا ) فلکلور ، توده شناسی ، ( ان ) folklore

**وګړپوهیز** : wagaṛ-poh-íz فولکلوري ، ( پا ) فولکلوری ، توده شناختی ، ( ان ) folkloric

**وګړتیا** : wagaṛ-tyā́ وګړه ، د پاټکي ( طبقې ) په مانا ناکره راځي ، ( پا ) شخصیت ، ( ان ) personality

**وګړتیا پال** : wagaṛ-tyá-pā́l شخصیت پالونکی ، ( پا ) شخصیت ګرا ، شخصیت پرست ، ( ان ) personalist

**وګړځور** : wagaṛ-jáwar ازارګټنه ، وګړي ځورونه ، ( پا ) مردم آزاری ، ( ان ) inhumanity, oppression

**وګړ ځوری** : wagar-ȷáwr-ay ازارګټلی ، وګړي ځوروونکی ، ( پا ) مردم آزار ، ( ان ) inhumane, oppressor

**وګړدوست** : wagaṛ-dóst --> وګړ پال .

**وګړدوستانه** : wagáṛ-dost-ānă ( پا ) بشر دوستانه ، ( ان ) humanistic

**وګړ ژبپوهنه** : wagáṛ-žab-poháná نژاد ژبوهنه ، ژبپوګړپوهنه ، هغه پوهنه چې د ژبپوهنې او وګړپوهنې اړیکي سره څېړي ، ( ان ) ethnolinguistics

**وګړتیا واله** : wagar-tyā-wā́l-a وګړتیا ( شخصیت ) پالنه ، ( پا ) شخصیت پرستی ( ګرایی ) ، ( ان ) personalism

**وګړمل** wagaṛ-mal : --> وګړپال .

**وګړمين** wagaṛ-mayán : وګړپال ، ( پا ) مردم دوست ، ( ان ) friendly to people

**وګړنی** wagaṛ-a-náy : وګړنيز ، وګړيز ، ( پا ) مردمی ، انسانی ، خلقی ، آدمی ، ( ان ) popular, humanistic

**وګړواك** wagaṛ-wák : ولسواك ، ( پا ) مردم ګرا ، ( ان ) democrate

**وګړواکي** wagaṛ-wak-í : ولسواکي ، ملي حاکميت ، ( پا ) حکومت مردمی ، دموکراسی ، حکومت ملی ؛ حاکميت ملی ، ( ار ) جمهوريت ( ان ) democracy; national sovereignty

**وګړواله** wagaṛ-wál-a : وګړپالنه ، بشرولي ، بشرپالنه ، ( پا ) بشر دوستی ، بشر پرستی ، انساندوستی ، انسانګرايی ، ( ان ) philanthropism, humanism

**وګړه** wágṛa : وګړتيا ، ( پا ) شخصيت ، ( ان ) personality

**وګړی** wagáṛay : سړی ( انسان ) ؛ شخص ؛ د شخص ( ګرامري ) صيغه ، ( پا ) مرد ، انسان ؛ شخص ؛ صيغه شخص ( دستور ) ، ( ان ) man; human; person

**وګړیز** wagaṛ-íz : وګړنی، شخصي ( ګرایمري)، ( پا ) شخصی، ( ان ) personal

**وګړیز ګردود** wagaṛ-íz-gaṛ-dód : فردی لهجه، ( پا ) ګویش فردی، ( ان ) idiodialect

**وګړیز نومځری** wagar-íz-num-járay : وګړنومځری، ( پا ) ضمیر شخصی، ( ان ) personal pronoun

**ولاندوولانګه** wlā́nd-o-wlā́nga : دمړي ولونکی ( مینځونکی ) او تخته، ( پا ) مرده شوی و تختهٔ مرده شویي .

**ولخه اودښته** wálxa-aw-dáṣta : ړاګ و دښت، ړاګ و بېدیا، ( پا ) دشت و بیابان، دشت و صحرا، ( ان ) desert and plain

**ولسپال** wálas-pā́l : وګړپال، ولسیار، ولسمل، ( پا ) ملت دوست، مردم دوست، ملت خواه، ( ان ) friendly to people, nationalist

**ولس دښمن** walás-daṣ-mán : —> ولس دښمنی .

**ولس دښمنی** walas-daṣ-mán-ay :ولس دښمن، ملي دښمن، ( پا ) دشمن قوم، دشمن ملی .

**ولسمل** walás-mál : ولسپال، ولسیار، وګړپال، ( پا ) ملت دوست، مردم دوست، قوم دوست، ملت خواه، ( ان )

friendly to people, nationalist

**ولسنښې** walás-nåse : ملي پېژندنښې ، ( پا ) مميزات ملی .

**ولسواك** walás-wåk : <-- وګړواك .

**ولسواکي** walás-wak-í : <-- وګړواکي .

**ولسوال** walás-wâl : پخوانی حاکم ، تحصیلدار ، ( پا ) ولسوال ، رئیس بخش ، حاکم ، ( ان ) district manager

**ولسواله** walás-wăla : ولسولي ، ( پا ) ملیت ګرایی ، ( ان ) nationalism

**ولسوالي** walás-wal-í : تحصیل ، ضلع ، ( پا ) ولسوالي ، بخش ، حاکم نشینی ، ( ان ) district, division

**ولسي** walas-í : وګړنی؛ ملکي؛ ملي ، ( پا ) مردمی؛ ملکی؛ فلکلوری ، ( ان ) civility; folkloric; humanity; national

**ولسیار** walás-yâr : <-- ولسمل .

**ولسي جرګه** walas-í-ǰargá : ( پا ) مجلس شورای ملی ، کانګرس ، ( ار ) قومی اسمبلی ، ( ان ) national assembly

**ولکه** walká : کرښې ، کړ ی ه ، ولقه ( ناکره ) ، ( عر ) حلقه ،

حيطه، قبضه، دايره.

**ولنځ** wlanj : لمبازی؛ ( پا ) تشناب، غسلخانه، ( عر ) مغسل، مستراح، ( ان ) bathroom; toilet

**ولوليز** walwal-íz : پاروونکی، پارند، ( پا ) هيجان انگيز، هيجان آور، پر هيجان، احساساتی، جذباتی، ( ان ) exciting, moving, stimulating

ولی ترنگ walay-taṛáng : ترښتي ولی، دوليو ( ريښو ) ترنگ ( ترکيب )، ( پا ) ترکيب يا مرکب ريشه ها، ريشه های مرکب، ( ان ) root compound

**ولېدن** wled-án : غورځېدن، ( عر ) حذف، ( ان ) omission, elision

**ولی ژبه** walay-žába : ريښه يي ژبه، ( پا ) زبان ريشه يی، ( ان ) atomic language, radical language

**ولي مېنه** Walí-mena :د کابل ښار يو استوګنځای ( کالوني )، ( پا ) ناحيتی در شهر کابل.

**ونج** wanǰ : مخدره؛ بدلون، ( پا ) ميز؛ دگر گونی، ( اټ ) منزه، ( ان ) board, desk; change ( ونجړی : وړوکی مېز ). table

**ونجدوی** wanǰ-dóy : د بدلون قانون، ( پا ) قانون تغییر، قانون تحول، ( ان ) law of change (or evolution)

**ونجون** wanǰ́-ún : ونج، بدلون، ( پا ) دیگرگونی، تبدیلی، ( عر ) بدل، تبدیل، تغییر، تعویض، معاوضه، ( ان ) change, replacement

**وندل و کنځل** wandál-o-kanjál : کنځل وزورل، رټل و کنځل، ( پا ) دو و دشنام دادن، زشت و دشنام گفتن، فحش و ناسزا گفتن.

**ونډیمار** wanḍi-măr : کوتاند، کوتونکی، حلالوونکی، ( پا ) قصاب، ذبح کننده، گوشت فروش، ( ان ) butcher

**ونډیماري** wandi-mar-í : الاله ( حلاله )، قصابي، ( پا ) قصابی، ذبح، ( ان ) butchery, butcher's shop, slaughte ring

**ووړتون** woṛ-tún : <-- ورکتون.

**ووړ شمېر** wóṛ-šmer : کسري شمېر، مات شمېر، ( پا ) عدد کسری، ( ان ) fractional number

**ووړمېچ** woṛ-meč : ( پا ) خرد سنج، ( ان ) micrometer

**وې ( و )** we : واو ، د پښتو الفبې ۲۸ توری ، ( پا ) واو ( و ) ، ( ان ) o, u, w

**ويارجن** wyār-ǰán : ويارن ، عيبجن ، نيمګړی ، ( پا ) عيبی ، عيب دار ، معيوب ، ناقص ، ( ان ) faulty, flawed, defective

**ويارن** wyār-án : --> ويارجن ،

**وياړلی** wyāṛ-ál-ay : د وياړ خاوند ، وياړن ، له وياړه ډك ، ( پا ) صاحب افتخار ، مفتخر ، افتخار آميز ، پر افتخار ، قابل افتخار ، ( ان ) honorary, honoured, glorified, glorious

**وياړن** wyāṛ-án : وياړمن ، وياړجن ، وياړلی ، ( پا ) بالنده ، افتخار كننده ، افتخاری ، ( ان ) honorary, honorarily

**وياړن غړی** wyāṛ-an-ǵáṛay : وياړلی غړی ، افتخاري غړی ، ( پا ) عضوء افتخاری ، ( ان ) honorary member

**وياړنه** wyāṛ-ána : د وياړ شعر ، ( پا ) فخريه ، ( ان ) poem in which the poet enumerates his merits

**وياړ و برم** wyā́ṛ-o-brám : --> وياړ و پرتم ،

**وياړ و پرتم** wyā́ṛ-o-partám : وياړ و برم ، ښاخ و

پرتم، ( پا ) افتخار و شوکت، غرور و شکوه، شان و شوکت، ( ان ) hono (u)r and glory

**وياړوړ** wyāṛ-wáṛ : د وياړ ( فخر ) وړ، ښاغ وړ، ( پا ) قابل افتخار، شايان افتخار.

**وياړيز** wyāṛ-íz : وياړن، دوياړ ( افتخار ) اړوند، ( پا ) افتخاری، ( ان ) honorary, glorious

**وياند** way-ā̃nd : ويندوی، خبر لوڅ، ( پا ) گويا، سخن گو گويان، گوينده، ( عر ) نطاق، ناطق، ( ان ) talker; speaker newscaster

**وير اوښکې** wir-úṣke : د وير اوښکې، د غم اوښکې، ( پا ) اشك ماتم.

**ويرغاړی** wir-ǰā̃ṛ-ay : وهير غاړی. ( پا ) نوحه گر، نوحه خوان، نوحه سرا، سوز خوان، ( ان ) hired mourner, mourning

**وير لړلی** wir-laṛ-ál-ay : ويرژلی، ويرژړلی، ويرجن، ويرمن، ( پا ) سوگوار، سوگمند، اندوهگين، ( ان ) doleful, mournful, grieving

**وېره وړی** wera-wáṛ-ay : ( پا ) دهشت زده؛ دهشت افگن.

**ویرنلیکنه** wir-án-lik-ána : ویرنبولنه ، ( پا ) نوحه سرایی ، مرثیه سرایی ، ( ان ) elegy writing, elegizing

**ویرنه** wir-ána : ویرلیك ، ( پا ) مرثیه ، ( ان ) lamentation, elegy

**وېروړی** wér-a-wáṛ-ay : بوږنوړی؛ ترېدلی ، ترهېدلی ، ( پا ) دهشت انگیز ، دهشت افگن ، دهشتناك ؛ دهشت زده ، ( ان ) terrible, horrible, amazing

**وېره اچونه** wéra-ačwána : ډارونه ، ډارونګه ، ډار اچونه ، ( پا ) دهشت افگني ، ( وېره اچوونکی ، دهشتګر ، اردو : دهشتگرد ) .

**وېش اړخ** wéš-aṛx : د ګړاوړون ( فعلی گردان ) يواړخ چې کړی ( مفعول ) پکې تر يوه وګړی زيات وی ، ( ان ) distributive aspest

**وېشاك** weš-āk : وېشنه ، ( پا ) جدایی ، تقسیم ، تجزیه ، ( ان ) separation, partition

**وېشاکګر** weš-ák-gár : وېشاکوال ، وېشاکپال ، وېش ( تجزیه ) غوښتونکی ، بېلتونپال ، ( ناکره ) بېلتون خوښی یا جدايي خوښی ، ( پا ) تجزیه خواه ، تجزیه طلب ، ( ان ) separatist

**وېشاککرانه** wes̆-āk-gar-āná : بېلتونپالانه، ( پا ) تجزیه طلبانه، تحزیه گرانه، ( ان ) separately

**وېشاکواله** wes̆k-wăl-a : وېشاککري، وېشاکپالنه، ( پا ) تجزیه گرایی، تجزیه طلبی، ( ان ) separatism

**وېش شمېر** wés̆-s̆mer : انقسامي عدد، ( پا ) عدد انقسامی، ( ان ) distributive numeral

**وېشگر** wes̆-gár : وېشونکی، وېشند، ( پا ) تقسیم کننده، بخش کننده، ( ان ) divider, distributor

**وېشوړ** wes̆-wáṛ : دوېش ( تقسیم ) وړ، وېش کېدونکی، ( پا ) قابل تقسیم، قابل توزیع، بخش پذیر، ( ان ) dividable

**وېشوړتیا** wes̆-waṛ-tyā̆ : دوېش ( تقسیم ) وړتیا، ( پا ) قابلیت تقسیم، قابلیت توزیع، بخش پذیری، ( ان ) dividablity

**وېشونج** wes̆-wánǰ : ( پا ) تبدیل توزیع، تغییر در توزیع، ( ان ) variation in distribution

**وېش وهنه** wes̆-wahăna : وېش وهنه، ( پا ) ضرب و تقسیم، ( ان ) multiplication and division

**وېښته رگ** weṣta-rág : نری رگ ( شریان )، ( پا ) مورگ، سرخرگ، شریان، ( ان ) artery

**ويښيار** wiṣ-yā̆r : هوښيار ، پوه ، ( پا ) هوشيار ، هوشمند ، آگاه ، ( ان ) aware, conscious, intelligent

**ويښياري** wiṣ-syār-í : هوښياري ، پوهه ، ( پا ) هوشياری ، آگاهی ، خردمندی ، ( ان ) awareness, intelligence

**وېلاړ** welā̆ṛ : هوډ ، ( پا ) اراده ، تصميم ، عزم ، ( ان ) will, decision, determination

**وېلاړن** welāṛ-án : هوډيالی ، ( پا ) با اراده ، ( ان ) determined, resolute

**ويلوب** wil-ób : ويلون ، ( پا ) گداز ، گدازه ، ( عر ) ذوب ، مذاب ، لاوای آتشفشانی ؛ ( ان ) fusion, melted, molten

**ويلوبگر** wilob-gár : <-- وسپنويلگر .

**وينا توکي** way-nā-tók-i : د وينا توکي يا توکونه ، د کلام اجزا ، ژبني توکي ، ( پا ) اجزء کلام ، ( ان ) elements of speech

**وينا غړی** wayna-ǵáṛi : وينابيز غړي ، گړهاري غړی ، ( پا ) اندامهای گفتار ، ( ان ) organs of speech

**ويناليږد** way-nā-leẓd : ( پا ) نقل قول ، اقتباس ، ( ان ) citation, quotation

**ويناوابشتى** wayna-wāṣtay : ( پا ) تکیه کلام، ( ان ) key word, catchword, word or phrase frequently and habitually resorted to in speaking

**ويناوال** wayna-wāl : وینا کوونکی، ( پا ) بیانیه دهنده، سخنران، ( عر ) ناطق، نطاق، متکلم، ( ان ) ortor, talker, eloquent speaker, lecturer, spokesman

**ويناوالي** wayna-wal-í : ویاندي، خبرلوځي، ( پا ) سخنرانی، ( عر ) خطابه، نطق، نطاقی، ( ان ) lecture, speech, oratory

**وينابيز** wayna-yíz : د وینا اړوند، گږماري، ( پا ) گفتارئ، ( ان ) oral

**ويند ځواك** wayand-jwāk : د وینا ځواك، ( پا ) قوهٔ ناطقه، ( ان ) faculty of speech

**ويند غړي** way-and-ɠaṛi : ( پا ) اندامهای گویایي، ( ان ) articulatory organs

**ويندوى** way-and-oy : <-- ویاند .

**ويندى** wínd-ay : په ویندي اخته، ( پا ) د چار خونریزی، نزفی، خون چکان، ( ان ) bleeding, h(a)emorrhagic

**ويندي** win-d-í : وینې بهنگ، ( پا ) خونریزی، خونروی،

خونروش ، ( عر ) نزف الدم ، ( ان ) bleeding, h(a)emorrhage

**وینګ** way-ang : وین ، اداینه ، ( پا ) تلفظ ، ادا ، ( ان ) pronounciation

**وینګ ډول** way-ang-ḍawal : ادا ډول ، د تلفظ ډول ، ( پا ) طرز تلفظ ، طرز ادا ، ( ان ) accentual style ; articulation

**وینګیز** wayang-iz : وینیز ، ( پا ) تلفظی ، ( ان ) pronouncitional

**وینوب** win-ob : سرامنې ، ( پا ) خوناب ، خون و آب ، خونابه ، ( ان ) serum, thin transparent blood, bitter tears

**وړینه** waṛ-ina : --> وړتیا .

**وینې بیه** wine-baya : وینی ګرمانه ، دمرګ بدل ، ( پا ) خونبها ، خون تاوان ، انتقام قتل ، خونخواهی ، ( ان ) revenge, blood-money

**وینې پوه** wine-poh : وینې پوهاند ، ( پا ) خون شناس ، ( ان ) hematologist

**وینې پوهه** wine-poh-a : وینې پوهنه ، ( پا

شناسی، ( ان ) hematology

**وینې تویښت** wíne-toy-áșt : وینې تویونه، ( پا ) خونریزی، سفاکی، ( ان ) cruelty, atrocity, bloodshed

**وینې تویونکی** wíne-toy-aw-únk-ay : خونړی، وینې څښونکی، ( پا ) خونریز، خون فشان، خونخوار، سفاك، ( ان ) bloodthirsty, murderous

**وینې څښاك** wíne-cș-ā́k : وینې څښنه، ( پا ) خون آشامی، خونخواری، سفاکی، ( ان ) sanguisugous, bloodshed

**وینې څښونکی** wíne-cș-únk-ay : خونړی، وینې خوړونکی، ( پا ) خون آشام، خونخوار، تشنه بخون، خونی، ( ان ) bloodthirsty, bloodsucker

**وینې رغاو** wíne-raɣ-ā́w : وینه جوړونه، ( پا ) خون سازی، ( ان ) hemapoiesis, hematopoiesis

**وینې رغی** wíne-ráɣ-ay : وینې رغنده، وینه رغوونکی، ( پا ) خون ساز، ( ان ) hematopoietic

**وینې ککړ** wíne-kakáṛ : په وینو ککړ، وینې، ( پا ) خون آلود، خون آلوده، خونین، ( ان ) bloodstained

**وینې میچ** wíne-méč : د وینې میچلواله، ( پا ) خون

سنج ، ( ان ) hematometer

**وينې مېچنه** wíne-mec̆-ána : وينه اندازه کونه ، ( پا ) خون سنجی ، ( ان ) hematometry

**وينيز** win-íz : ليديز ، ( پا ) ديداری ، بينشی ، ديدنی ، بصری ، ( ان ) visual, having to do with sight

**وينيز واوريز** win-íz-o-awr-íz : اوريزو وينيز ، ( پا ) سمعی و بصری ، شنيداری و بينشی ، ديد و شنيدی ، ( ان ) audio-visual

**ويی** wayay : تکی ( ج : ويي ، وييونه ) ( پا ) واژه ، ( عر ) کلمه ، نغت ، ( ان ) lexiin, word

**ويي اوډون** w[illegible]i-oḍ-ún : دوييو نو اوډون ، د کلمو ترتيب ، ( پا ) رج واژه ها ، ترتيب [illegible]ه ها ، ( ان ) word order

**ويي پانگه** [illegible]ayí-pắnga : لغوي پانگه ( ذخيره ) ، ( پا ) ذخيرهٔ لغوی ، ( ان ) [illegible]abulary

**ويي پانگيز** [illegible]ayí-pang-íz : دويي پانگې اړوند ، ( پا ) مربوط ذخيرهٔ لغوی ، واژگانی ، لغوی

**ويي پور** wayí-pór : وييز ( لغوي ) پور يا پورونگه ، ( پا ) عاريت لغوی ، ( جر ) wortentchnung

**ويي پوهاند** wayi-pohänd : ويي پوه ، ( پا ) واژه

شناس ، ( ان ) lexicologist

**ويي پوهنه** wayí-pohána : لغت پوهنه ، ( پا ) واژه شناسی ، ( عر ) علم اللغته ، ( ان ) lexicology

**ويي پوهنيز** wayí-poh-an-íz : دويي پوهنې ( علم اللغته ) اړوند ، ( پا ) واژه شناختی ، واژگانی ، ( ان ) lexicological

**ويي پيدايښت** wayí-paydā-yáṣt : مغه ساده وييونه چې د ژبې په بشپړتيا يې بهير کې بې له ځرگندې لاسوهنې په يوه ژبه کې منځ ته راغلي وي او بيا د هغو له مخې اشتقاقي او ترکيبي وييونه د ولس له خوا رغېدلي وي ، په ويي پيدايښت اړه لري ( پا ) پيدايش لغوی ، ( ان ) word formation

**ويي جوړښت** wayi-ǰor-áṣt : تر ويي پيدايښت (-->) راوروسته پړاو چې وييونه ( دولس له خوا ) په اشتقاقی او ترکيبي ډول جوړ شوي وي ، ( پا ) بعد از پيدايش واژه های ساده دومين روند واژه سازي ( از طرف گوينده گان ) از طريق اشتقاق و ترکيب ، ساختار واژه يي ، ( ان ) word formation

**ويي خج** wayí-xaǰ : دويي ( کلمې ) خج ( فشار ) ، فشار يا تکيۀ واژه ، ( ان ) word stress, word accent

**ويي رغاونه** wayí-raɣ-aw-ána : ويي جوړونه ، نوې

( خپللاسي) ویي جوړونه، ( پا ) واژه سازی، ( ان ) neologism

**ويیز** way-íz : دويي ( لغت ) اړوند ، ( پا ) لغوی ، واژه يي ، واژگاني ، ( ان ) lexical

**ويي غونډ** wayi-ǯwánḍ : په يوه غونډله ( جمله ) کې سره راغلي دوه يا زيات وييونه چې سره نحوي يووالی يا همآهنگی لري، نه لغوی، ( پا ) گروه واژه ها در يك جمله، ( ان ) word group

**وييکنومځری** way-ík-num-jár-ay : اداتی ضمير چې له دوو وييکو ( اداتو ) څخه رغېدلی وي ( لکه پکې، راکې، پرې...)، ( پا ) ضمير اداتی.

**وييکی** way-ík-ay : ادات ( حرف )، ( پا ) ادات، ( ان ) particle

**ويي لړ** wayi-láṛ : نوملړ، ( پا ) لست و يا فهرست لغات واسماء ( ان ) index

**ويي ليك** wayi-lík : هغه ليکنی يا خطي سيستم چې ويي نښې (-->) کاروي، يا په بله وينا ، هره نښه يا سمبول ديوه ويي ښکارندويي کوي، ( پا ) واژه نگار، ( ان ) word writing, logography

**ويي ليكپوهاند** wayi-lík-pohǻnd : <-- ويي ليكى كښاند .

**ويي ليكپوهنه** wayi-lík-poh-ána : د ويي ليكي ( ډيكشنرۍ) پوهنه يا كښنه ، قاموس ليكنه ، ( پا ) واژه نامه نويسى ، ( ان ) lexicography

**ويي ليكى** wayi-lik-áy : سيند ( ډيكشنري ) ، ( پا ) فرهنگ ، لغت نامه ، كتاب لغت ، ( عر ) قاموس ، كتاب اللغته ، ( ان ) lexicon, dictionary

**ويي ليكى كښاند** wayi-líkay-kṣ-ánd : ويي ليكى كښونكى ، ( پا ) فرهنگ نويس ، قاموس نويس ، ( ان ) lexicographer

**ويي ليكي كښنه** wayi-likí-kṣ-ána : <-- ويي ليكپوهنه .

**ويي نښه** wayi-naṣa : هغه نښه يا سمبول چې ديوه ويي يا زياتو ويونو ښكارندويي كوي ، ( ان ) logogram

**ويېنه** way-éna : وينه ، سكالو ، ( پا ) گفتگو ، بحث ، ( ان ) argument, discussion, debate

## (هـ)

**هان اوږدتیا** hăn-uzd-tyấ : هان اوږدوالی، د عمر اوږدوالی، ( پا ) درازی عمر، ( ان ) longevity

**هاند و هڅه** hắnd-o-háca : هڅه او هاند، کار و زیار، هپه دپه، منډې ترړې، وس چار، ( پا ) تب و تلاش، سعی و کوشش.

**هاندي** hănd-í : زیار کښ، خواریکښ، زیارن، زیارمن، زیارایستونکی، متیال، ( پا ) کوششی، کوشان، کوشا، رنجبر، زحمتکش، ( ان ) toiler, proletarian, hard- working

**هانکچه** hăn-káča : ( د ) منګ کچه، د عمر کچه ( سطح )، د عمر اندازه، د ژوند اندازه، ( پا ) سطح سال و سن یا سن و سال، اندازهٔ عمر یا زنده گی، ( ان ) lifetime

**هاهوئې** hă-hóle : کنج و مکیز، ناز وادا، ( پا ) نازوادا، نازو کرشمه، ( ان ) coyness, demurring

**هاهولي** hă-hol-í : کرشمه یي، ( پا ) کرشمه ساز، با

نازو ادا ، نازدار ، عشوه گر ، عشوه دار ، ( ان ) coy, affected, coquettish

**هاهولې او کرشمې** : ha-hóle-aw-karašmé
نازو کرشمې ، کنج و مکيز ، ( پا ) نازوادا ، نازو کرشمه ، ( ان ) coyness, affected manners

**هټوځی** hat-o-jáy : بازار ، مارکېټ ، ( پا ) بازار ، مارکيت ، ( ان ) market

**هڅوب** hac-ób : مغه څه چې ولسونه سره بېلوي ( کولتور ، کلچر ) ، ژواك ( پا ) فرهنگ ، کلتور ، ( عر ) ثقافت ، تهذيب ، ( ان ) culture

**هڅول** hac-aw-ál : ليږل ، لمسول ، تشويقول ، ( پا ) تشويق کردن ، ( ان ) to encourage, to incite, to hearten

**هڅون و پاڅون** hac-ún-o-pāc-ún : ( پا ) تلاش و قيام ، جهش و قيام .

**هڅون و خوځون** hac-ún-o-xwaj-ún : ( پا ) تلاش و جهش .

**هڅونه** hac-aw-ána : ليږونه ، ( په کارته ) لمسونه ، ( پا ) تشويق ، ترغيب ، ايجاد شوق ، ( ان ) encouragement

**هڅېدل** hac-ed-ál : تشويقېدل ، ( پا ) تشويق شدن ،

( ان ) to be encouraged

**هډ بند** had̩-bánd : پټۍ، پلستر ، ( پا ) پلاستر ، ( عر ) ضماد ، ( ان ) plaster

**هډ پوهاند** had̩-poh-ā̃nd : هډ پوه ، دهډپوهنې پوهان ، د هډوکو ماهر ، ( پا ) استخوانشناس ، ( ان ) osteologist

**هډپوهنه** had̩-poh-ána : هډ پوهه ، د هډوکو پوهنه ( علم ) ، ( پا ) استخوانشناسی ، ( ان ) osteology

**هډپوهنيز** had̩-poh-an-íz : هډپوهيز ، دهډ پوهنې اړوند ( مربوط ) ، ( پا ) استخوانشناختی ، ( ان ) asteologic

**هډتړ** had̩-tár̩ : هډوانه ، اډوانه ، اډوانه ، ( پا ) استخوانبندی ، اسکليت ؛ طرح ، طرحريزی ، نقشه ، الگو ، ( ان ) skeleton, bone structure; plan, sketch, rough draft

**هډخور** had̩-xór : د هډونو يا هډوکو خوړونکی ، ( پا ) استخوان خوار ، ( ان ) the osprey

**هډدرملی** had̩-darmál-ay : دهډوکو ډاکټر ، هډسمی ، ( پا ) استخوان پزشك ، شکسته بند ، ( ان ) orthopedist

**هډ درملې** had̩-darmal-í : د هډونو ( هډوکو ) درملتيا ( طبابت ) ، هډسون ، ( پا ) استخوان پزشکی ، شکسته بندی ، ( ان ) orthopaedics, orthopaedy

**هډ درمليز** had-darmal-íz : د هډدرملي ( طبابت ) اړوند ، ( پا ) مربوط به استخوان پزشکي ، مربوط بفن درست کردن اندامهای ناقص .

**هډسمی** had-sám-ay : هډدرملی .

**هډماتوالی** had-mal-wắl-ay : دهډيا هډوکو ماتېدنه ، ( پا ) استخوان شکنی ، ( ان ) osteoclasis

**هډن** had-án : <-- هډيز .

**هډواله** had-wắla : پلونډي ، ( پا ) تنومندی ( ارثی ) .

**هډوپلې** hád-o-plé : هډوکي او پلې ، پلې او هډونه ، ( پا ) استخوان وپی .

**هډيز** had-íz : هډن ، هډين ، هډ والا ، دهډ يا هډوکي اړوند ؛ هډوانيز ، ( پا ) استخوانی ؛ اسکليتی ، ( ان ) bony; skeletal

**هډين** had-ĭn : <-- : هډيز .

**هراړخيز** har-aṛx-íz : مرپلوی ، هر خواييز ، څواړخيز ، ( پا ) همه جانبه ، چند جانبه ، ( ان ) multilateral

**هراړخيز خپلواک** har-aṛx-íz-xpal-wắk : هر اړخيزواول ، ( پا ) ويل يا واکهٔ همه جانبه ، ( ان ) omnipotent (vowel)

**هر اړخيزوالی** har-aṛx-iz-wăl-ay : هرخواييزوالی ،

( پا ) همه جانبه گی، چند جانبه گی، چند سویی، ( ان ) multilaterality

**هر ځايي** har-jāy-í : لنډ غر، لولنگر، ( پا ) هر جایی، آواره، هر جا گرد، ولگرد، ( ان ) vagrant, gadabout, vagabond, streetwalker

**هردم خيالى** har-dam-xyāl-ay : هردم خياله، ځپځپاند، واندونجی، هوسي، هوبي، ( پا ) هردم خیال، هوس باز، ( ان ) capricious, fickle, whimsical

**هردم خيالي** har-dam-xyal-í : ( فکري ) ځپځپاندي، ( پا ) هردم خیالی، ( ان ) caprice, capriciousness

**هركاره** har-kārá : هر چاری، هر کاری، دهر کار لپاره کارېدونکی، ( پا ) هر کاره، برای کار آمد همگانی، هزار پیشه، همه کاره، ( ان ) all-purpose (utensil), jack-of-all-trades

**هركلن** har-kal-án : هر کلین، هر کال، ( پا ) همه ساله، هر ساله؛ همېشه، همواره، ( ان ) always; every year, year by year

**هر كله راشې** hár-kala-rāše : هر کلی، هر کله راشه، په خير راغلی، شه راغلاست، ( پا ) خوشامد، خوش

آمدید ، ( ان ) welcome

**هرکلی** har-kal-áy : ښه راغلی ، ښه راغلاست ، ستړي مشي ، ( پا ) خوش آمدید ، خوشامد ، پذیرایی ، استقبال ، ( ان ) welcome, reception

**هرکلي خونه** harkalĭ-xúna : هرکلي ( انتظار ) کوټه ، ( پا ) اتاق پذیرش ، انتظار خانه ، اتاق انتظار ، ( ان ) reception-room, waitingroom

**هرکلي ډله** harkalĭ-ḍála : هر کلی کوونکی ډله ، ( پا ) گروه پذیرایی .

**هرکلی کول** harkal-áy-kaw-ál : هر کلی ویل ، هر کلی پر ځای کول ، ( پا ) استقبال کردن ، خوش آمدید ( خوشامد ) گفتن ، ( ان ) to welcome, to receive

**هر کلی کوونکی** har-kaláy-kaw-únk-ay : هر کلی ویونکی ، ( پا ) خوشامد گو ، پذیرایی کننده ، ( ان ) welcomer; receptionist

**هرکلین** har-kal-in : --> همېشه يي .

**هر ورځنی** har-wraj-an-áy : هره ورځ ، ورځنی ، ( پا ) همه روزه ، هرروزی ، هر روز ، روزانه ، ( عر ) یومیه ، ( ان ) everyday, daily

**هستنده غونډله** hást-anda-ǵwanḍla : هستنده ( د هستوالي يا شتوالي ښكارندوى ) كړ لرونكې جمله ( لكه شته يا هست ) . ( پا ) جملهٔ زيست ( ؟ ) ( ان ) existential sentence

**هستوګنځى** hastogan-jáy : --> استوګنځى .

**هستول** hast-aw-al : پيدا كول ، پنځول ، ( پا ) هست كردن ، ايجاد كردن ، بوجود آوردن ، ( ان ) to creat, to initiate, to bring into existence

**هستونه** hast-aw-ána : پنځونه ، زېږونه ، ( پا ) آفرينش ، ( عر ) ايجاد ، تخليق ، ( ان ) creation

**هستي ساز** hasti-sắz : ژوند ساز ، ( پا ) هستى ساز ، زنده ګى ساز ،

**هسك و ځمكه** hásk-o-jmáka : ځمكه او اسمان ، ( پا ) اسمان و زمين .

**هګنى** hag-ənáy : د هګيو د ايښوونې لوښى ؛ ( پا ) تخمدانى ، تخم مرغ دانى ، ( ان ) egg-cup

**هګى ډوله** hagay-ḍawla : هګۍ ورته ، دهګۍ غونډې ، ( پا ) تخم مانند ، بيضوى ، بيضه مانند ،

**هم ارزى** ham-árz-ay : هم ارزښتى ، ( پا ) هم ارز .

**هم ارزي** ham-árz-i : هم ارزښتي ، ( پا ) هم ارزشى .

**همآری** ham-ar-ay : همریښه،همبنسټی هغه چې ګډه آره ( منشاء ) اصل یا نسب ) سره لري ، ( پا ) دارای منشای ، مشترك ، هم ریشه هم اصل ، هم نسب ، cognate

**هماندی** ham-and-ay : همسوچی ، همالواکی ، هملیدی ، همسندی ، ( پا ) همفکر ، هم نظر ، ( ان ) of the same mind or opinion, sympathetic

**هماندي** ham-and-i : همالواکي ، ( پا ) همفکری ، ( ان ) the same mind or opinion

**هم اند پوهی** ham-and-poh-ay : د یوې اند پوهې ( ایډیالوجی ) والا ، ( پا ) دارای ایدیولوژی مشترك .

**همآوازی** ham-awaz-ay : همغږی ، همآهنګ ، ( پا ) همآهنګ ، ( ان ) harmonious, coordinated

**هماوازي** ham-awaz-i : همغږي ، ( پا ) همآهنګی ، ( ان ) coordination

**هماوب** ham-ob : په غونډله ( جمله ) کې سره پیبیلي توکي ، ( پا ) هم بافت ( درنحو ) ، ( ان ) context

**همایونی** homa-yun-ay : همایون ، ( پا ) همرفتار هما همسفر هما ( پرندهٔ افسانوی ) .

**همبریدی** ham-brid-ay : همسرحدی ، همغاړی ، ( پا )

همسرحد ، هممرز ، ( ان ) having the same frontier

**همبستری** : ham-bistár-ay : ممخوبی ، کور والی کوونکی ، ( پا ) همبستر ، همخوابه ، هم آغوش ، ( ان ) bed fellow

**همبستري** : ham-bistar-í : همخوبي ، کوروالی ، ( پا ) هم بستری ، هم خوابی ، جماع ، ( ان ) cohabitation, sleepng together

**همبنډاری** : ham-banḍắr-ay : همبزمی ، ( پا ) هم مجلس ، همبزم ، همپیاله ، هم پیك ، ( ان ) compotator(-y), a feloW drinker

**همبنډاري** : ham-ban*dar-í* : هم بزمي ، ( پا ) هم بزمی ، هم پیکی ، ( ان ) compotation

**همبنستی** : ham-bansaṭ-ay : <-- همآری .

**همبول** : ham-ból : همسنډړی .

**همپاتمړی** : ham-pāt(a)-mảṛ-ay : هم میراثی ، ( پا ) هم وارث ، ( عر ) شریك الارث ، ( ان ) a joint heir, coparcener

**همپښوییز** : ham-pṣo-yíz : ورته پښوییزې جولې ، ( پا ) گونه های مشابه دستوری ، صور مشابه دستوری ، ( ان )

apposition

**همپوڕی** ham-pawṛáy : دیوې پوړی ( رتبې ، مقام ) ملگری ، همڅنگ( پا ) همرتبه ، همپایه ، همتا ، همدرجه ، ( ان ) coordinate, peer, equal in rank or grade, colleague

**همپوړي** ham-pawṛ-í : هممقامي ، ( پا ) هم مقامی ، همرتبه گی ، همپایه گی .

**همپیری** ham-pér-ay : هم دوره ، ( پا ) هم دور ، هممعصر ، معاصر ، ( ان ) contemporaneous

**همتړونی** ham-taṛ-ún-ay : همتړی ، ( پا ) هم عهد ، هم پیمان ، ( ان ) cosignatory, confederate

**همتړوني** ham-taṛ-un-í : همتړي ، گډتړون ، لووالی ، ( پا ) هم پیمانی ، یگانه گی ، ( ان ) alliance, union, confederacy

**همتولی** ham-tól-ay : هموزنی ، همپوړ ی ، انډول ، انډیوال ، ( پا ) هموزن ، هم ترازو ، هم رتبه ، معادل ، ( ان ) equilibrated, equivalent, colleague

**همتولي** ham-tol-í : هموزني ، همپوړي ، انډول ( انډولتیا ، ( پا ) هموزنی ، هم ترازی ، هم پایه گی ، معادلت ،

( ان ) equilibration, equivalence

**همجوله** ham-ǰawlá : --> همخپره .

**همجولي** ham-ǰawl-í : --> <--

**همجوليز** ham-ǰawl-íz : همجوله ، همخپره ، ( پا ) هم شکل ، همرنگ ، یکنواخت ، ( عر ) متحد الشكل ، مشابه ، ( ان ) homologous, uniform

**همجوليزوالى** ham-ǰawl-iz-wā́l-ay :
--> همخپرتیا .

**همجوليزونه** ham-ǰawl-íz-úna :
--> همجوليزوييونه .

**همجوليزوييونه** ham-ǰawl-íz-wayúna : مغه وییونه ( لغات ) چې په لفظ کې هم شکله او په مانا کې سره بېلا بېل وي ، ( پا ) واژه های متشابه ، واژه های هم آوا ، ( ان ) homonyms

**همچمى** ham-čám-ay : همکوځه ، ګاونډی ، ( پا ) کوچه گی ، همکوی ، همسایه .

**هم ځالى** ham-jā́l-ay : همکوری ، هم خونی ، یو ځای اوسېدونکی ، ( پا ) هم آشیان ، هم خانه ، هم منزل ، ( ان ) of the same nest, roommate, cotenant, fellow lodger

**همځېلی** ham-jél-ay : دګهځېل ( نوعې ) والا ، ( پا ) همنوع ( بشر ... ) ( ان ) homogeneous, of the same kind or race

**همځېلي** ham-jel-í : د ځېل ( نوعې ) ګډوالی ، ( پا ) همنوعی ، هم جنسی ، از یك نوع ( بشر ... ) ، ( ان ) homogenesis, the same kind or race

**همڅنګ** ham-cáng : انډيوال ، ( ناکره ) همسنګ ، همپوړی ، ( پا ) همپایه ، همتا ، هم قطار ، هم درجه ، هم رتبه ، ( ان ) colleague, cohort, coequal

**همڅېرتیا** ham-cer-tyá : همرنګي ، همجولي ، همونګي ، همجولیزتیا ، ( پا ) هم شکلی ، همرنګی ، همګونی ، مشابهت ، یکنواختی ، یك شکلی ، همانندی ، ( ان ) similarity, resemblance

**همڅېره** ham-cerá : همجولی ، همونګه ، همرنګه ، همبڼی ، همجولیز ، ( پا ) هم چهره ، هم قیافه ، هم شکل ، همانند ، ( ان ) similar, alike, resembling

**همخوبی** ham-xób-ay : --> همبستری .

**همخوبي** ham-xob-í : --> همبستري .

**همخونی** ham-xún-ay : همکوټه ، ( پا ) هم اتاق ، ( ان )

roommate

**همخویه** ham-xúya : هملوښی ، ( پا ) همخو ، ( ان ) congenial, of the same character

**همدارنگه** ham-dā́-ránga : همداراز ، همداسې ، همد غسی ، ( پا ) همچنین ، همین گونه ، ( ان ) thus, in this manner, also, so, as well

**همرنگ** ham-ráng : همرنگی ، یورنگ ، یوراز ، یوشان ، همځېر ، یوځېر ، یوډول ، ( پا ) همرنگ ، همگون ، همسان ، هم گرای ، یکسان ، ( ان ) isotropic, alike, similar, same

**همرنگي** ham-rang-í : یورنگي ، یوډولي ( غږپوهنه ) ، ( پا ) همرنگی ، همگونی ( آواشناسی ) ، همسانی ، ( ان ) isotropy; assimilation

**همزولانه** ham-zawlāná : همزندانی ، هم ځنځیری ، ( پا ) هم زنجیر ، ( ان ) fellow prisoner, fettered by the same chain

**همزه** hamzá : یو عربي ستونیز تمغږ یا ( انسدادي ) آواز او توری ( ء ) چې پښتو او نورې عجمي ژبې یې نه لري او پښتو ، پارسی یا اردو یې هسې بیځایه د ( ی ) ښوونې لپاره کاروي ، ( پا ) همزه ( ء ) ، ( ان ) hamza

**همژبی** ham-žab-ay : گډژبی، په یوه ژبه غږېدونکی، همفکری، هماندی، ( پا ) همزبان؛ همفکر، ( ان ) speaking the same languagei; agreeing, consentient

**همژبي** ham-žab-i : گډژبیزوالی، ( پا ) همزبانی.

**همسکالو** ham-skalo : هم صحبتی، ( پا ) هم صحبت، همدم، مصاحب، ( ان ) interlocutor, colloquist

**همسکالويي** ham-skalo-yi : همصحبتي، ( پا ) هم صحبتی، مصاحبت، ( ان ) conversation, interlocution

**همسندری** ham-sandar-ay : همبول، هم اوازی، ( پا ) هم آواز، همآهنگ، ( ان ) singing together, harmonious, unanimous

**همسندی** ham-sand-ay : همرایه، همگروهی، همرایه، هماندی، ( پا ) همرأی، همرای، همعقیده، ( ان ) of the same opinion or mind

**هم سیمی** ham-sim-ay : دیوې سیمې، (-->) سیمه وال.

**هم ښوونځی** ham-sow-an-jay : ښوونځیوال، ( پا ) هم دبستان، همدرسه، ( ان ) schoolmate

**همغاړی** ham-ǧar-ay : ملگری، همکاری، تل، ( پا ) همکار، همدم، همدوش، هم صدا، هم آهنگ، ( ان ) colleague.

cohort, concordant

**همغږوني** ham-ǵaẓ-un-ay : همغږی ( ویی )، ( پا ) ( واژه یی ) هم آوا، ( ان ) homophone

**همغږوني** ham-ǵaẓ-un-í : همغږي، ( پا ) همآوایی، هم صدایی، تشابه صوتی ( بین واژه ها )، ( ان ) homophony

**هم غږی** ham-ǵaẓ-ay : هم اوازی، ( پا ) هم آوا، همنوا، ( ان ) homophonic, unanimous

**همکار** ham-kā́r : همچار، ( پا ) همکار، ( ان ) collaborator, colleague

**همکاري** ham-kar-í : گډه مرسته، گډکار، وبله کار، ( پا ) همکاری، اشتراك مساعی، ( ان ) joint work or effort, cooperation, collaboration

**همکاسه** ham-kāsá : هم کونډی، هم کوبی، ( پا ) هم کاسه، همسفره، هم خوراك، ( ان ) commensal, messmate, fellow guest

**همکوری** ham-kór-ay : هم استوګنی، ( پا ) همخانه، هم منزل، ( ان ) fellow lodger, cotenant

**همکېتی** ham-két-ay : هم دینی، هم مذهبی، ( پا ) همکیش، هم مذهب، هم دین، ( ان ) coreligionist, of the

same religion

**همګامی** ham-gā̆m-ay : همګام، همپل، هم منږی ( پا ) هم ګام، همقدم، همګنان، همګرا، ( ان ) companion, associate, fellow traveller

**همګروهی** ham-gróh-ay : دیوې ګروهې ( عقیدې ) ملګری، همسندی، ( پا ) همعقیده، همرای، همرأی، ( ان ) unanimous, of the same opinion or mind

**همګروهي** ham-groh-í : همسندي، همعقیده والی؛ ( پا ) همعقیده ګی، همرائی، ( ان ) agreement, unanimity

**هملاری** ham-lā̆r-ay : لارمل، بدرګه، د لارې مل، ( پا ) همراه، ( ان ) accompanying, fellow, fillowma

**هملوستی** ham-lwást-ay : همسبق، ټولګیوال، ( پا ) همسبق، همدرس، همکلاس، ( ان ) a fellow studoent, çlæssmate

**هم لیدتوګی** ham-lid-tóg-ay : هم لیدی، هم نظری، هماندی، ( پا ) دارای نقطه نظر مشترك .

**هملیکی** ham-lík-ay : هملږی، همڅنګ، همڅنګی، همڅانګی، ( پا ) هم قطار، همردیف، همتا، همپایه، هم مسلك، ( ان ) aligned, cohort, colleague

**همماني‌ز** ham-man-íz : هم مانيز ( ويي )، مترادف ( ويي )، ( پا ) ( واژه های ) مترادف، ( واژهٔ ) هم آرش، ( ان ) synonymous; synonyms

**همماني‌زوالی** ham-man-iz-wălay : همماناوالی، مترادفوالی، ( پا ) هم معنایی، ترادف، ( ان ) synonymy

**هممانېزونه** ham-man-iz-úna : هممانيز ( هم معنا ) وييونه، مترادف لغات، ( پا ) هم معنی ها، مترادف ها، ( ان ) synonyms

**هم منگی** ham-máng-ay : همهانی، هم عمری، همزولی، ( پا ) همسال، همسن، هم سن و سال، همگیس، ( ان ) of the same age, coeval

**همهال** ham-mahăl : همزمان، پر یوه وخت، ( پا ) همزمان، در عین زمان، ( ان ) at the same time

**همهالی** ham-mahắl-ay : همپېری، ( پا ) همزمان، هم روزگار، همعصر، همعهد، معاصر، ( ان ) contemporary, contemporaneous

**هم مهالې ژبپوهنه** ham-mahắl-e-žab-poh-ána : دا هغه راز ژبپوهنه ده چې د نامهالې پر خلاف، ژبه په يوه ټاکلي مهال پېر کې تر څېړنې

لاندې نيسي ، ( پا ) زبانشناسی همزمانی ، ( ان ) synchronic linguistics

**هم ناستی** ham-nást-ay : ګاونډی ، همسیوری ، همڅنګ ( پا ) همنشین ، همسایه ، همجوار ، ( ان ) neighbour, companion

**همناستی** ham-nast-ay : ګډه ناسته پاسته ، همسيوري ، ( پا ) همنشینی ، همسایه ګی ، ( ان ) companionship, neighbourhood

**همنوړی** ham-nozay : همنوړیز ، هم جنس ؛ همځېلی ، ( پا ) هم جنس ؛ همنوع ، ( ان ) homosxual; homogeneous

**همنوړي** ham-noz-í : همنوړیزوالی ، هم جنسي ، همځېلي ، ( پا ) هم جنسی ؛ همنوعی ، ( ان ) homosexuality, homogeneousness

**همنوړیز اړیکي** ham-noz-íz-ariki : همجنسي اړيکي ، ( پا ) روابط هم جنسی ، ( ان ) homo-sexual relations

**همنومی** ham-num-ay : همنامی ، یو نومی ، سمنامی ، ( پا ) همنام ، هم اسم ، ( ان ) namesake, homonymous of the same name

**همنومي** ham-num-í : همنامي، يو نومي، سمنامي، ( پا ) همنامی، هم اسمی، ( ان ) the same name, homonymy

**همواټنی** ham-waṭan-ay : په يوه واټن ( فاصله )، ( پا ) هم فاصله، همبرد .

**همواګی** ham-wãg-ay : هم سپور، هميونی، ( پا ) هم عنان، همرکاب، همسفر، ( ان ) fellow rider, fellow traveler

**هموتوځی** ham-wat-ój-ay : هم وتونځی، هم مخرجي، يو وتوځی، ( پا ) هممخرج، ( ان ) homorganic

**هموتوځي** ham-wat-ó-jí : يو وتوځي ( مخرجی )، ( پا ) ( اصوات ) هم مخرج، ( ان ) homorganic (sounds)

**هموتوځي غږونه** ham-wat-óji-ɣaẓ-una : هم مخرج اوازونه، ( پا ) آوا ها يا اصوات هم مخرج، ( ان ) homorganic sounds

**همونی** ham-wan-ay : همقدی، هم منګی، ( پا ) همقدم، هم اندازه، همسال، ( ان ) of the same stazure or site

**هم هوډی** ham- hoḍ-ay : د ګډ هوډ ( تصميم ) والا، هموبلاړی، ( پا ) دارای تصميم مشترك .

**همهوډي** ham-hoḍ-í : هم وېلاړي ، ( پا ) هم تصميمی ، هم عزمی ، تصميم گيری مشترك .

**هم هېواد** ham-hewā́d : هم هېوادی ، هېوادوال ، وطنوال ، ( پا ) هموطن ، هم ميهن ، ( ان ) compatriot, compatriotic, countryman

**همېشنی کړ** hameš-an-áy- kaṛ : نابشپړ ( غير مطلق ) فعل ، استمراري فعل ، ( پا ) فعل استمراری ، فعل غير مطلق ، ( ان ) durative verb, imperfective verb

**همېشه يي** hameša-yí : تلپاتې ، همېشنی ؛ هر کلين ، ( پا ) هميشگی ، همه وقته ، هميشه ، دايمی ، ابدی ، جاويدان ، جاويدانی ، ( ان ) permanent, lasting, perpetual

**هميونی** ham-yún-ay : ( پا ) همسفر .

**هندستاني** hendastān-í : دهندوار يانې يوه هندي ښرانگه ( هندي او اردو ) ، ( پا ) هندوستانی ، شاخهٔ يی هندی زبانهای هندوارياني ( هندوايرانی ) ، شامل هندی و اردو ؛ ( ان ) Hindustani, a sub- division of the Indic branch of the Indo- Iranian language group

**هندواروپايي** hend-o-arupā-yí : د هغې سترې ژبنۍ کورنۍ نوم چې --> هندوارياني او نورې اروپايې ژبې پکې

راځي، پخواني تومونه يې «هندوارين» او «هندوجرمن» وو،
( پا ) هندواروپايی، اندواروپايی، ( ان ) indo- curopian

**هندواریاني** hénd-o-ăryān-i : ( پخوانی نوم ) هندوایراني، هغه ژبنۍ څانګه چې په پخوانۍ اریانا پورې اړه لري، ( پا ) هندواریانی ( هندوایرانی )، ( ان ) indo-iranian, indo- aryanian

**هندوارياپي** héndo-aryā-yí : په هند کې اريايي ژبې، ( پا ) هندوارياپي، ( ان ) indo-aryan

**هندواني** hendwān-í : د هندوانې په رنګ، دهندوانې اړوند، ( پا ) تربوزی، به رنګ تربوز ( هندوانه ).

**هندوچيني** hénd-o-čini : د چين ـ تبتي ژبنۍ کورنۍ بدل نوم، ( پا ) هندوچينی، چين ـ تبتی، ( ان ) Indo- Chinese, Sino- Tebetan

**هندي** hend-í : د ټولو اوسنيو هندي ژبو يو غونډ نوم، ( پا ) اسم جمعی برای زبانهای جديد هندی ( ان ) Hindi

**هنډور** hanḍ-a-wár : اندامور، هډور، ( پا ) دارای اندام قوی، قوی اندام، عضلاتی، ( ان ) stout, stalwart

**هنرپال** hunar-p̄l : هنرپالونکی، هنرمل، ( پا ) هنر پرور، هنر گستر، ( ان ) a patron of arts

**هنرتون** hunar-tun : هنرستان، دهترونو مرکز، ( پا ) هنرستان، ( ان ) arts-center

**هنرزېږ** hunar-zéẓ : هنرزېږون، هنري زېږندويي ( تخليق )، ( پا ) ايجاد يا تخليق هنرى، هنر آفرينى، آفرينش هنرى، ( ان ) artistic creation

**هنرزېږى** hunar-zéẓ-ay : هنر زېږند، د هنر زېږندوى ( خالق )، ( پا ) هنر آفرين، ( ان ) art- creator

**هنرمل** hunar- mál : هنر دوست، هنر مين، هنر پال، ( پا ) هنريار، هنر پيشه، هنر دوست، دوستدار هنر، ( ان ) a patron of arts

**هنرمند** hunar- mand : هنرمن، فنکار، ( پا ) هنرمند، هنرپيشه، باهنر، هنرور، ( ان ) artist

**هنرمندانه:** ماهرانه، په هنرمندۍ سره، ( پا ) هنرمندانه، ماهرانه، ( ان ) artfully, skillfully

**هنري چار** hunar-í-car : هنري کار، هنري فعاليت، ( پا ) کارهنرى، فعاليت هنرى.

**هنگامه يي** hangáma-yí : له شورزوږه ډك، انگازه يي، انگازور، ازانگور، ولوليز، ( پا ) پر سرو صدا، پر شور، پر غوغا، پر صدا، پر هيجان، هيجان انگيز، شور انگيز، ( ان )

noisy, sonorous

**هنگامي** hangām-í : بېړنی ، ( پا ) اضطراری .

**هوا بېړی** hawā́- beṛáy : سابېړی ، هوايي بېړی ، هوايي کښتی ، ( پا ) کشتيِ هوايی ، سفينۀ هوايی ، ( ان ) air-ship

**هوابهنگ** hawā-bah-áng : هوا بهير ، دهوا جريان ، ( پا ) جريان هوا ، ( ان ) air flow, air current

**هواپر هوا توغندی** hawā-par-hawā́-toǵanday : هوانه هوا ته توغندی ، ( پا ) راکت يا موشك از هوا به هوا .

**هوا پوهاند** hawā-poh-ā̆nd : هوا پوه ، ( پا ) هوا شناس ، ( ان ) aerologist, meteorologist

**هوا پوهنه** hawā-pohána : ( ناکره ) هوا پېژندنه ، ( پا ) هوا شناسی ، ( ار ) موسميات ، ( ان ) aerology, meteorology

**هوا پوهنيز** hawā-poh-an-íz : هوا پوهيز ، ( پا ) هوا شناختی ، ( ار ) موسمياتی ، ( ان ) meteorologic (al)

**هواتاندی** hawā-tā̃nd-ay : --> هوا سپېڅی .

**هوا خوري** hawā- xor-í : هوا اخيستنه ، چکر ، ( پا )

هوا خوری ، ( ان ) airing, walking for pleasure

**هوار** hawā́r : اوار ، پلن ؛ حل ( شوی ) ، ( پا ) هموار ؛ حل شده ، حل و فصل شده ، ( ان ) plane, even; dissolved

**هوارووںکی** hawār-aw-únk- ay : اوارووںکی ، پلنوونکی ؛ حلوونکی یا حل کوونکی ، ( پا ) حل کننده ، حلال ، ( ان ) solvent, resolver

**هواری** hawār-áy : اواری ، اوارونه ؛ اوراوالی ، اوارتیا ، پلنوالی ؛ حل ، ( پا ) همواری ؛ حل ، ( ان ) plane, even; solution

**هواري وړ** hawār-í- wáṛ : د هواري ( حل ) وړ ( قابل ) ، ( پا ) قابل حل ، حل پذیر ، ( ان ) soluble, dissoluble

**هوا سپېڅنه** hawā- spec- ána : هوا تاندتیا ، ( پا ) تصفیهٔ هوا ، ( ان ) air- conditioning

**هواسپېڅی** hawā-spėc-ay : هوا تاندی ، هواسپېڅ ، ایرکنډېشنر ، ( پا ) ماشین تصفیه کنندهٔ هوا ، ایرکندیشنر ، ( ان ) air-conditioner

**هوا فشار** hāwā́- fesā́r : د هوا فشار ، ( پا ) فشار هوا ، ( ان ) air pressure, barometric pressure

**هوا کښ** hawā-kaṣ : د هوا وتنې سوری ( دریڅه )، ( پا ) هواکش ، ( ان ) air vent, ventiduct

**هوا مېچ** hawā-meč : ( پا ) هوا سنج ، ( ان ) barometer, aerometer

**هوا مېچي** hawā-meč-í : د هوا کچ و مېچ ( اندازه )، هوا مېچنه ، ( پا ) هوا سنجیْ ، ( ان ) aerometry

**هوا ورکړه** hawā-wár-kṛa : هوا ورکونه ، ( کوټنې ، بسترې ... ته )، بادورکول ، پو کول ، ( ټایر ، توپ ... )، ( پا ) هوا دادن ، باد دادن ، ( ان ) airing

**هوا وېجه** hawā-wéǰa : هوايي قلمرو ؛ اټموسفیر ، ( پا ) قلمرو هوايي ، قلمرو فضايی ، اتمسفیر ، جو ـ محیط ، ( ان ) air-territory, atmosphere

**هوایخی** hawā-yáx-ay : کولر ، هواسړوونکی ، ( پا ) سرد کنندهٔ هوا ، ماشین هوا خنك کن ، کولر ، ( ان ) cooler

**هوايي** hawā-yí : د هوا اړوند ، ( پا ) هوايي ، فضایی ، جوی ، ( ان ) atmospheric (al)

**هوايي اډه** hawā-yí-aḍá : پوځي هوايي اډه ، ( پا ) پایگاه هوايي ، ( ان ) air- base

**هوايي پول** hawā-yí-pul : ( پا ) پل هوایی ، پل هوایی

روی جاده ، ( ان ) air- bridge, overpass

**هوايي چلند** hawāyí-čaland : هوايي ترېفيك ( پا ) هوا نوردی ، هوا پیمایی ، ترافیك هوایی ، ( ان ) aviation, piloting, pertaining to the air, air way company

**هوايي ځواك** hawāyí-jwāk : هوايي طاقت ، ( پا ) نیروی هوايي ، ( ان ) air force

**هوايي ډزې** hawā-yí- ḍaze : هوايي فيرونه ، ( پا ) فیر های هوایی ،

**هوايي ډگر** hawāyí-ḍagár : هوايي ميدان( اډه ) ، ( پا ) ميدان هوايي ، ( ان ) air-port

**هوايي كرښه** hawāyí-karṣa : هوايي ليكه ، ( پا ) خط هوایی ، ( ان ) air way, air- line

**هوبي** hobí : --> مردم خيال ،

**هوساينځی** hosā-yán-jáy : د هوساينې ( استراحت ) استوگنځی ، ( پا ) آسایشگاه ، استراحتگاه ، تفریحگاه ، ( ان ) rest hose, senatorium

**هوساينه** hosā- yána : هوساگلوي ، هوسايي ، ارامي ، ( پا ) آسایش ، آرامش ، ( عر ) رفاهيت ، ( ان ) rest, repose, comfort, convenience

**هوساييز** hosā-yíz : هوساينيز ، ( پا ) آسايشی ، تفريحی ، ( ان ) recreative

**هوسې سترګې** husáy-stárge : غرڅه سترګې ، کبلې سترګې ، ( پا ) آهو چشم ، ( ان ) stag-eyed, gazelle- eyed

**هيات** hiāt : --> غونډله ييزغږونج ، ( ان ) hiatus

**هېڅيال** hec-yā́l : ترمادې اخوا ، ( پا ) ماوراء ماده ، ماوراء ذره ، ( ان ) ultra- atom, singularity

**هيروغليف** híroglíf : پخوانی مصري انځوريز ليك چې د هر ويي ( کلمې ) يا څپې ( هجاء ) لپاره يې يوانځور ( تصوير ) کاراوه ، ( پا+ عر ) هيروغليف ، ( ان ) hieroglyph

**هيروغليفي ليك** híroglifí- lík : --> هير و غليف .

**هېښتياوړ** heṣ-tyā-wáṛ : د حيرانتيا ( تعجب ) وړ ، ( پا ) قابل تعجب ، شگفتنی ، تعجب آور ، ( ان ) surprising, wonderous

—

**هېښنده** heṣ- anda : هېښوونکی ، اريا نوونکی ( حيرانوونکی ) ، ( پا ) حيرت آور ، تعجب آور ، ( عر ) محير ، ( ان ) wonderful

**هېښني** heṣ-an-í : د هېښتيا ( تعجب ) لرونکی يا اړوند ، ( پا ) تعجبی ، شگرفی ، شگفتی ، ( ان ) surprising,

wonderful

**هیله من** hila-man : میله مند ، ( پا ) امیدوار ، ( ان ) hopeful, expecting

**هیله مني** híla- man-í : میله مندي ، ( پا ) امیدواری ، ( ان ) hopefulness

**هېندار اچونه** hendar-acaw-ana : ښیښه اچول ، ښیښه اچونه ، ( پا ) شیشه انداختن ، شیشه اندازی ، ( ان ) to glaze

**هېندار پرېکون** hendar-pre-kun : ښیښه پرېکونه ، ( پا ) شیشه بری ، شیشه خمی ، ( ان ) glazing, glaziery

**هېندار پرېکی** hendar-prek-ay : ښیښه پرېکونی ، هېندار پرېکونی ، ( پا ) شیشه بر ( ان ) glazier, glass cutter

**هېندار ساز** hendar-săz : ښیښه ساز ، ( پا ) شیشه ساز ، ( ان ) glass manufacturer

**هېندار سازي** hendar-saz-í : ښیښه سازي ، دښېښې جوړونې کارخونه ، ( پا ) شیشه سازی ، کار خانه شیشه سازی ، ( ان ) glasswork, glass manufacture, glassworks

**هېندار لوښي** hendar- losi : ښېښه يي لوښي

( سامان الات)، ( پا ) شیشه آلات ، شیشه باب ، سامان آلات شیشه یی ، ( ان ) glassware

**هېندار وزمه** hendār-wázma : د هېنداري غوندې ، روښانه ، ( پا ) آینه وار ، ( ان ) mirror- like, frankly, clearly

**هېنداريز** hendār- íz : د هېنداري ( آينې ) غوندې ، ښيښه يي ، ( پا ) آينه يی ، شيشه يی ، آبگينه يی ، ( ان ) of or like mirror, made of glass

**هېندار سپېڅ** hendār-spéc : هېندار پاك ، هېندار پاکی ، ( پا ) برف پاك ، برف پاکن ، ( ان ) windshied wiper, wiper

**هېواد پال** hewād-pā́l : هېواد پالی ، وطنپال ، ( پا ) وطنپرست ، میهن پرست ، ( ان ) patriot, patriotist

**هېواد پالنه** hewād- pāl- ána : --> هيواد واله .

**هېواد پلورنه** hewād- plor- ána : هېواد پلوري ، هېواد خرڅونه ، ( پا ) وطنفروشی .

**هېواد پلوری** hewād-plór- ay : هېواد پلورونکی ، وطن خرڅوونکی ، ( پا ) وطنفروش .

**هېواد مين** hewād- mayān : هيواد پال ، هېواد

دوست، ( پا ) وطندوست، میهن دوست، وطنپرست، ( ان ) patriotist

**هېوادنی** hewād-an-áy : هېوادي، وطنی، ( پا ) وطنی، میهنی، ( ان ) home- made, homy

**هېوادنۍ** hewād- an- áy : دافغانستان د ښوونې روزنې په پخوانې لومړني نصاب کې د هېواد په باب دیوه مضمون او کتاب نوم.

**هېواد وال** hewād- wā́l : هم هېوادی، وطنوال، ( پا ) هم وطن، هم میهن، وطندار، ( ان ) citizen, compatriot, countryman

**هېواد واله** hewād-wā́la : هېوادولي؛ هېواد پالنه، ( پا ) هموطنی، هم میهنی؛ میهنپرستی، ( ان ) compatriotism, patriotism

# (ی)

**یادڅلی** yād- cál- ay : ( د ) یادګار څلی ، ( پا ) منار یادګار ، ( ان ) the minaret of a memorial

**یادښت** yād-áṣt : یادونه ، یادی ، ( پا ) یادداشت ، یاد دهانی ، یاد آوری ، یاد و بود ، ( ان ) a memorandum, a memorial, a note, a raminder, remembrance

**یادښتوړ** yād- áṣt- wár : د یادښت ( نوټ ) وړ ، دیادونې وړ ، ( پا ) قابل یادداشت ، یاد آوردنی ، ( ان ) rememberable, memorable

**یادښت لیك** yād- áṣt- lík : یادونلیك ، ( پا ) یادداشتنامه ، ( ان ) (a writen) note, memorandum

**یادښت لیکچه** yādáṣt-lik- čá : د یادښت کتابچه ، ( پا ) دفتر یا کتابچهٔ یادداشت ، ( ان ) notebook

**یادښتول** yādaṣt- aw- ál : په لیکلې بڼه یاد ته سپارل ، دیوڅه یادښت اخیستل ، ( پا ) یاد داشت کردن ، یاد

داشت گرفتن ، ( ان ) to note, to take note of, to write down

**یادښتي** yād-aṣt-í : د یادښت اړوند ، ( پا ) مربوط یاد داشت .

**یادوونی** yād-aw-ún- ay : یادوونکی ، ( پا ) یاد کننده ، یادگیرنده ، از بر کننده ، حفظ کننده ، یاد آور ، متذکر ، ( ان ) reminiscent, reminding, learner

**یادګاري** yād-gār-í : یادوني ، ( پا ) یادگار ، یادگاری ، ( ان ) graffito, a souvenir, memorial

**یادګاري انځور** yād-gār-í-anjór : یادګاري عکس ( تصویر ) ، ( پا ) عکس یاد ګاري .

**یادګاري جشن** yād-gār-í-ǰáṡan : یادوني جشن ، ( پا ) جشن یاد گاری ، ( ان ) a memorial celebration or festival

**یادګاري ډالۍ** yād-gār-í- ḍalāy : یادوني ډالۍ ، ( پا ) تحفهٔ یاد گاری .

**یادمانۍ** yād- māṇāy : یادګاري مانۍ ، ( پا ) قصر یا کاخ یادگاری ، ( ان ) a memorial palace

**یادون** yād-ún : یادونه ، یادښت ، ( پا ) یادوبود ، یادداشت .

**یارکند** Yārkánd : یوه تورکي ژبه، ( پا ) یکی از زبانهای ترکی، ( ان ) Yarkand

**یاغیستان** yaǵi- stắn : یاغیګر، ( پا ) منطقهٔ باغیان.

**یاغیګري** yāǵi- gar- ī́ : یاغیتوب، سرغړاوی، سرکښي، ( پا ) یاغیګری، سرکشی، ( عر ) بغاوت، تمرد، ( ان ) rebellion, muting, revolt

**یاغیګړ** yāǵi-gáṛ : --> یاغیستان.

**یاکوت** Yakút : یاکوتي، یوه التایي ( تورکي یا مغولي ) ژبه، ( پا ) یاکوت، یاکوتی، ( ان ) Yakut

**یاو ( یو )** Yaw : په برما او چین کې یوه ژبه، همدارنګه په همدغه یوه نامه یوه بله افریقایي ژبه، ( پا ) "یاو" یا "یو"، یکی از زبانهای برمایی ونیز یك از زبانهای افریقای شرقی، ( ان ) Yaw

**یخپلور** yax-plòr : یخ پلورنه یا خرڅونه، ( پا ) یخ فروشی.

**یخپلوری** yax- plór-ay : یخ والا، یخ ( کنګل ) خرڅوونکی، واوره پلورونکی ( پا ) یخ فروش، ( ان ) an iceman, ice seller

**یخپېر** yáx-per : یخچال پېر، یخچالي پېر، کنګلپېر، د

کنګل یا یخ دور ، ( پا ) عصریخ ، ( ان ) glacial epoch or period

**یخچال** yax-čā́l : کنګلنی ، ګګلځی ، کنګلیزه ؛ سړوبی ، ( پا ) یخچال برقی ، سردخانه ، یخچال طبیعی ، ( ان ) refrigerator, fridge; icehouse; glacier

**یخچالپېر** yaxčā́l-per : --> یخپېر .

**یخچالي** yax-čāl-í : ( طبیعي یا مصنوعي ) اړوند ، ( پا ) مربوط یخچال ( طبیعی یا مصنوعی ) ( ان ) glacial

**یخساز** yax-sā́z : یخ جوړوونکی سړی یا لوښی ( سامان ) ، ( پا ) یخ ساز .

**یخسازي** yax-sāz-í : یخ ( کنګل ) جوړونه ، دیخ کارخونه یا فابریکه ، ( پا ) یخسازی ، کارخانهٔ یخ سازی .

**یخسیمه** yax-síma : کنګلځی ، کنګلنی ، یخچال ( طبیعی ) ، کنګلیزه ، ( پا ) یخزار ، ناحیهٔ یخبندان ، ( ان ) ice field, glacial (region)

**یخلوبه** yax-lóba : کنګل لوبه ، ( پا ) یخ بازی ، ( ان ) sketing, ice skating

**یخ ماتنی** yax-māt-an-ay : یخ ماتی ، کنګل ماتوونی ، ( پا ) یخ شکن ، ( ان ) ice pick, ice chopper

**یخماتې بېړی** yax-mā̃te-beṛáy : یخماتتې کښتی، ( پا ) کشتی یخ شکن، کرجی یخ شکن، ( ان ) ice breaker, iceboat, ice ship

**یخ نڅا** yax-nacā̃ : کنګل نڅا، پر کنګل باندې ګډا، ( پا ) رقص روی یخ، ( ان ) ice-dance

**یخني ښوروا** yaxní-ṣorwá : داپښولې غوښې یا یخني غوښې اوبه یا زومنه، ( پا ) شوربای یخنی.

**یرغلګر** yarǵal-gár : یرغل کوونکی، چاپه مار، ( پا ) حمله ور، یورشګر، ( ان ) attacking, assaulting

**یرغلي** yarǵal-í : یرغلیز؛ یرغلګر، ( پا ) تهاجمی؛ حمله ور، ( ان ) offensive; attacking

**یرغلیز** yar-ǵal-íz : یرغلي، ( پا ) تهاجمی، هجومی، یورشی، ( ان ) offensive, aggressive

**یرغلیز سیاست** yarǵal-íz-syāsat : تعرضی سیاست، ( پا ) سیاست تعرضی و یا تهاجمی، ( ان ) of fensive weapons

**یرغلیزې وسلې** yarǵal-íze-waslé : یرغلیزې درستې، ( پا ) سلاح های تهاجمی، ( ان ) offensive weapons

**یرغمل بیه** yarɣamál-báya : بونگه ( پا ) پول در مقابل گروگان ، ( ان ) ransom

**یرغمل گر** yarɣamál-gár : ‹-- یرغمل نیوونکی .

**یرغمل نیونه** yarɣamál-niw-ána : یرغملگري ، برمته کونه ، ( پا ) گروگان گیری ، ( ان ) hostages

**یرغمل نیوونکی** : yar-ɣamál-niw-únk-ay یرغملگر ، ( پا ) گروگان گیر ، رباینده گان ، اختطاف کننده گان ، ( ان ) the hijacker

**یرغمل وژنه** yarɣamál-wažána : دیرغمل ( برمتی ) وژل ، ( پا ) گروگان کشی .

**یرغمل وژونکی** yarɣamál-wažúnk-ay : برمته وژونکی ، ( پا ) گروگان کش .

**یزغلامي** Yaz-ɣolām-í : یزغولامي ، یوه پامیري ژبه چې په یزغلام او واخان کې تر دوه زرو یو څه زیات ویونکي لري ، ( پا ) یزغلامی ، ( ان ) yazghulami

**یشنا** yaš-ná : خوټ ، ایشېدنه ، ( پا ) جوش ، ( عر ) غلیان ، ( ان ) boiling, ebullition

**یشناټکی** yaš-nā-ṭákay : دخوټ ( جوش ) نقطه ، ( پا ) نقطهٔ ( درجهٔ ) غلیان ، ( ان ) boiling point

**يغنوبي** Yaɣnob-í : يوه پاميري ژبه چې په تاجيکستان کې ويل کېږي، ( پا ) يغنوبی، يخنابی، يغنابی، ( ان ) yaghnobi

**يما ( پاچا )** Yamắ (-pācắ) : د اريانيانو افسانه يي پاچا، دځانگړي نوم په توگه هم نوی دود شوی دی، ( پا ) يما، جمشيد، ( ان ) a proper noun, a legendary aryanian king

**يمال ځپلی** yamāl-japál-ay : رېزيارش ( برف کوچ ) وهلی، ( پا ) برف کوچ زده، کولاك زده.

**يمال لاندې** yamāl-lắnde : تريمال ( رش ) لاندې شوی، ( پا ) زېر برف کوچ شده، زېر کولاك برف شده، ( ان ) to be snowed under, under the snowstorm

**يواسپه** yaw-aspá : مغه گاډی ( ټانگه ) يا ورته څيز چې يو آس يې راکاږي، ( پا ) يك اسبه، ( ان ) having one horse, single- horsed

**يو اونيز** yaw-own-íz : يواوونيز، يواوونی ييز، اووه ورځنی، ( پا ) يکهفته يی•، هفته وار، هفت روزه، هفته نامه، ( روزنامهٔ ) هفتگی، ( ان ) weekly

**يوبندی** yaw-bánd-ay : يوراز پخوانی ټوپك، ( پا )

نوعی تفنگ قدیمی .

**یوبنسټی** yaw-bansáṭ-ay : هم بنسټی ، ګډبنسټی ، همآری ، ( پا ) دارای بنیاد مشترک ، هم بنیاد ، هم اصل ، ( ان ) of the same base

**یو پال** yaw-pǻl : <-- یوځښتنی .

**یوپالنه** yaw-pal-ána : <-- یووالی .

**یووالی** yaw-wǎl-ay : ( پا ) یگانه گی ، وحدت ، اتحاد ؛ شرکت .

**یوپاڼیز** yaw-pāṇ-íz : دیوې پاڼې لرونکی ( بوټی ، گلځانگه یا متن ) ، ( پا ) یك برگه ، یك برگچه یی ، ( ان ) single-leaved, mono phyllous, unifoliolate, unifoliate

**یوپر ...** yáw-par : یوپر څو ، ( پا ) یك بر .... یك بر چند .

**یوپر دوه** yaw-par-dwá : غبرگ ، دوه گرایه ، دوه برابره ، دوه هومره ، ( پا ) یك بردو ، دوچند ، دو برابر ، ( ان ) double, twofold, twice

**یوپر یو نیم** yáw-par-yaw-ním : یوپر یونیم برابر ، ( پا ) یك بریك ونیم .

**یو پښیز** yaw-ps-íz : دیوې پښې لرونکی، ( پا ) یکپا، ( ان ) one footed, monopode

**یوپېړییز** yaw-peṛay-íz : یو پېړی بیز، سلکلیز، سلکلن، ( پا ) یك قرنه، سد ساله، صد ساله، ( ان ) centennial

**یوترمنځه** yaw-tar-mánja : یو تر منځ، یو پسې، مردویم، ( پا ) یك درمیان، ( ان ) every other (one), alternate(ly)

**یوجولی** yaw-ǰáwl-ay : یوبڼی، یوځېر، یو رنګ، یو شکلی، همجولی، همجولیز، ( پا ) یك شکل، یکسان، همانند، ( ان ) of one shape, uniform, monophic, alike, similar

**یوجولي** yaw-ǰawl-í : یورنګي، همرنګي، همجولي، همجولي، همجولیزوالی، ( پا ) هم شکلی، یك شکلی، ( ان ) uniformity, similarity

**یوڅپیز** yaw-cap-íz : یو هجایي، ( پا ) یك هجائی، تك هجائی، ( ان ) monosyllabic

**یوڅپیزه ژبه** yaw-cap-íza-žába : ( پا ) زبان تك هجائی، ( ان ) monosyllabie language

**یوڅرخه** yaw-carx-á : سایکل یابل هرڅېز چې یو څرخ ولري، یوکړ( پا ) یك چرخه، ( ان ) monocycle, unicycle

**یوخښتنی** yaw-caştán-ay : یو پال، یو گروهی، ( پا ) یکتا پرست، ( عر ) موحد، ( ان ) monotheist

**یوخښتني** yaw-caştan-í : <-- یوواله.

**یوخجیز** yaw-xaǰ-íz : یو فشاري، هغه ژبنی توك ( عنصر ) چې یو خج ( فشار ) ولري. ( پا ) دارای یك فشار یا تکیه،

**یوډزی** yaw-ḍaz-ay : یو ډزی ټوپك، ( پا ) یك تیره ( تفنگ ).

**یوډوله** yaw- ḍáwla : یو رنگه، ستونزمنه، ( پا ) یکنواخت، خسته کن، ( ان ) monotonous, monotone

**یوډولي** yaw-ḍawl-í : یو رنگي، ستونزمني، ( پا ) یکنواختی، ( ان ) monotony, monotonousness

**یورنگي** yaw-rang-í : همرنگي، همڅېري، همجولي، یوجولي، ( پا ) یکرنگی، همگونی، همانندی، همسانی، هم شکلی، ( ان ) similarity, assimilation, isotropy, resemblance

**یوزرییز** yaw-zaray-iz : یوزری ییز، زرکلیز، زرکلن،

( پا ) يك هزار ساله ، هزاره ، ( ان ) nellenial

**يوزړی** yaw-zár-ay : يو مخی ، پاکزړی ، يوزړه ، او يوه خوله ، ( پا ) يکدل ، پاکدل ، راستين ، ( ان ) unanimous, wholehearted

**يوزړي** yaw-zar-í : يومخي ، پاکزړي ، رښتينولي ، ( پا ) يکدلی ، ( ان ) unanimity, consensus

**يوژبی ( ۱ )** yaw-žáb-ay : همزړی ، همژبی ، رښتين ، ( پا ) همزبان ، يك زبان ، يکدل ، همصدا ، ( ان ) unanimous

**يوژبی ( ۲ )** yaw-žáb-ay : هغه څوك چې تش په يوه ژبه غږېږی او پوهېږي ، ( پا ) يك زبانه ، ( ان ) monoglot, monlingual

**يوژبي ( ۱ )** yaw-žab-i : همژبي ، همزړي ، ( پا ) همزبانی ، يك زبانی ، يکدلی ، ( ان ) unanimity

**يوژبي ( ۲ )** yaw-žab-í : يوه ژبه درلودنه ، ( پا ) يك زبانی ، ( ان ) monolinguality

**يوژبيز** yaw-žab-íz : دهغه سيند ( قاموس ) يا متن اړوند چې يوه ژبه پکې کار بدلې وي ، ( پا ) يك زبانی ( فرهنگ يامتن ) .

**يوسترگی** yaw-starg-ay : کاجر ، چغر ، شبړا ، ( پا )

یك چشمه، یك چشم، ( ان ) monocular, one- eyed

**یوسترګي** yaw-starg-í : چغروالی، کغروالی، ( پا ) یك چشمی، ( ان ) one-eyed-ness, impartiality

**یوستونه** yaw-setun-á : یوستنیز ؛ یو کالمي، یو کالمه، ( پا ) یك ستونه، یك ستونی.

**یوستوی اېښونی** yawastáway-iṣún- ay : ساده ایښونی ( خبر ) ( پا ) گزارهٔ ساده، ( ان ) simple predicat

**یو ستوی غږ** yawastáway-ǵaẓ : ساده غږ، ( پا ) آوای ساده، ( ان ) monophone

**یو ستوې غونډله** yawastáwe-ǰwáṇḍla : ساده غونډله ( جمله )، ( پا ) جملهٔ ساده، ( ان ) simple sentence

**یو ستوی ویی** yawastáway-wyáy : ساده ( بسیط ) ویی ( لغت )، ( پا ) واژهٔ بسیط یا ساده، واژهٔ غیر مشتق و غیر مرکب، ( ان ) simple word

**یو شپېنی** yaw-špe-náy : دیوې شپې، ( پا ) یك شبه، of one night's duration, (in) one night

**یو ښځمنی** yaw-ṣaj-mán-ay : دیوې ښځې خاوند یا مېړه، ( پا ) یك زنه، ( ان ) monogamous

**یو ښځمني** yaw-ṣaj-man-í : یوښځېوالی، ( پا ) یك

زنی ، ( ان ) monogamy, monogyny

**یو غبرگی** yaw-ǵbárg-ay : یو ستوی ، یو کاتی ، یوکاته ( قاته ) ، ( پا ) یك لا ، ( ان ) single, onefold, one-ply

**یوغږیزېدن** yaw-ǵaẓ-íz-ed-án : ( پا ) تك آوایی شدن ، ( ان ) monophthongization

**یوغوږی** yaw-ǵwáẓ-ay : یو غوږوالا ، په یوه غوږ بوچی یا معیوب ، ( پا ) یك گوش ، دارای یك گوش ، کسیکه یك گوشش بریده یا معیوب باشد .

**یو کوره** yaw-kor-a : یو کوری ، یو کوروالا ، د یوه کور لرونکی : همکوری ، ( پا ) صاحب یك خانه ؛ همخانه .

**یوکی** yaw-kay : لاړیس ، دو څرخه ، سایکل ؛ یوڅرخه ، ( پا ) دو چرخه ، بایسکل ، ( ان ) bicycle

**یوگرایه** yaw-gráya : یو گرای ، یو کچ ، یو برابر ، ( پا ) یك برابر ، ( ان ) onefold, one time

**یوگروهی ( ۱ )** yaw-groh-ay : --> یو څښتنی .

**یوگروهی ( ۲ )** yaw-groh-ay : همکېتی ، همگروهی ، له بل سره دیوې گروهې لرونکی ، همدینی ، همعقېده ، ( پا ) همکېش ، هم عقیده ، هم مذهب .

**یوگروهي ( ۱ )** yaw-groh-í : --> یو خښتني

**یوگروهي ( ۲ )** yaw-groh-í : همکبتي ، همګروهي ، هم ديني ، هم اعتقادي ، ( پا ) همکیشی ، هم عقیده گی ، هم دینی ، هم مذهبی .

**یوگړی** yaw-gaŗay : یو وگړی ( مفرد ) ( پا ) ... مفرد ، ( ان ) singular

**یوگلپاڼیز** yaw-gwal-paṇ-íz : یو گلپاڼه لرونکی ( پا ) یك گلبرگی ، دارای یك گلبرگ ، ( ان ) monopetalous, unipetalous

**یوگلی** yaw-gwal-ay : یو گل والا ، یو گل لرونکی ( پا ) یك گل ، دارای یك گل ، ( ان ) uniflorous

**یوگوتی** yaw-gwat-ay : دیوې گوتې والا ( پا ) یك انگشتی ، ( ان ) monodactylous, one- fingered, with one finger

**یوگوټی** yaw-gwaṭ-ay : یوگوټه ، یو گوټیز ( پا ) یك گوشه ، ( ان ) one cornered

**یولاریز** yaw-lar-íz : یو لاری ، دیوې لارې تلونکی ، یو لیکه لرونکی ، یو خط ، ( پا ) یکراه ، یك خط .

**یولاس** yaw-las : یو رنگ ، یو برابر ، له مخښې ، یو مخ

( پا ) يك دست ، يكسره ، يكنواخت ، ( ان ) homogenous; uniform; at all, whole, completely

**يولاسى** yaw-lā́s-ay : ديوه لاس والا ، يو لاس لرونكى ، ( پا ) يكدست ، يكنواخت ، داراى يك دست ، يكدستى ، ( ان ) single- handed, homogenous; unmixed

**يولوريز** yaw-lor-íz : يوخوابيز ، يو پلوى ، يواړخيز ، ( پا ) يكطرفه ، يك سويه ، ( ان ) one way, unidirectional, unilateral

**يولوريزوالى** yaw-lor-íz-wā́l- ay : يو اړخيزوالى ، ( پا ) يك سويه بودن ، يكطرفى ، يك جهتى ، ( ان ) onesidedness, unilateral (ness)

**يومخيز** yaw-max-íz : يو مخ والا ؛ له يوه سره ، له مخې ، له يو مخې ، پر يوه مخ ، يو مخ ، ( پا ) يك رويه ، يك صفحه يى ؛ يكسره ، يكسر ، سرتاسرى ، بكلى ، ( ان ) having one face; having one page; totally, entirely

**يومهالى** yaw-mahā́l-ay : --> هم مهالى .

**يومهاليز** yaw-mahāl-íz : --> يووختيز .

**يوميړوښې** yaw-mer-o-ṣe : يو ميړه والا ( ښځه ) ، يوڅښتنې ( ښځه ) ، ( پا ) يك شوهره .

**یومیږوښي** yaw-meṛ-o-ṣí : یو مېړه توب، یوځښتني، ( پا ) یك شوهری.

**یونان - باختري** yunan-baxtar-í : هغه یوناني فرهنګ او تمدن چې په باختر کې منځته راغلی دی، ( پا ) یونان - باختری ( فرهنګ، تمدن . . . )، ( ان ) Grec-o-Bactrian

**یونانیواله** yunan-í-wāla : یوناني پالنه، ( پا ) یونانی ګرایی، ( عر ) یونانیت، ( ان ) Hellenism, Grecism

**یوندود** yun-dód : دیون ( حرکت، مارش ) رسم، ( پا ) رسم ګذشت، سان، ( ان ) parade

**یونلیك** yun-lík : دیون ( سفر ) لیکنه یا ګزارش، ( پا ) سفر نامه ( ان ) trevel account, log

**یونوړی** yaw-nóẓ-ay : یوجنسی، ( پا ) یك جنس، یك جنسی، ( ان ) unisexual, declinous

**یونوړي** yaw-noẓ-í : یوجنسي، ( پا ) یك جنسی ( ان ) unisexuality

**یونومی** yaw-núm-ay : <-- همنومی.

**یونومي** yaw-num-í : <-- همنومي.

**یواریز** yaw-war-íz : یوځلي، ( پا ) یکباره کی، یکباره، یك مرتبه یی، ( ان ) all at once, at on strock

**یوواله** yaw-wā́la : یووالی؛ یو پالنه، یوڅښتني، یو گرومي، ( پا ) یکتایی؛ یگانه پرستی، یکتا پرستی، ( عر ) وحدت؛ توحید، موحدیت، ( ان ) unity, singularity; monotheism

**یووخته** yaw-waxt-á : <-- یو وختیز .

**یووختیز** yaw-waxtíz : یووخته، یو مهالیز، ( پا ) یك وقته، یك وقتی، ( ان ) once, at once

**یوورځنی** yaw-wraj-anáy : یوورځینی، ( پا ) یك روزه، ( ان ) in one day, journal, quotidian

**یو وگړیز کړ** yaw-wagaṛ-iz-kaṛ : مفه کړ ( فعل ) چې یو فاعل یا یو مفعول لري، ( پا ) فعل که در تصریف آن یك شخص قرار دارد، ( ان ) monopersonal verb, unipersonal verb, impersonal verb

**یوولس څپیز** yawólas-cap-íz : یوولس څپې ( هجاوې ) لرونکی ( شعر ... )، ( پا ) یازده هجایی، شعر یازده هجایی، ( ان ) hendecasyllable, hendecasyllabic

**یوولس څنډیز** yawólas-canḍ-íz : یوولس گوټ، یوولس څنډې لرونکی ( شکل )، ( پا ) یازده ضلعی، یازده گوشه، ( ان ) a hendecagon, eleven- sided, eleven-

cornered

**یوولس ډزی** yawólas-ḍáz-ay : یوولس ډزی یا یوولس تکه ټوپك ، ( پا ) یازده تیره ( تفنگ ) .

**یووم** yaw-wám : لومړی ، ړومبی ، ( پا ) یکم ، اول ، نخست ، ( ان ) first, prime, primier

**یوون** yaw- ún : یووالی ؛ واحد ، ( پا ) واحد ، ( ان ) union; unit

**یوه اوونۍ تر منځه** yawá-ownáy- tar- mánja : یوه اوونۍ تر منځ ، هره دویمه اوونۍ ، ( پا ) یك هفته در میان ، ( ان ) every other week

**یوه ورځ تر منځه** (a) : yaw-wraj-tar- mánj- a یوه ورځ تر منځ ، هره دویمه ورځ ، ( پا ) یك روز درمیان ، ( ان ) every other day

**یهود پال** yahud-pā́l : صهیوني ، ( پا ) صهیونی ، صهیونگرا ، ( ان ) zionist

**یهود واله** yahud-wā́l-a : یهودپالنه ، صهیونیزم ، ( پا ) صهیونیسم ، صهیونگرایی ، ( ان ) yudaism, zionism

**یېبرور** yebra-wár : حاصلناك ، پیداواری ، ښېراز ، بارلرونکی ، ( پا ) بارور ، حاصل خیز ، پر ثمر ، مثمر ، بارخیز ،

fertile, productive, fruifful, ( ان ) بار آور ،
fruit-bearing, useful

**يېبروري** yébra-war-í : حاصلناکي ، پيداوري ، ښېرازي ، ( پا ) بارورى ، حاصلخيزى ، پرثمرى ، بار آورى ، ( ان ) fertility

**يېبره** yébra : دکښت حاصل ، دميوې يا نورو ورته ځيزونو حاصل يا محصول ، پيداوار ؛ پايله ، ( پا ) بار ، حاصل يا پيداوار زراعتى ، ( عر ) محصول ، ثمره ، نتيجه ، ( ان ) produce, harvest, product, result, offspring

**يېدغا** yedğā : ييدغه ، يوه پاميري ژبه چې له نورو پاميري ژبو او پښتو سره په شمال ختيزه اريانه کې راځي ، ( پا ) ييدغه ، يدغه ، ( ان ) yidgha

**يېړمشر** yeṛ-mašar : ديوه ييړ ( دبېړيوديوې ډلې ) مشر يا بولندوى ، ( پا ) سر دسته و يا فرمانده يکدسته کشتى ها ،

**يېنه ييز** yena-íz : ييته رنګ ، ( سور ) ځيګري ، ( تور ) ځيګري ؛ ځيګري ، ديېنې اړوند ، ( پا ) جګرى ( رنګ ) ؛ مربوط يا منسوب به جګر ،

**يېوې** Ewé : يوه «Ewe» نومې افريقايي ژبه ، ( پا ) زبان اوى ، ( ان ) Ewe

# بشپړيزه (تکميله)

آر و آړ ấr –o-ấṛ: (پا) اصل و بدل، اصل و رونوشت، اصـــل و کـاپـی، (ار) اصلـــی اور نقلـــی، (ان) original and copy.

آړ ấṛ: (پـا) مـانع، سـد، شـرط، واژګونـی، تحريـف، بـدل، رونوشـــــت. (ان) obstacle, barrier, wager, copy.

آړليک āṛ-lík: آړ (پـا) کـاپـی، رونوشـت، نقــل، (ان) copy.

اړي او نـــاچـــاري aṛí aw nāčārí: اړي او مجبـــوري (پـا) مجبوريــت و نـــاچـــاری، نـــاچـــاری و مجبـــوری (ان) compulsion and helplessness.

آزاديپال azādi - pấl: آزادي خوښی (ناکره)، (پا) آزاديخـواه. (ار) حريـــــــت پســـــند. (ان) freedom fighter.

آزاد دينـی azād dínay: پرمذهـب نـه ولاړ، (پـا) دنيـاګرا، غيروابسـته، نه ديـن و مذهـب، (ان) secularist, secular

آزاد ديني azād-[illegible]: دين آزادي (پـا) عـدم وابسـته ګی بـه دين(ان) secu[illegible]rity, secul[illegible]ism.

ازمـون بـتـی azmun-baṭə́y: د ا زمیښت بـتی. (پـا) بتـهء آزمایش، کورهء آزمون.

اسلام پـال Islam - pā́l: اسـلام پلـوی. (پـا) اسـلام گرا، (ان) islamist.

اغلې او ښاغلي aγə́le aw ṣaγə́lí: میرمنې او ښاغلي، (پـا) خانمها و آقایان، (ان) ladies and gentlemen.

اکر بکر akár-bakár: حال تپال، (پا) وضع و احوال. حال و احـوال، چنـد و چـون. (ان) condition. situation.

اکر وکر akár - wakár: بیخ و بنسټ، پېژنـد نـښه، (پـا) اصـل و نسـل، کنهـه و کیـف. شـناخت و هویـت، (ان) identity.

اوبشیند ob - šínd: پاشونکی. (پا) آبپاش. (ان) watering can (cart).

انگروزل angrozə́l: تبلیغول. اعلانـول، (پـا) تبلیـغ کـردن (ان) to propagandize, advertise.

انـــگروزی angrózay. (پـــا) آگهـــی. (عـــر) اعـــلان (ان) advertisement, proclamation.

اوربتی or - batә́y: (پا) کوره آتش، (ان) kiln, furnace

اورپکی or-pákay: اورګډی، (پا) شرانداز، (عر)شریر. (ج) اشرار، (ان) instigator, wicked (person)

بلوژنه bәl-wažә́na: وژنه، وژله، (پا) کشتار، (عر) قتل. (ان) killing, murder.

بلونج bәl-wánǰ: (پا) پیشنهاد متناوب، (عر)بدیل، (ار) متبادل، (ان) alternative

بلونجتیا bәl-wanj-tyā́: بلونجی، (پا) یک درمیانی، (عر)تناوب، (ان) alternation.

بنستیګر ← بنستوال

بوختنه boxtә́na: بوختیا، ساتېري، (پا) سرګرمی، ساعتیری، (عر)تفریح، تفرج، (ان) amusement, pastime.

بولل بول bolәl - ból: بولله ویونکی، (پا) قصیده سرا، چکامه سرا، (ان) poet of purpose poem – elegy.

بېلندلیکه beland - líka: بېلندویه لیکه، بریدلیکه، (پا) خط مرزی، (ان) demarcation line.

بشـپریزه bəšpər-iza: بشـپرانده. (پـا + عـــر) تکملـــه.
(ان) complement.

بېواکـوړی bewāk-wáẓay: بېواکغونـډ. (پـا) گروه همخـــوان.
(ان) cluster .(ling).

پانګول pāngawə́l: پانګه اچـول. (پـا)سـرمایه گذاری‌کـردن.
(ان) invest.

پانګونــه pāngawə́na: پـانګه اچونـه. (پـا) ســـرمایه گذاری.
(ان) investment.

پای‌بېواک وړی pā́y-bewāk-waẓay: پای‌بېواکغونډ. (پــا) گروه
همخوان انجامی. (ان) final cluster.

پیېښتګر payəṣt-gár: ادامــه ورکوونکـی. (پـا) ادامـه دهنـده.
دنبـال کننـــده. (عــر) مــداوم. مســتمر. (ان) continuant.
continuation

پایول payawə́l: پایښت ورکــول. پرمخـوړل. ادامـه ورکـړل.
(پا) دنبال کردن. دوام دادن (ان) continue.

پایونه pāyawə́na: پرمخوړنه، پایښت ورکونه، ادامه ورکونه (پا) پیگیری. (عر) ادامه. مداومت. تمدید. (ان)continuation.

پژژبه paẓ-žə́ba: ځان ژبه. د وجود ژبه. (پا) زبان بدنی. (ان) body language.

پلیونی pal-yúnay: لاروی. (پا) پیرو، دنباله رو. (ان) disciple follower.

پوروژنه por-wažə́na: بدل. پور. کسات. (پا + عر) قصاص. (ان) retaliation.

پورویزونه por-wəzúna: پوروییونه. (پا) واژه های وامی. (ان) foreignerism (یوکړی : پورویږ).

پوهاوی pohāwáy: پوهېدنه. پوهېدنګ. (پا) همفهمدگی. (عر) تفاهم. (ان) understanding.

پوهاوی را پوهاوی phawáy-ra-pohāway: پوهول را پوهول. پوهونه را پوهونه (عر) تفهام و تفهیم. (ان) mutual understanding

پوهېدونی pohedúnay: د پوهېدو وړ، پوهوړ، (پا) قابل فـهم، (ان) understandable.

پېغلستان peɣlistā́n: د پېغلو سيمه، (پا) سرزمين دوشـيزه هـا (شاعرانه).

پيلام paylā́m: پيلامه، نـښه، (پـا) نمـاد، نشـان، (عـر)رفـر، علامت، (ار) علامت، (ان) symbol.

پيلاميز paylāmíz: پيلامه يي، (پا) سمبوليک، (ار) علامتـي، (ان) symbolic.

پيللوسـتی payl-lwástay: سـريزه، سـرى، پيلـيزه، (پـا) پيشـگفتار، سـراغاز، ديبـاچـه، (عـر) مقدمـه، (ان) preface, introduction.

ترهـگر trah-gár: وېروړى، (پـا) دهشـت افـگن، (ار) دهشـت گرد،

(ان) terrorist.

ترهـگري trah-garí: وېره اچونـه، (پـا) دهشـت افگنـی، (ار) دهشتگردی، (ان) terrorism.

تشیال تمځی taşyā́l-tamjáy: فضایي سټېشن، (پا) استیشن فضایی، (ار) خلایی ستیشن، (ان) space station.

ترینګلتیا tringəl-tyā́: خرپړتیا، کړکیچ، (پا) تنش، کشیدګی، (عر) تشنج، (ان) tenssion.

توانزېرمه twān-zérma: خواکزېرمه، (پا) نهان توان، انرژی نهانی، (ان) potential energy.

توانیز twāníz: خواکیز، توانوړ، (پا)نیرویی، (عر) بالقوه، (ان) potential.

توانیز وکړنیز twāníz-o-akṛaníz: (پا) ذخیره یی (عر) بالقوه و بالفعل، (ان) potential.

توغونځی toɣawən-jáy: د توغندیو ویشتلو ځای، پرتابګاه موشکی.

تېرخولی terə-xwálay: تیش خوی، (پا) دارای کلاه نوک تیز، (زړه پارسي) تیګره خوده، tigraxauda (د ساکو یو تبر)

تېروېزونه ter-wezúna: تاریخي ویبونه، (ان) historicism (یوګړی: تېروېز).

ټاکونی ṭākúnay: ټاکنده، ټاکونکی، (پا) تعیین کننده، (عـر) معین، (ان) determinant.

جنګغالی ǰang-γālay: جنګځګز، جنګ میـدان، (پـا) رزمـګاه، نـبردګاه، میـدان جنـګ، (ان) battleground, battlefield.

چـورلا ویـز čurlāwiz: کـارخونیز، (پـا) فابریکـه یی، (ان) fabricated، (چـورلاو = فابریکـه)

ټلوالـه ṭalwā́la: ملګرتیـا، انـډیوالي، (پـا + عـر) ائتلاف، (ان) alliance , coalition.

څارګری cār-gə́ray: څرکبه، (پا + عـر) جاسوس، (ان) spy.

څارګري cār-garí: څه کـښي، څرکبـاني، (پـا) ج'سوسـی، اطلاعات، استخبارات، (ان) intelligence (service), spying, espionage، (جـر) spionage geheimdienst,.

څارګري سـازمان cārgarí-sazmān:څارګریـز، څرکبـاني یـا څرکـښي سـازمان، (پـا) سـازمان اطلاعـاتی: سـازمان اسـتخباراتی، سـازمان جاسوسـی، (عــر) مخـابرات

څوکور cukawár: تېره سرى، (پا) نوک تيز، نوکدار (ان) sharp pointed.

خپلواکي پلوى xpəl-wāki-paláway: ازادي پلوى، (پا) طرافدار ازادى. (ان) loyal to freedom.

خپلول xpəlawə́l: د ځان کول، منل، را اخيستل، (پا) از ان خود ساختن، پذيرفتن، اقتباس کردن، (ان) to adopt.

خپلونه xpəlawə́na: د ځان کرنه، پرلاس راوړنه. اخيستنه. (پا) پذيرش، اقتباس، (ان) adoption.

خوار ځواکى xwār-jwā́kay: خوار خوراکى، (پا) مبتلابه سو تغذيه. (ان) undernourished, underfed.

د شتمنۍ وزير de-štəmanə́y-wazír: ماليه وزير، (پا) وزير دارايى، وزير ماليه، (ان) finance minister.

ډيره او ډنډه derá-aw-ḍandá : ځاى ځايګى. (پا) جا وجايګاه.

ډېرى او لږى deráy-aw-ləẓáy: لږى او ډېرى. (پا) اکثريت و اقليت، بيشين و کهين. (ان) majority and minority.

رسـبېرى ras-beŗə́y: رسـد بـېرى، كشـتى تداركـات، (ان) supply ship.

رسند rasánd: رسن، رس، (پـا) رسـد، فـراورده دار، (ان) supply.

رښتپـوه rəşt-póh: حقـوق پـوه، قـانونپوه، (پـا) حقوقـدان، قانوندان، (ان) jurist, lawyer.

رښتپوهنـه rəşt-pohə́na: حقـوق پوهنـه، (پـا) علـم حقوق، (ان)law، (جر) Rechtswissenschaft.

رښته rə́şta: بخره báxra، (پا + عر) حق، (رښتې = حقوق)، (ان) law, right، (جر)recht، (خوتن ساكي) rraṣṭa.

رښتيز reşt-íz: حقوقـي، (پـا) حقوقـى، (ان) legal ,lawful، (جر) rechtlich.

رنـځور پـال ranjor-pā́l : (پـا) پرسـتار، (ان) nurse.

زرين خولى zarin-xólay: زرين تاجى، (پا)زرين تاج. با تـاج طلايى.

زړویزونه zar-wezuńa: زاړه وییونه، (پا) واژه های کهن. (ان) archaisms. (یوګړی : زړویز).

ژویانه zoyānā́:د ځناورو د خولې کیسه، (پا) حکایت(از زبان جانوران)، (ان) fable.

سادرملنه sā-darmalə́na:اروادرملنه، (پا٠روان پزشکی، (ان)psychiatry .

سادرملی sā-darmálay: اروا درملی، (پا)psychiatrist.

ساسپړاند sā-spṛā́nd: ارواشناند، (پا) روانکاو. (ان) psychoanalyst.

ساسپړنه sā-spṛə́na: سا شننه، (پا) روانکاوی. (ان) psychoanalysis.

سپوږمکی spoẓmakə́y: وږمی، وږمکی. (پا) ماه... قمر مصنوعی، (ان) satellite .

سپین زړی spin-zə́ṛay: پاکزړی، (پا) پاکدل، با دل صاف.

سختچاری saxt-čā́ray: (پا) سختګیر، (ان) strict.

سربېواکوړی sár-bewāk-wáẓay: پیل بېواکغوند، (پا) گروه

همخوان اغـازی، (ان) initial cluster ( د ژبپوهنـې نومونـه).

سرپورراینه sar-porāyə́na: (پـا) کمـک هنرینـه ، (ان) subsidy.

سـرټکی sar-ṭə́kay: د سـرټکی، (پـا) سـرخط(خبرهـا)، (ان)head line. (ډېرګړی : سرټکي head lines).

سرټکي sar-ṭə́kí: د سر تـاپـي،(پـا + عـر) رووس مطـالب، (ان) head lines, main topics.

سـرلیکه sar-líka: سـردړه، (پـا) سـرلوحه، (ان) board, nameplate.

سرمشـریزه sar-məšríza: سرمشریزه غونـډه، (پـا) همـایش سران، نشست سران، (ان) (a meeting at the) summit.

سکوی skoy: نخش، انځور، چکن، (پا) نقش، کنده کاری، ضـرب، سـکه، سـوزندوزی، (ان) coining, needlework, engraving, drawing, design.

سـکویل skoyə́l: نقش ، انـځورچپکنـول، (پـا) نقش کـردن، منقوش ساختن، سکه زدن، سوزندوزی کـردن، (ان) tocoin, engrave, draw, design.

سکیندل skində́l: پتی ایښتودل، جبرانول، (پا) جبران کردن، جبیره کردن، تلافی کردن، (ان) to cover, compensate.

سکینده skindá: پتی، (پا + عر) جبیره، جبران، (ان) amends, compensation.

سلنه səlә́na: سلواله، (پا)فیصدی، (ان)percentage.

سمندر غاړی samandər-γaṛay: کښوال، (پا) ساحلی

سمونپال samun-pā́l: سمونپلوی، (پا) اصلاح طلب

سمونتیا samun-tyā́: سمون، (پا + عر) اصلاحات، (ان) reform.

سوداګریز sawda-gəríz: سوداګري، (پا) بازرګانی، تجارتی، (ان) commercial.

سورستوری sur-stóray: سورستوریز، (پا) دارای ستاره سرخ.

شخه شولانګه šáxa-šolā́nga: تاوتریخوالی، کړ کیچ، اړپیچ، (پا) تنش، (ان) conflict, tention.

شک و شوپیان šák-o-šopyā́n: شک و اړنګ، اړنګ بړنګ، (پا) شک و شبهه، (ان) doubt, suspicion.

شونتیا šun-tyá: کېدون، (پا + عر) امکان، (ان) possibility.

شونی šunay: کېدونکی، (پا) شونده، امکان پذیر، (عر) ممکن، (ان) possible.

ښمیروښېګڼه şmə́r-o-şegə́ṇa: خیرښېګڼه، (پا + عر) خیریه، خیروخیرات، (ان) welfare, charity.

ښېګنیز şegəníz: (پا + عر) خیریه

غښته ɣə́şta: سازښت، (پا) سازش، (عر) مصالحه، (ان) compromise.

غوراینه ɣorāyə́na: امرنه، (پا) گزینش، (عر) انتخاب، (ان) selection, election.

غور ټاکنې ɣwar-ṭakə́ne: ټاکنې، غوراینې، امرنې، (پا + عر) انتخابات، (ان) election.

غورځاوڼ ɣorjāwáṇ: غورځنګ غرې، غورځنګ مل، (پا)پیروجنبش، هواه خوان جنبش.

قلموال qalam-wā́l: قلم کار، لیکـوال، لیکونکـی، کښونکـی، (پا) قلم بدست، نویسنده، (عر) کاتب، منشـی، مولـف، (ان) author, writer.

کرښور kərṣór: سیمه، (پا) استان، (عر) ایالت، ولایـت، (ان) province.

کرورلی kroṛə́lay: غښتلـی، پیـاوړی، ځواکمـن، (پـا) توانـا، توانمنـد، نـیرومند، (ار)طـاقتور، (عـر) قـوی، (ان) strong, powerful.

کـرور kəṛ-wáṛ:کرنـیز، (پـا + عـر) بـالفعل، (ان) actually, poterntial.

کږدی بازار kəẓdəy-bāzā́r: کېږدی بازار، (پا) بازار غژدی‌ها، بازرا چادر نشین ها.

کنګل kangál: یخی، (پا) یخبندان، یخبسـته، (ان) frozen.

کنګلول kangal-a-wə́l: کنـګل کـول، (پـا) راکــد ســاختن، منجمد ساختن(سرمایهء بانکی)، (ان) to freeze.

کور جوړی kor-ǰóŗay : کور رغولی، (پا) ساخت خانگی، (ان) homemade.

کېدون kedún: کیدن، (پا + عر) احتمال، (ان) eventuality.

کېدونی kedúnay: کېدونکی، (پا) احتمالی، (ان) probable, eventual.

کېږدی بازار kezdəy bazā́r: کږدی بازار.

ګړويزونه gəŗ-wezúna: ګردودي وييونه، (پا) واژه های گويشی، (ان) dialectisms (يوګړی : ګړوېز).

ګڼ وګړی gaņ-wagə́ŗay : ګڼ وګړنی(هېواد)، (پا) پرنفوس، (ان) large crowded.

ګڼ هېواديز gaņ-hewādíz: ګڼ ولسيز، (پا) چند ملتی، (ان) multinational.

ګوتڅنډنه gwet-canḍə́na: ګواښنه، ګواښ، تور برېښ، (پا + عر) تهديد، (ان) warning.

ګواښنه gwāṣə́na: ګواښ، ګوتڅنډنه، (پا) اګاهی، خبرداری، اخطار، (ان) warning.

لاسلرلی lās-larə́lay: په لاس کې، پــه واک کــې، (پـا) دسـت داشته، (ان) available.

لړلیـک laɽ-lík: نیــو لیـک، (پـــا) فهرســـت مندرجـــات، (ان) table of contents.

لـږی او ډېری ləẓáy–aw-ḍeráy: لـږه کـی او ډېره کـی، (پـا) کهین و بیش، (عـر) اقلیـت و اکـثریت، (ان) minority and majority.

لمر مزدک lmar-mazdák: د لمر معبد، (پا) معبد خورشید(شاعرانه).

مانوېزونه man-wəzúna: ماناونجونه، (پا) واژه های با معنی نو، (ان) semantism.

لومړنیـان lumṛanyā́n: لومړنــي، مخنــي، مخینیــان، (پـا) پیشینیان، (ان) the ancients.

نارنجستان nārənǰ-istā́n: نارنجباغ، (پا) نارنجستان، (ان) (orangery)

ناندریز nāndríz: شخړیز، (پا + عر) متنازع فیه، (ان) .disputed

نړویزونه naŗ-wezúna: نړیوال ویبونه، (پا) واژه های بین المللی، (ان) internationalism(یوګړی : نړوېز).

نسکوربختی naskor-báxtay: بدمرغه، بدمرغ، بدشامته، (پا) بدبخت، نګونبخت، واژګونبخت، (ان) unlucky.

ننګول nangawә́l: پرغیرت را وستل، تومبل، چلنجول، (پا) بمبارزه طلبیدن، (ان) to challenge.

ننګونه nangawә́na: تومبنه، پارونه، (پا) مبارزه طلبی، (ان) challenge.

نیم نښتی کور nim-nşә́tay-kor: دیوال شریکی کور. (ان) semi(semi detached house).

نوماند numā́nd: نومور، نومیال، نومیالی، (پا) نامور نامدار، (عر) شهیر، مشهور، معروف.

نـښير naşír: (پـا + عـر) اثـر، (ان) work، (نښيرونـه : اثـار:works).

نومړ numə́ŗ: نومولی. (پا) نامزد، (ان) condidate.

نوېزونه nawezúna: نوې رغاوې، خپللاسي وييونه، (پا) واژه های نو، (ان) neologism، (يو ګړی : نوېز).

وچغاړی wəč-ɣā́ŗay: په وچـه کـې را ښکيـل (هـېواد)، (پـا) محاط به خشکه.

ورانپوهـاوی wrān-pohāwáy: (پـا) غلـط فـهمی، (ان) misunderstanding.

ورم و وراشه wárm-o-wrā́ša: (پا) پند و نصيحت

وريښملار wreşəm-lā́r: د وريښمـو لار، ورېښمينـه لار، (پـا)راه ابريشم، (ان) silk road .

وړانـد ويېنـه wŗānd-wayə́na: مخويېنـه. (پـا) پيـښګويی، (ان) predict.

وسـله څاری wasla-cā́ray: (پـا) بـاز رسـان تسـليحاتی، (ان) weapons' inspector.

وسمهاليز wəs-mahālíz: وسمهالی، (پا + عر) معاصر، (ان) contemporary.

ويني پور wine-pór:

وییزېرمه wayi-zérma: وییپانګه، (پا) ذخیرهٔ لغوی، (ان) vocabulary.

هڅاند hacā́nd: هڅند، (پا) کارکشته، شخص پرانرژی، (ان) dynamic, acive.

همغاړی ham-γā́ṛay: همماندی، (پا + عر) موافق، (ان) agreeing.

همغږی ham-γáẓay: یوخوله(پا) همصدا، همنوا، هماهنګ، (ان) concordant.

همغږي کول hámγázi-kawə́l: پرله غبنتول، منسجمول، (پا) منسجم ساختن، (ان) to coordinate.

هنرپال hunar-pā́l: هنر پالونکی، (پا) هرپرور، هنرپیشه، (ان) artist.

هـنرتون hunar-tún: (پـا) هنرسـتان، (ان) school of art.

هنريـال hunar-yā́l: هـنرمند، (پـا) هـنرمند، (ان) artist.

هواسپېښ hawā-spéc: هواپاک، (پا) هواکش، ماشـين يـا الـهء تهويه(ان) ventilator.

يـاده yā́da: يـادی، يـادښت، (پـا + عـر) حافظـه، (ان) memory.

ييکی (ايکـی) yikə́y: پيسـه، سـکه، (پا) پـول، سـکه، (ان) money, coin.

ييکيـڅ yikíz: (پـا) ضرابخانـه، (ان) mint.

# یو اړین لیک

د زړې پیړۍ او زړې زرۍ په وروستیو شپږو کلو کې چې دغه سیندګي د چاپ په تماه تر شا پرېښوول، پښتو نویزونه په بېسارې توګه ر مخ ولاړل. دا هم په دې چې د جنګ جهل او جنایت خپلي هیواد د پرېښوونې او په یو واریز ډول د پوهې او فرهنګ له پرمختللي چاپېریال سره مخامخېدني، پښتانه لیکوال او پوهان دېته را ولیېل چې په دغه لنډ مهالپېر کې د خپلې وروسته پاتې ژبې نړیوالې یا لړترلړه سیمه والې سیالۍ ته متې را ونغاړي او د یوه نیم خانساتي د "کلاسیکپال" لیکوال او پوهاند په توپیر پرې د "یوې-کره پښتو" د ار او اړتیا له مخې د ګڼو لیکنو او ژباړنو په ترڅ کې ښایسته ډېرې ادبي، فرهنګي، علمي او تخنیکي سمې او نا سمې نوې رغاونې ولوروي.

په دې توګه په کاروه، اړوندې شپږکلنې خپرونې مو را چانلې او هماغه سمې رغاونې مو هم دلته را اخیتسې وای. خو د پښتو مینو یو واریزې پېرزوینې نوره کابو پرلاس را نه کړه او

له منډې له مخې مو پر يوې لنډې ګنډې "بشپړيزې" بسنه وکړه. بياهم د همدغې سترې پيرزوينې د ملتيا په ډاډ ژمنه کوو چې په دويم او نورو راتلونکو چاپونو کې يې ټول منځته راغلي نوېزونه تازه پر تازه، د up-to-date په ټوله مانا را خوندي کړای شو. د دغه لنډ يادښت په پلمه غوارم چې د دغې چاپي لوروني له کبله د ساپي د پښتو څيړنو او پراختياد مرکز د منلي مشر امام الدين ساپي صاحب او د ساپي د مرکز چلوونکې ادارې څخه په ټولو پښتنو ولولو سره د زړه له ژور و خوښنه او مننه څرګند کړم او پرمخ اخيستې پتمنه لار کې ورته د لاسترو بريو، برياوو او وياړونو هيله وکړم!

په پښتني مينه

پوهاند ډاکټر مجاور احمد "زيار"

اکسفورډ، ۱۷-۱۰-۱۹۹۹

دساپي دپښتو څيړنو او پراختيا دمرکز موسس

مشرښاغلي امام الدين ساپي نه چې زما

داکتاب يې دتاريخ په دې

حساسو. ترخو

او

د ستونزو نه په ډېرو ډکو شيبوکې د

خپل ځانګړې پانګې په بشپړلګښت

چاپ اوخپورکړ يو وار بيابيا

مننه.

دکتور مجاور احمد زيار

# د پوهاند زیار نور آثار:

چاپ: پښتو نومترنگونه (په آلماني)، پښتو پښویه، پښتو لیکلار، پښتو ویي پوهنه، زنداني نغمې، وینه او مینه، اندوژوند، سوزونه او سازونه، کلولې، ګلکڅونه، پښتو شعر څنګه جوړیږي؟، پښتانه او ورونه ملیتونه(ژباړه)، د کنشکا د سره کوتل دبرلیک (ژباړه)، د سبرونو نڅا، ګلوییونه، څڅواکي، رزم و بزم، اور و وینې، مینه و زړه په وینه، سیندګی(هممانیزونه)، پته خزانه یوه لغوي خزانه، زمانړی، د مرجانو څاڅکي، پوهه او ګروهه، ناپېیلې (نثري کلیات).ترچاپ لاندې: سیندګی (انګرېزي — پښتو سربلونه)، ساندې او سندرې، نوې پېړی او نوې زری، اند و واند، پښتو او پښتانه د ژبپوهنې په رڼا کې.

نا چاپ: پښتو — دري فرهنګ، سیندګی (اتیمولوجي) او پر پښتو او نورو افغاني ژبو ۱۰۴توکه څېړنې.

# دساپې دپښتو څېړنو او پراختيا دمرکز چاپ شوي کتابونه

دساپې دپښتو څېړنو او پراختيا دمرکز لخوا دپښتو ژبې علمي کولو او دافغان ملي ژبې ته دخدمت کولو په لیارکې دیولړ ادبي ،فرهنګي ،تاریخي او ساینسي څېړونو برسیره دالاندې کتابونه دغوره شوي بیلګې په توګه چاپ شویدي چې ددې مرکز دکتابتون له لیارې دهیواد ،دټولو پوهنتونونو کتابتونونو ،دپوهنې ،اطلاعات او کلتور او لوړو زده کړو دوزارتونو لوړو مقاماتو ،دپوهنتونونو یو شمیر نومیالیو استادانو ، ملي شخصیتونو او پوهانو ته په ډېر درنښت دالی شوي او هم دطب مسلکي زده کړو زیات شمیر محصلینو ته دلوست لپاره ورکړ شویدي.

١. کتابونه دریابونه .
٢. پښتو شفاهي داستان.
٣. پښتو ولسي ادبیات.
۴. دخیرالبیان لغتونه.
۵. افغان او افغانستان.
٦. دعصبي جراحي داساساتو لکچرنوټ.
٧. دافغانستان قومي جوړښت.

۸. دپوستکي او زهروي ناروغیو اساسات.

۹. ملنګ جان.

۱۰. عمومي بیالوژي (د P.C.B) تولګي ددوهم سمستر لپاره.

۱۱. هرات.پښتانه او ستره لوبه.

۱۲. پښتو ژبښود.

۱۳. پښتو ګرښود.

۱۴. پښتو بدیع البیان.

۱۵. رنا اودفاع (دافغانستان دنفوسو.تاریخ اوروانو پیښو په باب لیکنې).

۱٦. پښتو سندګی(نویزونه Neologisms)

**یادونه**: دساپې دپښتو څیړنو او پراختیا مرکز دلوی او بخښونکي خښتن (ج) دمرستې او مهربانی په سیوري کې د 2000 کال په تول بهیر کې دپوهنې زده کوونکو او دلوړو زده کړو محصلینو لپاره دیو شمیر نورو درسي ،فرهنګي ،ادبي،تاریخي او ډول ډول علمي کتابونو چاپول،دخپل کار دپلان په لومړی برخه کې ځای کړیدي.

# PUSHTO SIENDGAI

## Neologisms

Author

**Prof. Dr. M. A. Zeyar**

خپروونکی



امام الدین ساپی

*Published By*

*Sapi's Center for Pushto Research and Development*

*Peshawar ---------------------------------- 2000*